# د افغانستان لنډ تاریخ

ليكوال

اروانباد پوهاند عبدالحی حبيبی

ژباړن

الحاج عبدالودود کرزی

۱۳۷۸ لمریز

بسم الله الرحمن الرحیم

# کتاب پېژندنه


د کتاب نوم : د افغانستان لنډ تاریخ

لیکوال : پوهاند عبدالحی حبیبي

ژباړن : الحاج عبدالودود کرزی

سمونکی او کتونکی : محمد داود وفا

کمپوز او طرح د : حفیظ الله

کمپوزینګ : ایشیاسافت، پېښور

د چاپ شمېر : ۱۰۰۰ ټوکه

د چاپ نېټه : غبرګولی ۱۳۷۸ هـ ل

د چاپ ځای : سپینزر پرنټرز (پرائیویټ) لمیټډ کوئټه

# لړلیك

# د کتاب د لیکوال لنډ ژوند لیک

اروابناد پوهاند عبدالحی حبیبي د ۱۳۲۸هـ قمري کال د ربیع الثاني پر ۱۷ مه (۱۲۸۷هـ.ل) د پنجشنبې په ورځ د کندهار ښار د بامیزو په کوڅه کښې زیږېدلی او په خټه کاکړ دی.

ده خپلې لومړنۍ زده کړې د کندهار په لومړنیو ښوونځیو کښې تر پېنځم ټولګي پورې سرته رسولې دي. تر پېنځم ټولګي وروسته په ۱۳۰۶هـ ل کال همهلته د لومړني ښوونځي ښوونکی وټاکل شو.

په ۱۳۰۷هـ ل د کندهار د "طلوع افغان" اخبار مرستیال وټاکل شو، چې بیا په ۱۳۱۰هـ ل کال د "طلوع افغان" اخبار بشپړه چلوونه ده ته وسپارل شوه، لس کاله پرله پسې یې د هغه اخبار د چلوونکي په توګه کار وکړ او هغه اخبار یې په ښه عالمانه توګه وچلاوه په تېره بیا یې د پښتو ژبې او ادب له پاره روښانه خدمتونه وکړل.

هلته یې د پښتو څو قلمي آثار، لکه د خوشال خان خټك کلیات او د عبدالقادر خان خټك دیوان تدوین، تصحیح، مقابله او له اوږدو سریزو سره چاپ کړل او هم یې د پښتو یو قاموس د "سپېڅلې پښتو" په نامه چې لس زره لغتونه لري له دري ژباړې سره ترتیب او خپور کړ. سربېره پر هغه یې د(تاریخچه پښتو) تر سرلیک لاندې د پښتو ادب مفصله تاریخچه او تذکره په دري ژبه و لیکله چې د طلوع افغان په اخبار کښې په پرله پسې ډول خپره شوه او د هغه اخبار له لارې یې د پښتو ژبې د ډېرو پخو لیکوالانو او شاعرانو همکاري جلب او هم یې نوي لیکوالان او شاعران وهڅول.

په ۱۳۱۹ هـ ل کابل ته راوغوښتل شو او د پښتو ټولنې مشر وټاکل شو چې د مطبوعاتو د مستقل ریاست د مرستیال په توګه یې هم کارکاوه. د پښتو ټولنې تر مشرتابه وروسته په ۱۳۲۰ هـ ل کال د پوهنې وزارت مشاور وټاکل شو. تر دې وروسته د ده په هاندو هڅو په ۱۳۲۳ کال په کابل پوهنتون کښې د ادبیاتو پوهنځی پرانیستل شو چې همدې یې



رییس وټاکل شو. په ۱۳۲۵ هـ ل کال د کندهار ولایت د پوهنې رییس او بیا په ۱۳۲۶ هـ ل کال په (چمن) کښې افغاني وکیل التجار مقررشو، په ۱۳۲۷ هـ ل کال چې د ملي شورا وکیلان ټاکل کېدل حبیبي صاحب په ملي شورا کښې د کندهار ښار د خلکو له خوا وکیل انتخاب شو، خو د وکالت دوره یې لا پوره نه وه چې په ۱۳۳۰ هـ.ل له خپلې کډې سره پاکستان ته لاړ. او په ۱۳۴۰ هـ ل کال (لس کاله وروسته) بیرته هېواد ته راستون شو. په ۱۳۴۴ هـ ل کال په کابل پوهنتون کښې د پوهاند په علمي رتبه د ادبیاتو پوهنځي استاد وټاکل شو.

په ۱۳۴۵هـ.ل (۱۹٦٦) کال د پوهنتون پراستادۍ سربېرد د تاریخ ټولنې رییس هم شو.

په ۱۳۵۱ هـ.ل (۱۹۷۲) کال د عظمی صدارت د فرهنګی چارو مشاور وټاکل شو.

په ۱۳۵۲ هـ.ل کال بیا د ادبیاتو پوهنځي استاد شو، په ۱۳۵٦هـ.ل کال د ادبیاتو په پوهنځي کښې د ماسترۍ د دورې استاد شو.

په ۱۳۵۷ هـ.ل کال د افغانستان د علومو اکاډمۍ علمي مشاور، او په ۱۳۵۹هـ.ل ۱۹۸۰ کال د افغانستان د اطلاعاتو او کلتور وزارت علمي مشاور شو.

سربېره پر دې "استاد" تر هېواد دننه او بهر په (۳٦) نړیوالو علمي او ادبي سیمینارونو کښې برخه اخیستې ده.

لوی استاد علامه عبدالحی حبیبي څه کم شپېته کاله د افغانستان د فرهنګ د خدمت له پاره شپه اوورځ پر ځان یوه کړې وه او داسې اثار یې افغاني فرهنګ ته وراندې کړل چې له ستاینې نه یې قلم عاجز دی، استاد حبیبي په پای کښې د ۱۳٦۳ل کال د ثور پر ۱۹ په کابل کې مړ او همهلته ښخ کړای شو. موږ نه غواړو چې داستاد د ژوندانه پر ټولو اړخونو، علمي هڅو او د هغه پر ګڼو علمي خدمتونو رڼاواچوو، ځکه په دې اړه یوې لیکنې نه لیکنو، کتاب نه کتابونو، سمینارنه سمینارونوته اړتیاده دلته، د "استاد" یوازې څوچاپ شوي آثار په لنډ ډول در پېژنو:

۱- د خوشال خټك ملغلرې (د خوشال خټك کلیات) سمون، مقابله، تعلیقات او مقدمه، کندهار ۱۳۱٦هـ ل.کال

۲- د عبدالقادرخټك دیوان سمون، مقابله، تعلیقات او مقدمه، کندهار ۱۳۱۷هـ ل.کال

۳- پښتو او پښتونواله، کندهار ۱۳۱۷ هـ ل کال.

۴- پسرلنی سندره پښتو منظومه ۱۳۱۷هـ ل.

۵- د احمدشاه بابا دیوان، سمون، مقابله او مقدمه کابل ۱۳۱۹ هـ.ل کال.

٦- پټه خزانه،تصحیح، تعلیق او دري ژباړه کابل ۱۳۲۳، تهران ۱۳۳۵، کابل ۱۳۵۴، کابل ۱۳۵٦ هـ ل کال

۷- د پښتو ادبیاتو تاریخ (۲)ټوکه کابل ۱۳۲۵-۱۳۵۳ (لومړي ټوک) ۱۳۳۸-۱۳۴۲ دوهم ټوک.

۸- پښتانه شعرا (۱) ټوک کابل ۱۳۲۰هـ ل

۹- ملتان کا لودي خاندان (په اردو ژبه ) لاهور ۱۹۴۹ م کال

۱۰- د پښتو ادبیاتو تاریخ، د ادبیاتو پوهنځي د دریم ټولګي له پاره کابل ۱۳۴۷هـ ل کال

۱۱- د پښتو ادبیاتو تاریخ د ادبیاتو پوهنځي د څلورم ټولګي له پاره ۱۳۴۸هـ ل کال.

۱۲- د افغانستان پېښلیك- کابل- ۱۳۵۳هـ ل کال

۱۳- د البیروني کتابښود ، کابل ۱۳۵۲هـ ل.کال

۱۴- په اوسني پښتو شعر کښې د ژوند څپې ، کابل ۱۳٦۰هـ ل کال.

۱۵- د پیر روښان د خیر البیان مقدمه ، کابل ۱۳۵۳هـ ل. کال.

۱٦- د پښتو ادب په تاریخ کښې قصیده کابل ۱۳۵۷هـ ل.

۱۷- پښتو د تاریخ او لغت په رڼا کښې- کابل ۱۳۴۷هـ ل. کال

۱۸- د پښتو ژبې او ادب موقف د مرکزي آشیا د خلکو په تمدنونو کښې (انګلیسي) ۱۳۵۴هـ ل کال.

۱۹- د شیخ الاسلام عبد الله انصاري سیرت او شخصیت ۱۳۵۵ هـ ل کال

۲۰- د خوشال سوات نامه سریزه او نښلونې، کابل ۱۳۵۸هـ ل کال

۲۱- دامیر علي شیر فکري اوسیاسي شخصیت، کابل ۱۳٦۰هـ ل کال.

۲۲- پښتو نثر ته کره کتنې کابل ۱۳٦۰هـ ل کال.

۲۳- آسماني نغمې او لاهوتي سرودونه- کابل ۱۳٦۰هـ ل. کال

۲۴- د سلیمان ماکو تذکرة الاولیاء سریزه، کابل- ۱۳٦۲هـ ل کال.

۲۵- وضع اصطلاحات پشتو، کندهار ۱۳۱۷هـ ل. کال.

۲٦- تاریخچه سبکهای شعر پښتو، کندهار ۱۳۱۹هـ ل کال.

۲۷-تاریخچه شعر پښتو- کندهار ۱۳۱۴هـ ل کال

۲۸- مشاهیر ابدالیان (تر احمد شاه بابا د مخه)- کابل ۱۳۱۹هـ ل کال.

۲۹- غزنه، کابل ۱۳۱۵هـ ل کال.



۳۰- تاریخ افغانستان در عصر تیموریان هند، کابل ۱۳۴۲هـ ل کال.

۳۱- جوانمردان و عیاران- کابل ۱۳۲۱هـ ل کال.

۳۲- سردار مهر دل خان مشرقي شاعر کندهاري کابل ۱۳۱۲هـ ل کال.

۳۳-طبقات ناصری(په دوو ټوکو کښې)سریزه، مقابله،سمونه او نښلونې،۱۳۴۳هـ ل

۳۴- مورخان گمنام افغانستان، کابل ۱۳۲۳هـ ل کال

۳۵- زرنج و احوال تاریخي آن، کابل ۱۳۱۳ هـ ل کال.

۳٦- تحقیقات راجع به ترجمان البلاغه، کابل ۱۳۳۰هـ ل کال.

۳۷- تحقیقات راجع به پټه خزانه ، کابل ۱۳۲۴ل کال.

۳۸- محقق کندهاری، کابل ۱۳۱۴هـ ل کال.

۳۹- تاریخ افغانستان بعد از اسلام ، کابل ۱۳۴۵ او ۱۳۵۷هـ ل کال

۴۰- خلیلی نامه، دری ۱۳۳۴هـ ل کال

۴۱- پښتو و لویکان غزنه ،کابل ۱۳۴۲هـ ل کال

۴۲- طبقات الصوفیه امالي شیخ الاسلام خواجه عبد الله انصاري، سمون، مقابله، نښلونې او حاشیې، ۱۳۴۲ کابل.

۴۳- کتابهاي گمشده تاریخ غزنویان ، کراچی ۱۳۳۸هـ ل کال.

۴۴- نوای معارك- مقابله، سمون او نښلونې کراچی ۱۳۳۷هـ ل کال.

۴۵- روابط ادبی سند با افغانستان ، کراچی ۱۳۳۷هـ ل کال.

۴٦- شاعر هیر مند هارون خان افغان ، کراچی ۱۳۳۸هـ ل کال.

۴۷- جغرافیایي تاریخی افغانستان، کابل، ۱۳٦۲هـ ل کال.

۴۸- مادر زبان دری- کابل ۱۳۴۳هـ ل کال.

۴۹- صد میدان خواجه عبد الله انصاري ترتیب او سمون، کابل ۱۳۴۲هـ ل کال.

۵۰- زین الاخبار گردیزي، ترتیب مقابله، سمون او نښلونې، تهران ۱۳٦۳هـ ل کال.

۵۱- رهنمای تاریخ افغانستان کابل ۱۳۴۸هـ ل کال.

۵۲- نگاهی به سلامان و ابسال جامی کابل ۱۳۴۳هـ ل کال.

۵۳- رساله سه رشته طریقت خواجه گان از جامی، کابل ۱۳۴۳ل کال.

۵۴ - تاریخ المختصر الادبیات البشتو (په عربي ژبه)، کابل ۱۳۵۷هـ ل کال.

۵۵- تاریخ مختصر افغانستان (۲) ټوکه - کابل ۱۳۴٦، ۱۳۴۹ل. کال.

۵٦- متون ادبی- کابل پوهنتون، ۱۳۴٦هـ ل کال.

۵۷- لغته البشتو ،قاهره ۱۹٦۵ م.

۵۸- تصوف- کابل پوهنتون، ۱۳۴۶هـ ل کال.

۵۹- تاج کابل شاه در کعبه، کابل ۱۳۴۸ل. کال.

۶۰- تاریخچه خط و نوشته های کهن در افغانستان، کابل ۱۳۵۰ هـ ل.

۶۱- هفت کتیبه قدیم، کابل- ۱۳۵۰هـ ل کال.

۶۲- فضایل بلخ، مقابله، سمون او نبنلونې- تهران ۱۳۴۹هـ ل کال.

۶۳- سواد اعظم، مقابله، سمون او نبنلونې- تهران ۱۳۴۸هـ ل کال ۰

۶۴- ظهیر الدین محمد بابر، کابل ۱۳۵۱ هـ ل کال.

۶۵_ اصل خلجیان افغان، تهران ۱۳۴۹ هـ ل کال

۶۶- شرح بیتین مثنوي ازمهر دل خان مشرقی ،ترتیب او سریزه- کابل ۱۳۵۲هـ ل کال.

۶۷- کتاب شناسي البیرونی (ترجمه و تکمله) کابل ۱۳۵۲، تهران ۱۳۵۲هـ ل کال.

۶۸- هنر عصر تیموریان، تهران، ۱۳۵۵ هـ ل کال ۰

۶۹- روضة الفریقین، سمون او نبنلونې، تهران ۱۳۵۹هـ ل کال.

۷۰_ فردوسي و شاهنامه، (ژباړه) ډیلی، ۱۹۴۲ ـ ع کال.

۷۱- انتخابی از حدیقه حکیم سنایي (انتقادي متن) کابل۱۳۵۶هـل کال.

۷۲- تعلیقات بر تاریخ تلفظ پشتو، کابل۱۳۵۶هـ ل کال ۰

۷۳- تاریخ بیداری سیاسي افغانستان، پېښور ۱۳۲۹هـ ل کال .

۷۴- تاریخ گویي به تعمیه در اشعار دری ، کابل ۱۳۶۰هـ ل کال.

۷۵_ منازل السایرین در دایره وجود، کابل ۱۳۵۵هـ ل کال ۰

۷۶- تحقیق بر تاریخ وفات سنایي، ۱۳۵۶هـ ل کال۰

۷۷- خودی و بی خودی در اندیشه اقبال، کابل۱۳۵۶هـ ل کال.

۷۸- مدرسه شاه شهید و غرجستان و ...کابل ۱۳۵۵هـ ل کال.

۷۹- شاعر اندیشه مولانا جلال الدین بلخی، ۱۳۵۳هـ ل کال.

۸۰- نامهای برخی از ایزدان کوشانی، کابل ۱۳۵۹هـ ل کابل.

۸۱- ادیان عصر کوشانی (انگلیسي)کابل ۱۳۵۹هـ ل کال.

۸۲- زنده گی نامه ابن سینا، کابل ۱۳۵۹هـ ل کال.

۸۳- شناختنامه میافقیر الله جلال آبادی، کابل ۱۳۵۹هـ ل کال.

۸۴- بابر در افغانستان (انگلیسي) مرانسه، ۱۹۸۰م.

۸۵- امیر کروړ و دودمان او، کابل ۱۳۶۰هـ ل کال.



۸۶- اشعارو دیوان تیمور شاه افغان، کابل ۱۲۱۳ هـل کال.

۸۷- درد دل (دري مثنوي)، کابل ۱۳۶۱هـ ل کال.

۸۸- جنبش مشروطیت در افغانستان، کابل ۱۳۶۴هـ ل کال .

۸۹- ادبیات جهان، د طلوع افغان اداره.

۹۰-افغان در تاریخ.

۹۱- امیر کروړ او د هغه کورنۍ، کابل، ۱۳۶۱ هـل.

۹۲- بلاد قدیم و تاریخي خراسان.

۹۳-په شلمه پېړۍ کښې د افغانستان هنر، کابل، ۱۳۶۰ هـل کال.

۹۴- تاریخ تجزیه شهنشاهي افغان.

۹۵- تاریخ افغانستان از آغاز دورهٔ اسلامي، لاهور.

۹۶- تاریخ سیاسي افغانستان.

۹۷- د کوشانیانو دین، کابل، ۱۳۵۸ هـ ل کال (انگلیسی).

۹۸- فضایل بلخ، ایران، ۱۳۴۹هـل کال.

۹۹- کشف شاهنامه قبل از دورهٔ مغل، کابل، ۱۳۶۲ هـل کال ۰

۱۰۰- کلید شاهنامه.

۱۰۱- نسب و زادگاه سید جماالدین افغاني، کابل ۱۳۵۵ هـل کال.

۱۰۲- نومورکي مؤرخین کابل ۱۳۵۹ هـل کال.

۱۰۳- افغان و افغانستان، د ح.ر ژباړه، د ساپي د موقوفاتو اداره، ۱۳۷۶ل، پېښور.

# د ژباړونکي لنډ ژوند لیك

الحاج عبدالودود کرزی د الحاج جرنیل امیر محمد خان کرزي زوی د کندهار ولایت د کرز سفلی کلي اوسېدونکی دی، لومړنۍ زده کړې یې د کندهار د حاجي جمال کرز په لومړني ښوونځي کښې تر سره کړي او د ثانوي زده کړو د (۴) سره کولو له پاره د کندهار ښار د احمد شاه بابا په لېسه کښې شامل شو. په ۱۳۴۱ کال کښې یې د بکلوریا د سند له تر لاسه کولو وروسته د ښوونکي سپېڅلې دنده پر غاړه واخیسته.

په ۱۳۴۲ کال کښې د ښوونې او روزنې د لوی مدیریت له خوا د سردار پائنده خان ذاکر شریف د لومړني ښوونځي د سر ښوونکي په حیث وټاکل شو. دغه دنده یې پوره څلور کاله تر سره کړه.

بیا د ښوونې او روزنې د لوی مدیریت له خوا د کندهار ښار د تیمور شاهي لومړني ښوونځي د سر ښوونکي په توګه وټاکل شو، تر یوه کال خدمت کولو وروسته د ښوونې او روزنې د لوی مدیریت په وړاندیز د کندهار ولایت د اساسي دارالمعلمین د اداري مرستیال په توګه وټاکل شو چې سر بېره د دارالمعلمین پر اداري مرستیالتوب یې د عالي دار المعلمین د اداري مرستیال دنده هم سرته رسوله. نوموړي ددغه ماموریت په وخت کښې عالي دارالمعلمین د څوارلسم ټولګي د اجتماعیاتو څانګې د فراغت سند هم تر لاسه کړ.

تر څلور کاله خدمت کولو وروسته یې د ښوونې او روزنې د لوی مدیریت په وړاندیز د غذایي مرستو د مدیر په توګه په کار پیل وکړ. چې تر دوو کالو خدمت کولو وروسته مرکز ته تبدیل شو. بیا له بې سوادۍ سره د مبارزې په ریاست کښې د زراعتي حوزې د مدیر په توګه وټاکل شو چې د لوګر، پروان،سمنګان او څینو نورو ولایاتو د لویانو د کورس درنه وظیفه دده



پر غاړه وه. چې په دغه وظیفه کښې تر یونیم کال خدمت کولو وروسته په ۱۳۵۵ هـ ش کال کښې د ښوونې او روزنې وزارت له خوا د غور ولایت د ښوونې او روزنې د لوی مدیر په حیث مؤظف شو چې د ۱۳۵۷ هـ ش د ثور تر کودتا پورې په همدغه دنده پاتې شو، وروسته یې د زابل ولایت د ښوونې او روزنې په لوی مدیریت کښې د مامور په صفت په کار شروع وکړه چې دغه دنده یې د زابل او کندهار په ولایت کښې د ښوونې او روزنې په مدیریتونو کښې تر ۱۳۶۲هـ ش کال پورې تر سره کړه څو چې په ۱۳۶۲ هـ ش چې د ۱۹۸۳ کال سره برابر دی له خپلې کورنۍ سره د پاکستان د کراچۍ ښار ته را مهاجر شو او تر دوه نیم کالو تیرولو وروسته امریکې ته ولاړ.

الحاج عبدالودود کرزي د ښوونې او روزنې وزارت په مربوطاتو کښې ۲۲ کاله خپله سپېڅلې دنده په ښه توګه سرته رسولې او د خپل ماموریت په وخت کښې یې د کندهار ولایت د ښوونې او روزنې د مدیریت، د کندهار ولایت او ښوونې او روزنې د وزارت د مقام له خوا د تشکر او تحسین افتخارات تر لاسه کړي دي.

نوموړي په ۱۹۹۵ م کال کښې د حج مبارکه فریضه هم ادا کړیده. ښاغلی الحاج عبدالودود کرزي، د افغاني فرهنګ د لوړتیا او پیاوړتیا له پاره تل هڅې کړي دي او له ګران هېواده یې خپلې هیڅ ډول مرستې نه دي سپمولي افغانستان یې په زړهٔ کښې هم، دی او په خوله کښې هم چې دده دا اثر ددغه ادعا یوه غوره ثبوت دی. زه په داسې حال کښې چې نوموړي ته د دغه درانه اثر مبارکي وایم د نور ښکلي او دراته خدمت کولو هیله ورته لرم.

په پای کښې دده او له ټولو محترمو لیکوالو څخه چې دافغانستان د نجیب ولس سره یې خپلې قلمي همکارۍ نه دي سپمولي د زړهٔ له کومې مننه کوم اود لوی خدای ﷻ له دربار څخه ورته زیات بریالیتوبونه غواړم.

په پېښتنې مینه

عبدالرحیم کرزی

د زراعت لیسانس

د الحاج عبدالودود کرزي زوی

ارواښاد استاد عبدالروف بېنوا په لمريز هجري ۱۳۵٦ کال کښې په پښتو ژبه اړولی او خپور کړی دی.

له يوې خوانه په هغه ژباړه کښې يو لوی څېرکی نه و ژباړل شوی او له بله پلوه يې چاپ شوې نسخې د ډېرو کمو خلکو لاس ته رسيدلې وې د همدې اړتيا له مخې ما ددغه کتاب د بيا پښتو کونې او خپرونې چاروته اوږه ورکړه او څو مياشتو په اوږدو کښې مې د کتاب ژباړه پای ته ورسوله. څرنګه چې هر چاپ شوی اثر يو څه کمې او غلطې لري، له همدې امله به ګران لوستونکي په دې هکله ما وبخښي او د بيا چاپ له پاره به رانه خپلې ګټورې لارښوونې او مشورې نه سپموي.

په پای کښې د کندهار ولايت د ښوونې او روزنې د پخواني لوی مدير فاضل استاد الحاج عبدالعلي خان د هغه مرستو ډېر ممنون يم چې هغوی له ما سره د کتاب د ژباړې پر وخت ګاللي دي، د لوی خدای له درباره ورته د اجر غوښتونکی يم.

تاسې درانه لوستونکي د کتاب لوستو ته رابولم.

په ټوله مينه

الحاج عبدالودود کرزی

د امريکې متحده ايالت

جنوبي کلفورنيا

د ۱۳۷٦ / ۱ / ۱۰ مه



# خپلې خبرې

تاريخ د اولسونو د پيژندګلوۍ غوره سند دی، ملتونه په تاريخ پيژندل کېږي او تاريخ دی چې موږ ته د تير مهال تجربې او پيښې روښانوي او تردې خايه يې رارسوي.
که تاريخ نه وای نو اوس به ډېر حقايق او واقـعيتونه تر خاورو لاندې وو او موږ به نه يوازې دا چې د هغوی له تېرو تجربو او کارنامو خبر شوي نه وای، بلکې د اوس مهال د ژوندانه په پېښو کښې به مو دا ډول بدلونونه،نه وو رامنځته شوي.

افغانستان هم يو له هغو سيمو څخه دی چې تاريخي پيښې او تجربې يې د نړۍ په تاريخ کښې خلنده باب ګڼل کېږي په دغه سيمه کښې له "تر تاريخ وړاندې " دور څخه زيات شمير اثار او اسناد راپاتې دي، دغه سيمه د نړۍ په تاريخي دوره کښې له غوره ارزښتونو څخه برخمنه ګڼل کېږي.

همدا وجه ده چې د دغه سيمې د يو لنډ خو مستند تاريخ ليکلو زياته اړتيا رامنځته شوې ده، د دغه سيمې د تاريخ د روښانولو او ليکلو دنده د هر افغان ستره تاريخي وظيفه ګڼل کېږي چې د نه ليکلو پر مهال به يې د خپل افغاني او ملي فرهنګ او کلتور درناوی نه وي کړي.

د نړۍ د دغه سترې تاريخي او ارزښتناکې سيمې يو لنډ او مستند تاريخ ښاغلي او پوه استاد ارواښاد پوهاند عبدالحی حبيبي څه د پاسه ديرش کاله د مخه په افغانستان کښې ليکلی دی او هغه مهال د افغانستان تاريخ ټولنې په دوو ټوکو کښې خپور کړی دی؛ دا کتاب له هغه غوره ارزښتونو څخه برخمن کتاب ګڼل کېږي چې څه ډول ددغه تاريخي سيمې د تاريخ ليکلو اړتيا ليدل کېږي.

دغه کتاب چې په دري ژبه خپور شوی په بشپړ ډول سره په تاريخي اسنادو او شواهدو بنا دی، هيڅ ډول بې سنده او افواهي خبرې په کښې نه شته او بايد چې د افغانستان تر ټولو غوره کتاب و ګڼل شي. دغه کتاب د هغه ارزښت له امله چې لري يې د دويم ځل لپاره په پېښور کښې د افغانستان د مهاجرينو د سازمان له خوا هم خپور شوی دی. څرنګه چې کتاب په تاريخي شواهدو او اسنادو بنا و له همدې امله زياته اړتيا ليدل کېده چې بايد دغه کتاب په نورو افغاني او نړيوالو ژبو هم واړول شي، چې د همدغه ضرورت له امله

# د لوی خدای په نامه

## سریزه

زمونږ ګران هېواد افغانستان هغه سیمه ده چې تر تاریخ د مخه له لرغونیو دورو څخه بیا تر اوسه د مدنیتونو چینه، د فرهنګونو د تېریدو لاره او د انساني فکر او تهذیب زانګو وه او د تاریخ په اوږدو کښې له دې فرهنګ زېږوونکي خاورې څخه ښه غښتلي دولتونه را پاڅیدلي دي او هم ددې خاورې خلکو په تاریخي کشمکشونو کښې تل خپله آزادي او ملي ښه ساتلې ده. له څه مودې راهیسې زمونږ په چاپیریال کښې، چې زمونږ د لوی او ترقي غوښتونکي پاچا اعلیحضرت محمد ظاهر شاه په حکیمانه لارښوونو له نویو پرمختیاوو او رڼاګانو نه برخمن دی، کلکه اړه لیدله کیده چې د افغانستان د تاریخ لنډیز په یوه دوو ټوکو کښې له لرغوني زمانې څخه بیا تر اوسني عصره په داسې توګه ولیکل شي، چې هم بشپړ وي او هم لنډ او هم په تاریخي پېښو سربیره لازم تاریخي تصویرونه، نقشې، جدولونه او رسمونه ولري چې زمونږ د ښوونځیو زده کوونکي او عام خلك په آسانۍ سره وکړای شي چې په هغه کښې د خپل هېواد تېرې تاریخي پېښې ولولي.

تېر کال چې زه د افغانستان د تاریخ ټولنې په ریاست وګمارل شوم د هغه وخت د اطلاعاتو او کلتور وزیر ښاغلي محمد عثمان صدقي زمونږ د چاپیریال دغه ښکاره ضرورت څرګند کړ او ما هم په بیړه په دغه کار لاس پورې کړ او د افغانستان لنډ تاریخ مې ولیکئ.

د دغه کتاب په لیکلو کښې مې په لویدیزو او ختیزو ژبو څو سوه ټوکه لیکل شوي کتابونه وکتل او د ټولو مطالبو حواله مې د کتاب په پای کښې ورکړه، خو د چاپ په وخت یو مشکل را پېښ شو چې ناچاره شوم هغه لمن لیکونه مې ایسته کړل او د څو بابونو په پای کښې مې د لازمو مراجعو نومونه ولیکل او هم د دغه ټوك په پای کښې به د ټولو مراجعو نومونه راوړل شي.



په دغه یادونه کښې زما مطلب دا دی چې ددې کتاب ټول مطالب مستند دي او موثق منابع لري، پر دې کتاب مې له خارجي او داخلي موثقو کتابونو څخه یو شمیر تصویرونه او رسمونه او توضیحي جدولونه هم زیات کړل. هیله من یم ګرانو هېوادوالو او هغو کسانو ته ګټور شي چې غواړي د افغانستان تاریخ په لنډ ډول ولولي.
لومړی ټوك تر اسلام وړاندې د لرغوني زمانې د چنګیز (۶۰۰ هـ) تر وتلو پورې او دویم ټوك د نورو اوو سوو کالو د خپلواکۍ د تر لاسه کولو پورې را اخلي[۱].

ددغه کتاب د مطالبو په برابرولو کښې زیار ایستل شوی دی چې پوره وي، خو لنډ او ګټور چې په راتلونکي وخت کښې د مفصل تاریخ لیکلو لار برابره شي او نمونه یې د "افغانستان بعد از اسلام" په لومړي ټوك کښې چې تېر کال خپور شوی دی لیدل کېږي په هغه کښې مې د افغانستان د اسلامي دورې د لومړي دوو سوو کالو مفصل تاریخ په زر صفحو کښې لیکلی دی. هیله من یم چې د ظاهرشاهي روښانه عصر د پوه پالنې په رڼا کښې ژر تر ژره دا هیلې تر سره شي.

پوهاند عبدالحی حبیبي
کابل جمال مېنه
د سنبلې لومړی ۱۳۴۶

۱- اوس دواړه ټوکه په یو ټوك کښې تاسو ته وړاندې کېږي. (ژباړونکی)

# لومړۍ برخه

## د افغانستان تر تاریخ د مخه دورې ته یوه کتنه

د مورخانو په اصطلاح هغه دوره چې انسان د لیك په موندلو نه و بريالی شوی، تر تاریخ دمخه دوره PRE HISTORIC بلل کېږي او تر هغې وروسته چې ليکدود را پيدا شوی تاريخي عصر دی، خو شرط دا دی چې د لرغونيو قومونو پاتې ليکل شوي اثار لوستل شوي وي. څرنګه چې تر اوسه ځينې ليکونه شته چې لوستل شوي نه دي نو له دې امله هغه په قبل التاريخ دورې پورې اړه لري او که کوم وخت ولوستل شول نو تاريخي مرحلې ته به ننوځي.

د شرقي هېوادونو تاريخي دوړې يې عموماً تر ميلاد دمخه د (٢٥٠٠) کال په شاوخوا کښې ګڼلي دي. دا ځکه چې د مصر او بين النهرين لوستل شوې ليکنې هم دومره عمر لري، خو په سند او هړپه کښې د موهن جوديرو موندل شوې ليکنې لاتر اوسه نه دي لوستل شوي او په تاريخي مرحله کښې شاملې نه دي.

په افغانستان کښې د "تر تاريخ دمخه اثارو" پلټنې له ١٩٣٦ م کـ ن څخه د اروپايي علمي هيئتونو له خوا پيل شوي او په نتيجه کښې يې تر



تاريخ دمخه د ډبرو د دورې اثار تر لاسه شوي چې د ډبرې د کارونې په دريمې دورې يعنې توږل شوې ډبرې او د خاورينو لوښو او فلزو د استعمال په دورې پورې اړه لري چې هغې ته د کلکولي تيك دوره وايي.

له دې علمي پلټنو څخه دا نتيجه تر لاسه کېږي چې دافغانستان او د افغانستان د ګاونډيو هېوادو په خاوره کښې د (٦٠٠٠) کلونو په شاوخوا کښې انسانانو مدنيت درلود، ځکه چې هم هغه مهال مرو ته نژدې د "انو" په سيمه کښې د مس کارونې آثار موندل شوي دي او تر تاريخي دورو دمخه آثار يې د افغانستان په ګاونډ کښې په دغو ځايو کښې موندلي دي:

### ١ - د پنجاب په هړپه کښې:

يعنې د افغانستان د غرو په لمر ختيزو ډاګو کښې چې هلته د ودانۍ اوښار آثار ليدل کېږي.

### ٢ - موهن جوديرو:

د افغانستان ختيزې جنوبي خواته په سند کښې د ښار کوڅې او د بازار نخښې او حتى د اوبو پاخه لښتيان او په هره کوڅه کښې د فضله موادو له پاره د پخو خښتو کوچني خاکدانونه هم ليدل کېږي.

په دغه لرغوني ښار کښې د مورد رب النوع مجسمې، پاخه خاورين لوښي، د سرو او سپينو زرو ډول ډول ګينې او د هغو عصرونو د فلزاتو صنعتي نمونې او فلزي بتان تر لاسه شوي دي چې د هغه لرغوني ښار په اړوند موزيم کښې خوندي پراته دي. او په هغو ښکليو اثارو کښې له عاجو څخه د پيل کوچنۍ مجسمې او د غټو او غښتليو غويو انځورونه شته چې پر ځينو انځورونو ليکنې هم ليدل کېږي. خو لا تر اوسه يې څوك په لوستلو بريالي شوي نه دي.

د سند د وادۍ تر تاریخ دمخه مدنیت چې د افغانستان په ختیزه خوا کښې د هړپه او موهن جودیرو تر منځ یوزر میله (د بابل د تمدن د ساحې څلور برابره او د مصر د تمدن د پراختیا دوه برابره) په یو شکل او ډول خپور شوی و، د ودانیو د جوړونې شکل او د خاورنیو لوښیو او د کار د سامان او وسایلو په جوړښت کښې بیخي سره ورته دي او پوهانو ترې دا نتیجه اخیستې ده چې:

دا مدنیت د افغانستان د خاورې په ختیزه خوا کښې د سند وادۍ له سره بیا تر پایه خپور شوی، شمالي او جنوبي پایتختونه یې "هړپه" او "موهن جودیرو" دوه ښارونونه وو او تر بابل پورې یې د لویدیزو خاورو له تمدن سره اړیکې درلودې او حتی تر میلاد (۲۰۰۰) شاو خوا د مخه په بابل کښې د هندي تاجرانو یوه محله موجوده وه. له هغو آثارو څخه چې د بین النهرین په کیندلو کښې موندل شوي دي، څرګندېږي چې د سند وادۍ خلکو اعشاري، ارقام وزنونه او پیماني پېژندلې. د هغه ښار له آثارو څخه چې په هړپه کښې ښکاره شوي دي څرګندېږي چې معتبرو خلکو په دوو پوړیزو ودانیو کښې ژوند کاوه اود استوګنې زیاتو ځایونو د اوبو څاه ګانې، حمامونه او تر ځمکې لاندې ګودامونه درلودل، حال دا چې عامه طبقه کارګران او کسبګران په کوچنیو دوو کوټو لرونکیو کورونو کښې استوګنه کوله، هر کور د یوه کوچني غولي په واسطه له بله کوره بېلېده او د دغو تر تاریخ دمخه خلکو ښارونوته نژدې ځینې کلاوې وې چې غالباً د غلې ګودامونه وو.

هغه کنډوالې چې د هړپه د تمدن له وروستیو مرحلو څخه نماینده ګي کوي د هغه ځای د اوسېدونکیو بې وزلي او انحطاط راښیي چې زیاتر و کورونو د سمڅو بڼه پیدا کړې وه او د ښارو جوړښت چې پخوا یې



نظم او ترتیب درلود بیخي ګډوډ شوی دی. پوهانو له دې څخه دا ډول نتیجه ترلاسه کړې ده:

۱- د دې ودانیو پر خلکو د غربي اریایانو یرغلونه پیل شوي او د دوی مدنیت یې را تیټ کړی و.

که څه هم د هړپه د لیکنو الفبا لوستل شوې نه ده، خو دا ثابته ده چې دا لیکدود تر آریایي مهاجرت دمخه دورې پورې اړه لري.

هغه ارابې چې اسانو کشولې په هغو خلکو پورې یې اړه درلوده چې په هندو اروپایي ژبو یې خبرې کولې خو د موهن جودیرو او هړپه د خلکو ګاډۍ غښتلیو او قوي غویو کشولې چې پلن او اوږده ښکرونه یې لرل او د دغو ښکلیو او غټیو غوایانو انځورونه پر موندل شویو مهرو، آثارو انځور شوي دي.

(لومړی او دویمه نومره عکس وګورئ)

۲ - دغه مدنیت ته ورته دا لړۍ د افغانستان په جنوب کښې د بلوچستان په نال او جاله وان لور لایي او همدا راز د سیستان په نادعلي او د ایران په ځینو جنوبي برخو کښې لیدل کېږي چې ځینې کړۍ یې تر بین النهرین پورې هم رسېدلي او پر هغو خلکو اړه لري چې د اریایانو تر هجرت دمخه، په هغو سیمو کښې میشت وو، څرنګه چې د دوی په لرغونیو آثارو کښې د مورد رب النوع په څېر مجسمې موندل کېږي، نو څکه کېدای شي چې دین، عقاید او فرهنګ یې هم سره ورته وي.

هغه آثار چې د بلوچستان د کوټې د شمال لویدیځ په څو میلۍ کښې یې د ګل محمد په کلا کښې موندل شوي دي پر دې دلالت کوي چې د هغې سیمې پخواني اوسېدونکي لا تر هغه وخته د خاورینو لوښیو په جوړولو نه پوهېدل او د ډبرو له چړو او د هډوکیو له ستنو او تبرو څوکو

لرونکیو تیرو په څېر الاتو څخه یې کار اخیست او د ودانیو او کورونو جوړول هم دود نه و، خلك څاروي روزونكي كوچيان وو چې په را وروسته وختونو کښې یې خاورین لوښي او ودانۍ جوړې کړې دي، چې لرغون پوهان یې د "ږوب د ناوي لوښي" بولي او پر هغو، باندې ځینې توري او هندسي انځورونه او د هوسۍ او بوك لرونكي غوايي تصويرونه انځور شوي، په كورو کښې یې د وزو ډېر هډوکي لیدل کېږي، چې د دوی پر ډېرو غوښو خوړلو دلالت کوي. د غلي د میده کولو له پاره یې ډبرین اونګونه درلودل، په داسې حال کښې چې د هغه مهال په موندل شویو آثارو کښې د اوسپنې اوزارونه لیدل کېږي، پر ځینو خاورینو لوښیو (T.A.W.V) ته ورته شکلونه شته چې د هغو په څېر بل ځای نه دي لیدل شوي. ځکه نو لرغونپوهان د هغو پر پېژندنه پټه خوله دي، د دغه لرغوني مدنيت عمر د شپږو زرو كالو په شاوخوا كښې اټكل شوی دی.

همدارنګه د هړپه د سیمې دا تر تاریخ وړاندې مدنیت د هندوستان د کچهه تر جزیره نما پورې غځېدلی دی او پر ۱۹۵۴- ۱۹۴۰م د هغه ځای له زیاتو غونډیو څخه داسې اثار تر لاسه شوي دي چې د هړپه د مدنیت آثارو ته بیخي ورته دي، د کشفیاتو دا ساحه د راجکوټ ښار جنوبي خوا ته پرته ده.

خو د افغانستان په خاوره کښې تر اوسه "تر تاریخ وړاندې" څو مهم او غوره ځایونه شته:

۱- پر ۱۹۳۶م کال سراورل ستین او موسیوګیر شمن او هاکن د سیستان د نادعلي او زرنج د سروتار او کنګ په کلا کښې کیندنې وکړې، چې په هغه کښې ډبرین لوښي او ډول ډول وسلې او غشي او رنګه ښایسته شوي کوډرې او د سپینو زرو غوړوالۍ او له هډوکیو څخه جوړ شوي شیان



کشف شوي چې پوهانو هغه په مرو کښې د "انو" او په لویدیځ کښې د کاشان او په جنوب ختیځ کښې د سند موندل شویو آثاروته ورته ګڼلي دي، له هغو څخه دا نتیجه اخلي چې د انساني مدنیت د دې دورې لویه صحنه د سند له وادۍ څخه نیولې بیا د نیل تر سیمې پورې د افغانستان په ګډون پراخوالی درلود.

موسیو ګیر شمن د "سرخ داغ" غونډۍ چې دېرش متره لوړ ده (۱۲) متره ژوره وکیندله او تر میلاد یوزر کاله د مخه د مدنیت آثار یې وموندل دی وایي:

که یوویشت متره نوره هم وکیندل شي کېدای شي چې تر میلاد څلور زره کاله دمخه خواوشا آثار وموندل شي. چې د سند د بین النهرین او مصر پخوانیو مدنیتونو ته نژدې دي، په دې خاوره کښې داسې پخوانۍ غونډۍ ډېرې دي.

۲ - تر تاریخ د مخه آثار چې تر دا مهاله په افغانستان کښې لټول شوي دي د کندهار لویدیځې خوا ته د پنجوایي او ارغنداو په وادۍ کښې د بدوان د غره له سمڅو او د یمراسۍ له غونډۍ څخه هم، تر لاسه شوي دي چې د سند، پنجاب او د بلوڅو د خاورې تر تاریخ دمخه مدنیتونو پورې اړه لري او د مورد رب النوع مجسمې موندل شوي دي.

په ۱۳۴۴ ش کال د کندهار شمال لویدیځې خوا ته ٦٦ کیلومتره نیرې د مونډیګك په غونډۍ کښې علمي پلټنې وشوې، چې دارغنداو په ودانۍ کښې تر تاریخ دمخه د پېنځو زرو کالو پخوا د مدنیت د آثارو نمایندګي کوي پوهان وایي چې د کندهار لویدیځې خوا ته د کشکنخود له وده چې اوس وچ شوی دی اوبه کېدلې او سر سبزې وې. دا غونډۍ چې درې زره کاله پخوا د وروستي ځل له پاره د استوګنې ځای و، اوس د جوي پېښو

له امله يو مخروط شکل لري، د هغې لارې پر سر پرته وه چې د رخد (ارغنداو)، پښين او سند د وادۍ خواته د هرات، فراه او هلمند د شاخوا خلکو د تېرېدو لاره وه او همداراز دا لار د ترنك اوغزني او د هندوکوش جنوبي سيموته رسېدله، مطلب دا چې د هلمند ؤادي يې د ارغنداو او ترنك له واديو سره نښلولې.

د مونډيګك غونډۍ تر ميلاد وړاندې د څلورزرم کال له پاى څخه د لومړي زرم ق،م کال تر پيله پورې د ودانۍ پينځلس مرحلې تېرې کړې دي په آخره او پورتنۍ مرحله کښې يې د غلې ګودامونه وو چې پخسه يې ديوالونه يې درلودل، د غلې د ګودامونو ځايونه د يوه اوږده غولي په ډول وو چې د هړپه د موندل شويو آثارو ګودامونو ته بيخي ورته وو، خو د هړپه تر ګودامونو کوچني وو، په کښته پوړ کښې يې د څارويو د ساتنې له پاره خونې وې. څرنګه چې د ګودامونو ودانۍ د نوموړې غونډۍ له دريو مختلفو طبقو څخه راوتلي دي، ځکه نو وايي چې داً ګودامونه د هغه مهال د انسانانو د استعمال له پاره په مختلفو زمانو کښې جوړشوي وو.

په لوړ پوړ کښې د ګودامونو د ساتندوى له پاره يوه کوچنۍ کوټه ليدل کېږي، چې په هغې کښې يو څه خاورين لوښي، ډبرين او د مفرغ برې (پيکانونه) او مچلوغزې او د هغوى د ختيو ګولۍ موندل شوي دي او دا ورڅخه څرګندېږي چې د ګودامونو ساتونکيو دا وسايل د ګودامونو د ساتنې له پاره کارول چې د دغو دفاعي څيزونو عمر له اوس څخه تر دريو زرو کالو (شاوخوا) اټکل شوى دى.

د غلې د ګودامونو تر ودانيو پخوا له مکعبو ډبرو څخه چت لرونکې خونې جوړې شوې وې چې د ودانيو په شمالي برخه کښې د خښتو ودانۍ هم شته. د ودانيو مخ ته يو ارت غولى دى چې خواوشايې يو څه



کوچنۍ خونې شته او د لويې مانۍ نخښې هم ښکارې چې له اومو خښتو څخه په نيم مخرطي ډول ودانه شوې ده او د خښتو لويې ستنې لري چې په سپين رنګ انځور شوي او اوس هم د دې ستنو بهرنۍ منظره له برمه ډکه په نظر راځي. په دې ستره ودانۍ کښې يو د مفرغ چاقو او د هډوکي لاستې او د ښکليو کودړو تېوټې او د ادېتا (ادې ـ مور) د خير او برکت د رب النوع يوه ماته مجسمه چې د بلوچستان او سند موندل شويو مجسمو ته بيخي ورته دي له ډول ډول وسلو سره تر لاسه شوي دي.

په نورو غونډيو کښې د هغو خلکو د استوګنې د ځايونو نخښې شته چې پورتنۍ غونډۍ يې عبادت ځاى و، په دې ودانيو کښې د نغري نخښې د هغه له اسبابو سره او يو څو اونګو نه او د هغوى دستې لاس ته راغلې دي، چې په غالب ګومان د دوا پلورلو دوکان ګڼل کېداى شي. په نورو خونو کښې د پخو خښتو تنور او نيم کاره توبرې (پيکانونه) ليدل کېږي. د زياتو خونو بامونه شيوه ګي لري او په د باندنيو ديوالو کښې مستعمل توبرې پيکانونه او مسې سرنېزې ايښودل شوې دي. په هغه هديره کښې چې په دې ودانيو پورې اړه لري اووه کالبوتونه (اسکليټونه) پيدا شوي دي. د مونډيګك د غونډۍ له کښته څخه لوړې خواته مختلفې طبقې داسې دي:

له ځمکې څخه پورته خوا ته تر نهم پوړ پورې د نيم کوچيتوب ژوندانه نخښې ليدل کېږي، چې د هغو له مخې ويل کېداى شي چې د هغه ځاى لومړني اوسېدونکي تر څه وخته نيم کوچي مالداران وو او د کورونو ودانۍ يې هم پخسه يې وې، تر هغو وروسته تر دريو پوړيو پورې ودانۍ له اومو خښتو څخه بشپړې شوې وې، چې خاورين لوښي يې په کښته طبقو کښې ساده او ابتدايي دي تر هغې وروسته د لوښيو کودړې ښکلې کېږي. تر هغې چې د ختيو انځور شوي لوښي رامنځته کېږي، پر هغو کتېوريو (جامونو)

چې پر پایو ولاړ دي د ښاروبو، مرغانو، ګلانو او د جګو ښکرو لرونکي پسونه، تنځري (زرینې زرکې) پیل مرغ او د (عشق پیچان) د پاڼو شکلونه لیدل کېږي. د ختو دا انځور شوي لوښي له اتم پوړ څخه وروسته زیات دي چې د "کوټې" خواوشا موندل شویو لوښو ته ورته دي مفرغي فلزات او مس له شپږم پوړ څخه پیل کېږي او هغه وخت چې د پینځم پوړ سکاره یې د کاربن "۱۴" له لارې و ازمویل نو د دې پوړ نېټه یې ۲۶۲۵ ق.م په شاوخوا کښې وټاکله. د موسیوکزال د تاریخ وړاندې دورو د متخصص په وینا دا غونډۍ تر پینځو زرو کالو ډېر عمر لري نو ځکه د سند تر موهن جودیرو پخوانۍ او لرغونې ده. (وګورئ ۴.۳ نومره عکسونه).

۳. د افغانستان په شمالي برخو کښې هم د تر تاریخ دمخه مدنیت آثار کشف شوي دي په دې مانا چې په شمال لویدیځ ګوټ کښې د مرو په انو کښې تر تاریخ وړاندې مدنیت نخښې تر لاسه شوي دي، همدا ډول د افغانستان په شمال ختیځ لور کښې د تاریخي آثارو بقایا شته چې د ۱۹۶۲م کال پر اکتوبر د ایټالوي لرغونپوهانو له خوا وموندل شول.

د هزار سم دښته د هندوکوش په شمالي لمنو کښې د "۳۳۰۰" فوټو په لوړوالي او د "۱۶" کیلو مترو په اوږدوالي د سمنګان شمال لویدیځ لور ته پرته ده چې په لرغونې زمانه کښې هم د هند، کابل، بغلان، کندوز، بدخشان او چین لاره له همدې وادۍ څخه تېرېدله او همدلته د غره په ډېرو کښې هغه طبیعي سمڅې شته چې پخواني انسانان پکښې اوسېدل او هلته د ډېرین اورتک سامان او ډېرې توږل شوې ډبرې کشف شوې دي. چې ځینې ودانۍ یې هم په هماغې زمانې پورې اړه لري، چې انسان تر سمڅو او ګارو بهر استوګنه کوله او بې ډوله ابتدایي دیوالونه یې "۱/۲۰" مترو لوړ جوړ کړي دي چې د هغو په منځ کښې له "۲۰" څخه تر "۳۷" مترو پورې د



ودانۍ بلاکونه لیدل کېږي، دغو ټولو ودانیو ۳۳۵ هکتاره ځمکه نیولې ده، د هزار سم له سینده د اوبو د کانال د غاړې له (۱۲۵) متره دیوال سره د اوبو رسولو نخښې هم څرګندې دي.

د دغه ځای د ګارو په سمڅو کښې مثلث ډوله خونې لیدل کېږي چې لویې تاخچې لري او له ډبرو څخه دننه درې کنجه چوکۍ توږل شوې دي، د دیوالونو په جوړولو کښې یې د ډبرو له تختو څخه کار اخیستی دی چې د نغریو نخښې هم په کښې څرګندې دي.

د هزارسم په سمڅو کښې کیندل شوي شکلونه او رسمونه لیدل کېږي چې د ایټالوي لرغونپوه هیئت د راپور لیکونکي په وینا داسې شکلونه د لویدیزې اروپا په تر تاریخ وړاندې آثارو کښې هم لیدل شوي، خو د هزارسم د آثارو انځورونه څلور ډوله دي، لومړی انساني شکلونه، دویم رسم شوي لاسونه، دریم د ښاروبو شکلونه څلورم د راز راز شکلونو ګډون، چې ماناوې یې هم نه دي څرګندې. "وګورئ ۵ ـ ۶ مه نومره عکسونه".

د تر تاریخ وړاندې زمانو پوهان د هزارسم د سمڅو دا شکلونه هغو شکلونو ته ورته او نژدې ګڼي چې په هسپانیا، ایټالیا، سویس او ایرلنډ کښې یې موندلي دي او داسې نتیجه اخلي چې تر تاریخ وړاندې. دا ډول شکلونه رسمول دود وو، د بېلګې په ډول:

د هزارسم د سمڅو له شکلونو څخه د پوڅکۍ یو شکل دی چې نیمه دایره یې تشکیل کړې او هغه دایره بیا یو عمودي خط پرې کړې ده او له هغې څخه د انسان بدن مراد دی، چې بازوګان او شمزۍ یې ښوولې شوې دي او هغو شکلونو ته ورته دي چې تر تاریخ وړاندې د هسپانیا، ایټالیا او ایرلنډ په آثارو کښې هم لیدل شوي دي. (وګورئ ۷ مه نومره عکس).

د هزارسم په آثارو کښې دا ډول مشابه شکلونه ډېر دي چې د اروپا

له - تر تاریخ وړاندې لرغونیو آثارو څخه په پاتې شکلونو کښې ښوول کېدای شي.

تر تاریخ وړاندې په کلکولي تیك او توړلیو ډبرو د استعمال په دوره کښې د بدخشان لاجورد هم د یادولو وړ دي، څکه چې د کاشان د سیالك په غونډۍ، د سومر او بین النهرین په څمکو د مصر د فرعون توتن خامن په هدیره او هم په عیلام کښې د لاجورد د ډبرې راز راز نمونې موندل شوې دي او دا څرګندوي چې د بدخشان د لاجوردو ډبرو شپږ زره کاله پخوا شهرت درلود او استعمال یې تر مصر پورې هم رسېدلی، د دغه هېواد خلکو له نورو ختیزو او لویدیزو هېوادو سره لرغونې مدني اړیکي درلودل. (وګورئ اتمه نومره جدول).

# تر اسلام دمخه تاریخي افغانستان

هغه مهال چې د تاریخي افغانستان په باب غږېږو موږ هغه ټولې سیمې په نظر کښې نیسو چې له افغانستان سره یې په تاریخي پېښو او د سیاسي، مدني او فرهنګي حوادثو په جریان کښې ګډون درلود او د ګډو تاریخي عواملو تر اغیز لاندې یې اوضاع یو بل ته سره ورته وه.

په دې جغرافیایي سیمه کښې د ایران د فلات ختیزه برخه د سند له سینده بیا د خراسان تر پایه (د امغان) پورې ختیځ او لویدیځ شامله ده او په شمال کښې هم د آمو شمالي برخې تر سمرقند او پامیره د غرو لمنې په کښې راځي او په جنوب کښې پر بحیره عرب تمامېږي دا سیمې عموماً ګډ تاریخ لري.

## آریایان:

د "۲۵۰۰ ق.م" په شاوخوا کښې د آریایي سپین پوټکیو لوی ټولی په آریانا ویجه نومي هېواد او د امو په شمالي غاړو کښې د کوچیتوب او مالدارۍ ژوند تېراوه او چې شمېر یې ډېر شو نو د امو جنوبي سیمو او د باختر ورشو ته راوختل او د هندوکوش په شمالي او جنوبي لمنو کښې میشت شول. دغو خلکو د نفوسو او قبیلو د زیاتوالي له امله ختیزې خوا ته هجرت وکړ او د سند له سینده د هند شمالي ارتو سیمو ته تېر شول او په

هغه ځمکه کښې یې یو مدنیت جوړ کړ چې د "ویدا" په پخوانیو څلورو کتابو کښې یې انعکاس لیدل کېږي له همدې امله یې "ویدي مدنیت" بولو چې د (۱۴۰۰ق.م) په شاوخوا کښې موجود و او په همدغو کتابو کښې د افغاني لویو قبیلو یوه برخه نومونه لکه پکت (پښتون) الینا (د لغمان او نورستان شمالي خلك)(۱) او نور راغلي دي او موږ له دغو کتابو څخه د لرغوني افغانستان د خلکو ژوند، ژبه، مدني او فرهنګي وضع معلومولای شو.

څلور ویده دادي: ریګ وید، سام وید، اتهرواوید، یجورويد، چې تر ټولو پخوانی وید "ریګ وید" دی او په هغه کښې د افغاني قبیلو، پاچاهانو، نومیالیو خلکو، غرونو او جغرافیایي ځایونو ډېر نومونه، راغلي دي.

## ارینه ویجه:

ارینه ویجه چې په پښتو کښې تر اوسه "اویجه" د ټاټوبي او د استوګنې د سیمې په مانا کارول کېږي، د تاریخ پوهانو په وینا د پامیر سیمې او یا د خوارزم شاوخوا او د خزر د "دریا چې" څنډو ته ویل کېده، چې له هغې جغرافیایي سیمې سره نښتې ده چې موږ اوس څېړنه په کښې کوو.

څرنګه چې د آرین خلکو (آرین د نجیب، کښتګر او کرونکي په مانا) د ژوندانه د دې دورې آثار لا تر اوسه نه دي تر لاسه شوي او تر تاریخ وړاندې زماني برخه ده، ځکه نو د دوی د ژبې، د ژوندانه د ډول او د دین و هنر په اړه معلومات نه شته، ډاکټر ګوستاولوبون هغه آریایي لرغونې ژبه چې په ارینه ویجه کښې ویل کېدله د "آریك" په نامه یاده کړې ده.

۱. دا نوم د الیشنك او الینګار د درو په نومونو کښې ښکاره دی.



## ویدي مدنیت:

د آرین خلکو تاریخي دوره له ویدي سرودوسره پیل کېږي او له همدې تاریخي سرچینې څخه موږ د آرین د خلکو افکار، عقاید د ژوندانه ډول او له افغانستان خاورې څخه د دوی مهاجرت څرګندوو. د ژبپوهنې له پرتلې څخه دا ښکاري چې د افغانستان د ژبو او د ویدي او سنسکریت ژبو تر منځ ډېر ژبنی یووالی شته.

ویدي سرودونه په مختلفو زمانو کښې ترتیب شوي دي او په شفاهي توګه له یوې خولې بلې ته او له یوه نسله بل ته را نقل شوي دی او لکه چې اوسني وید پېژندونکي پوهان وایي: د لوړو یادو شویو کتابو پر سرودو سر بېره یوه برخه نور لرغوني سرودونه ورك شوي دي چې د وید په خپل تعبیر "پخوانیو زیشیانو" یعنې پخوا نیو پوهانو به ویل او یادا چې ځینې لرغوني سرودونه چې نوې بڼه ورکړل شوې ده هم موجود وو چې غالباً یې د افغانستان په ورشو او د آرین خلکو په هغه ژبه پورې اړه درلوده چې دوی لا د هند شمال د اوو سیندونو شاوخوا ته مهاجرت نه و کړی.

څرنګه چې ویدي کتابونه، ویدي ژبه او مضامین اوستایي سرودو ته چې د سند په لودیزه ارته ورشو کښې پیدا شوي، بیخي ورته دي او بشپړ نژدېوالی ورسره لري، ځکه نو ویل کېدای شي چې د ویدی د لرغونیو ورکو شویو سرودو زانګو همدا د افغانستان او باختر ورشو ده چې اوسنیو موجودو سرودونو یوه برخه به د هغو ورکو شویو سرودونو نوی ډول وي.

د لرغوني افغانستان له خاورې سره د ویدی مدنیت ډېره ټینګه اړیکه له دې څخه ښکاري چې د ویدي او سنسکریت پخوانی ډېرې کلمې په پښتو او دري ژبو کښې ریښې لري او ښایي چې دا ژبني میراثونه له لرغونیو اریایي نیکونو څخه دغو اریایي ژبو ته پاتې شوي وي.

د بېلګې په ډول د "اریا" کلمه دوې علمي ماناوې لري:

د دې کلمې مانا ځینو په "اصیل" او "نجیب" کړې او ځینو بیا په "زارع" او کرونده ګر". څرنګه چې په پښتو کښې د "آره" کلمه د "اصل" په مانا راغلې ده او هم کله کله د "کرنې" او "بزګرۍ" مانا لري نو ځکه ویل کېدای شي چې د نسبتي نون په زیاتېدو "آرین" (لکه پلن = پیاده، تورن = شمشیری او نور) د کروندګر په مانا وي او څرنګه چې کرنه د خلکو په منځ کښې یو شریف کار او کسب و، نو ښایي چې تر هغه وروسته د "نجیب" او "شریف" مفهوم مجازاً ورکړل شوی وي.

ارین خلك چې هند ته ولاړل هغې ورشوته یې "اریه ورته" یا "آریه ورشه" وویل او دا کلمه تر اوسه په پښتو کښې د "ورشو" په ډول د ټاټوبي او د استوګنې د ځمکې او مرتع په مانا شته.

په پښتو کښې تر اوسه "سند" ته سیند وایي او دا کلمه په ویدي ژبه کښې "سندهو" ده.

د ریګوید په سرودو کښې د افغاني سیمې د ډېرو سیندونو یادونه شوې ده لکه سندهو (سند) کوبها (کابل)، ګومانې (ګومل)، کرومو (کورم)، سویتی (سوات) ورکه (کونړ) رودونه او ګندهارد (کابل مجرا) او هرد ویتي = سره سوتي (ارغنداو یا اراکوزی، چې اوس یې د پخواني نامه رېښه په دهراوت کښې ساتل شوې ده او بهالانه (د بولان دره).

په اتهرواوید کښې د بلخ نوم د "بلهیکه، په شکل یاد شوی دی، چې وروسته د مهابهارته په کتاب او د سنسکریټ په ادبیاتو کښې "بهلیکه" شو او رېښه یې له بهلي - بخدي څخه راوتلې ده.

همدارنګه په اتهرواوید کښې د ګنداریس ( د ګندهارا اوسېدونکي) تر څنګه د منجوان غره ذکر شوی دی، چې همدا اوسنی منجان غر دی چې



د نورستان او بدخشان تر منځ پروت دی.

په ویدي سرودو کښې د لسو اریایي قبیلو جګړه یاده شوې ده، چې د ویدا د کتاب تر لیکلو (۱۴۰۰ ق.م) دمخه دراوی (پنجاب پر غاړه شوې ده او په دې قبیلو کښې د افغانستان د خواوشا خلکو هم ډېر نومونه شته لکه الینا (د الیشنګک او الینګار خلك) او بهلانه (د بولان د درې خلك) او شبوا (د سند د غاړې خلك) او پورو (د ګندهارا د شاوخوا خلك) او پکتهه (پښتون).

له دې جملې څخه د "ریګ وید" په دویم ټوک کښې د پکته د قبیلو او د هغوی د نومیالیو کسانو او پاچاهانو څو وارد یادونه شوې ده، چې یو له هغو ځنې پکتهه نامتو پاچا (توروینه) (توروهونی = شمشېر باز) نومېده او د ارغنداو د هراوت (هرد ویتي) په وادۍ کښې د پښې، ډسه، پراوته او بریسه په یادښت راغلي دي، چې اوس په افغاني قبیلو کښې بړیڅ او پنې د کندهار په جنوب او د سیوي په وادۍ کښې شته او همداراز پخوانیو نومو ته د ډاسو (سلیمانخېل) او پروټ (الکوزي) د قبیلو بنسټ لا پاتې دی.

هغه اریایي نژاده خلك چې له اریانه ویجه څخه د هندوکوش شمالي او جنوبي سیموته راغلل، کوچیان وو او د چوپانۍ ژوند یې درلود. پر (۱۹۳۹م) سمرقند ته نژدې په "تل برزو" کښې پر خاورین لوښي یو تصویر موندلی شوی دی، چې هغه د کیومرث (ګومرد - یا ګوپت شاه) د یو پخواني اریایي پاچا تصویر بولي، چې نیم یې سړی او نیم یې نر غویی دی او ګویښت د اوېستا په یوه برخه کښې هم شپون پاچا بللی دی له هغه څخه څرګندېږي چې دغو خلکو د کوچیتوب په وخت کښې هم پاچاهان لرل، کولا (کهوله) او کورنۍ د دوی د ژوند اساس و، چې له هغوی څخه بیا ډلې پیدا کېدلې او د "پتي" په نامه یې مشر لاره، بیا چې څو کوله (کهوله) سره

یوځای کېدل "ګرامه" یا "ویسه" ځنې جوړېده شاهي ټاټوبي ته یې "پور" وایه او دا درې سره کلمې تر اوسه د سړیو او ځایو په نومونو کښې شته لکه: باګرام، میرویس، شېرپور.

لومړنیو آریایانو مخکښې تر هغې چې هند ته هجرت وکړي کاست (ټولنیزه ډلبندي) یې نه پېژندله، خو هغه وخت چې په هند کښې د هغه هېواد له پخواینو تور پوټکیو سره مخ شول، نو پر څلورو طبقو، برهمن (روحانی) کشتریه (جګړن) ویسیه (ښاریان او کسبه) او سودرا (ناملموس) وویشل شول چې ذې اجتماعي طبقه بندۍ د دوی په وروستنیو تاریخي او ټولنیزو اوضاعو کښې څرګنده اغېزه درلوده.

په ویدي کتابونو او داریایي نژاد په نورو آثارو کښې داسې لیدل کېږي چې:

پاچاهي د مهاجرت له لومړنیو وختو څخه د دوی تر منځ موجوده وه او د ډول ډول ارباب انواعو پرستش یې کاوه او د "سبها" او "سمتي" په نومونو یې جرګې او د (سامانه) په نامه یې مېلې لرلې، پېغلو له زلمیانو او ښځو له نارینه و سره مینه کوله او د واده دودونه یې هم درلودل. د کورنیو افرادو د ډېرښت له پاره یې تل دعاوې کولې، د ښځو په ډلو کښې شاعرانې هم وې، چې ځینې سرودونه یې د ریګ وید په لومړي کتاب کښې ساتل شوي دي. دغو خلکو ورزشي لوبې، د اس سپرلیو اتڼ، نڅا او موزیك هم درلود او پر کرنه او مالدارۍ بوخت وو او د وړیو او څارویو له پوټکیو یې کالي جوړول، د پسونو او وزو رمې او دغو یو ګلې یې درلودې او د کورنیو شتمني یې د څارویو رمې او په تېره بیا د پیورو غواو درلودل وو. کله به چې د افغانستان غرو ته د "سوما" د بوټي د رانیولو (اخیستلو) له پاره راتلل خپل غوایي به یې د خریدارۍ د واحد په توګه راوستل چې هغه ته به یې



پاسو (PASU) ویل چې د پیسې (پولی واحد) کلمه له هغه څخه راوتلې ده.

له صنایعو څخه یې د لرګیو تراشنه، فلز کاري، د ټوکرانو او پوزیو (بوریا) اوبدل، د خاورینو لوښیو جوړونه، فلزي تزئینات او د اربو جوړول زده وو.

خوراك او څښاك یې د غلو دانې، شیدې او نور لبنیات، د ښکار غوښې او د سوما او سوریا شیره وه.

د طبعي عناصرو عبادت یې کاوه لکه ارونا (د اسمان رب النوع) اندرا (د جګړې رب النوع) سوریا (لمر) اګنی (اور) سوما (غرني واښه چې له هغو څخه یې مشروبات تیارول) ماروت ( باد ) او نور اود هر یو په نامه یې قربانۍ درلودلې، خپلو پوهانو ته یې "ریشي" ویل چې په پښتو کښې اوس ددې کلمې له ریښې څخه د رشه کلمه د خوی، خلق او پوهې په مانا لرو.

## اوېستایي مدنیت:

د افغانستان د اریایي خلکو دویم مدنیت په بخدي (بلخ)، د هندوکوش په شمالي او جنوبي سیمو او د هلمند په وادۍ کښې و چې د (۱۲۰۰ ق.م) په شاوخوا کښې پیل شوی او له هغې دورې نه یو کتاب د اوېستا په نامه پاتې دی چې پېنځه بابه لري.

څرنګه چې په دې اړه زموږ د معلوماتو سرچینه د اوېستا د کتاب پاتې برخه ده نو ځکه دغه مدنیت او فرهنګ ته "اوېستایي مدنیت" وایو څرنګه چې دا فرهنګ په بخدي او افغانستان کښې زېږېدلی او را منځته شوی دی ځکه نو د دغه هېواد په تاریخ کښې ډېر زیات ارزښت لري. د اوېستا کتاب د افغانستان د لرغونیو خلکو مدني، فکري، او فرهنګي اوضاع په ښه ډول څرګندوي.

د اوېستا له کتابه څرګندېږي چې آريايي خلك د کوچيتوب، مالدارۍ او کډه پر شا ژونده مدنيت ته رسېدلي او په کليو او ښارو کښې مېشت شوي دي او د اقتصادي او ټولنيز ژوند په مراحلو کښې يې يوه نوې دوره پيل کړې ده.

په دې دوره کښې لومړی ځل په بلخ کښې پاچاهي را منځته شوه او د "يمه" (جم) په نامه يو پاچا د بلخ ښار ودان کړ او هم په دغو خلکو کښې يو ټاکلی ايين د مزد سينه = مزد يسنا (د خدای ستاينه) په نامه منځته راغی چې مدني او روحي قوانين او هدايتونه يې لرل، موسس يې زره توشتره = زردشت و چې د کورنۍ په نامه "سپتمه" يا "سپيتمان" يادېده (چې دا نوم په پښتو کښې دوی کلمې "سپين" او "تمه" يا "تمان" د نژاد په مانا دی).
د زردشت د تبليغ د رامنځته کېدو ځای بخدی (بلخ) او سيستان دی. (وګورئ نهمه نومره عکس).

د زردشت پلار پورو شاسپه (د زاړه آس خاوند) او مور يې "دوغدو" او د پلار له خوا نيکه يې پتير ګتراسپه نومېده د څلورو ورونو نومونه يې داوو:

رتوشتر، رنګوشتر، نوتريکا، نی وتيش.

د ده لومړنۍ ښځه چې نوم يې څرګند نه دی (د ايست واستره) مور وه او درې لوڼې يې لرلې د زردشت دويمه ښځه د دوو زامنو "هوره، چيتره اوراتت نره" مور وه، دريمه ښځه يې چې په لمر ختيزه ورشو او د بخدي په سيمو کښې کړې وه د جاماسپ (د ګشتاسپ وزير) د ورور (فره شه وشتره) لور وه او "هووی" نومېدله، د ده له زامنو څخه "ايسيت واتسره" د روحانيونو مشر و".

او "اوروتت نره" د بزګرانو لارښود او "هوره چيتره" د جنګياليو



افسر بلل کېده د ده د پيروانو درې ګوني ډلې، د زردشت د دغو درېو زامنو له خوا رامنځته شوې دي، درې لوڼې يې هم درلودې چې فريني، ثريتي، پيورو او چيستي نومېدلې.

د زردشت د ژوندانه زمانه په يقيني توګه معلومه نه ده، خو د زردشتي کتابونو د روايتو له مخې د (۶۶۰ق،م) په شاوخوا کښې زېږېدلی او پر شل کلنۍ يعنې پر (۶۴۰ق.م) کښې منزوي شوی، پر ديرش کلنۍ يعنې پر ۶۳۰ ق،م يې د لارښوونې ادعا کړې ده، پر ۴۲ کلنۍ يعنې پر ۶۱۸ق،م کښې "ګشتاسپ" پر ده وګروهېد او د ده په عقيده شو او پر (۵۸۳ ق،م) په اووه اويا کلنۍ د توراني "ارجاسپ" د يرغل پر وخت د بلخ په دوهه (آتشکده) کښې د توراني "براتر کرش" په لاس ووژل شو، خو څېړونکي پوهان دا کلونه سم نه بولي، او د ده زوکړه يې د ۵۸۸ق،م په شاوخوا کښې ګڼلې ده.

زردشت له هغو لرغونيو کسانو څخه دی چې په لرغوني افغانستان کښې يې پر نوي اقتصادي بنسټ د يو اساسی او ژور رفرم بنسټ اېښی دی او د " ژ، دو مزيل" په وينا:

"ده خپل اقتصادي سيستم په داسې وخت کښې منځته راوړی دی، چې د اريايانو يوه ډله دکوچيتوب له حاله راوتل او کليوالي ژوند يې غوره کاوه."

په دې توګه چې د څارويو د څړ نامعلوم ځايونه يې د هر ټبر او قوم له پاره د څړ په ټاکلو ځايو اليش کړل او په همدغه دليل يې غويي او غوا ته چې د خوراك او کرهنې يوازنۍ وسيله وه په درنه سترګه کتل او حيواني سرې په کليوالی تشکيلاتو او کرهنه کښې خاص اهميت موندلی و.

زردشت د يوه خدای (اهوره مزده - يوبادار) په يووالي او بې ساري

عظمت قايل شو او له پخوانيو خدايانو څخه يې چې آريايانو ورته عقيده درلوده مخ وګرځاوه، دی وايي چې:

"تر يوه خدای وروسته د نړۍ له پيله څخه دوه روحه شته، چې يو پر ښه لار او بل پر بده لار ځي او ټول ژوند يوه باطني جګړه ده چې د شر د قوتو پر ضد ادامه لري او په دې دايمي جګړه کښې رڼا او تياره عقل او اهريمن يو له بل سره مقابل دی".

زردشت په خپل ايين کښې د څارويو قرباني او د سوما نشه راوستونکي شراب چې لرغونيو اريايانو درلودل، له منځه وړي دي.

دی وايي: "د (سوما) کثيف نشه کوونکي شراب څښګه له نېکۍ سره مرسته کولای شي. د بزګر سړي غويی تر دې چې قرباني شي، ښه او ګټوره دا ده، چې د خپل خاوند په لاس کښې وي"

د زردشت په ايين کښې د آخرت پر ورځ، د اعمالو پر محاسبې، د رښتيا پر بري، د درواغو پر ماته او د جنت، دوزخ، چنوات (صراط) د پله او د ملائکو پر وجود عقيده شته او آذر (اور) يې هم مقدس ګڼلی دی، چې د ټولو موجوداتو په کمون او د طبيعت په مواليدو کښې په وديعت ايښود شوی او د ژويو (جانورانو) د ژوندانه جوهر او د باطني غريزې تودښت نغری دی، نو ځکه د زردشت پيروانو د آذر د نمانځنې له پاره دوهې (آتشکدې) درلودې.

د زردشت په ايين کښې د نيکۍ قوتونه دا ميشه سپينه (هميشه سپين او مقدس) او ايزدان (دستايني وړ) په نامه شته، چې له هغې جملې څخه شپږ عامل قوتونه (موکلې ملکې دي)، چې هر يو قوت د خپل صلاحيت په دايره کښې د نړۍ د چارو د ادارې لپاره له بل قوت سره همکاري کوي، هر يو قوت د اهوره مزده (هرمزد) د يوه صفت مظهر او تلپاتې بلل شوی دی.



۱- وهومنه = بهمن (ښه انګيرنه - نېکه مننه) يا د ګلو او رمو او نورو ژويو (ژونديو موجوداتو) ساتندويه پرېښته.

۲- اشه و هيشه = اردي بهشت (ښه نظم) د اور پرېښته.

۳- خشتره وييريه = شهريور (تسلط د فلزاتو او ښکليو ډبرو ساتندويه پرېښته).

۴- سپينته ارميتي = سپيدار مذ (د روح سپېڅلتوب او تواضع)د ځمکې ساتندويه پرېښته.

۵- هيوروتات = خر داد (روغتيا) د غښتلتوب، کورو او اوبو، موکله پرېښته.

۶- اميريتات= امر داد (ابدي ژوند او بقا) د کرهڼو واښو او د څړ ځايو پرېښته.

د مزده يسنا د پيدايښت په سر کښې ددی شپږو ملايکو پر سر يوه ملکه د سپينته مينيو (سپين عقل) په نامه ولاړه وه، چې تر هغې وروسته يې پر ځای "اهوره مزده" او کله هم "سره اوشه" (سروش = د خير هاتف) درېدله.

د خير، نيکۍ او رڼا د قوتو په مقابل کښې د شر، بدۍ او تيارې قوتونه هم موجود وو، چې د ټولو مفاسدو او شرارتو مشر "انګره مينيو" (اهريمن) و، او په اوېستا کښې يې د شر او تيارې دا ټول قوتونه د "ديوه" په نامه ياد کړي او د خير د ملائکو په مقابل کښې يې د شر او بدۍ شپږ موکلان د کماريکان په نامه داسې تصور کړي دي.

۱- اکه منه: د هومنه په مقابل کښې د ناپاکۍ انګيرنې (يا منې) په مانا د شرارت او نفاق او بدۍ ښکار ندوی.

۲- ايندره: د اردی بهشت په مقابل کښې د بدعت دوره او د خلکو ګمراه کوونکی روح.

۳- سیوروه: د شهریور په مقابل کښې د بې نظمۍ ښکارندوی او د ګړ بړ دیو.

۴- نا او نك هیې تیا: د سپیند ارمذ په مقابل کښې د تور او نافرمانۍ ښکارندوی.

۵- تیوروی: د خرداد په مقابل کښې د ورانۍ فساد، لوږې او تندې دیو.

٦- زیی ریش: دامر داد په مقابل کښې چې د تیو دوی شریك دي.

کله هم ایشمه د (خشم) دیو د سروش په مقابل کښې د هغو دیبانو اووم عدد بشپړوي، چې د ناشکرۍ او عصیان ښکارندوی دی.

زردشت خپل ایین پر دریو اخلاقي او حیاتي بنسټو بنا کړی دی او هغه دادي:

هو مته (ښه منل) هو خته (ښه ویل) هو ورشته (ښه کول) او په دې ډول د زردشت پیروانو ښه منل، ښه ویل او ښه کول د خپل عمل اساس ګرځاوه، او خپله انګیر نه ، خپله ژبه او خپل عمل یې په یو شان له مناوي او مادي ککړتیا څخه خوندي ساتل، د بدني او روحي پاکوالي، د رښتیا، سموالي، مېړانې، سخاوت او ټولو ښو اخلاقو مراعات یې کاوه، درواغ او تور منع و او د مزدیسنا هر پیر و په دې مامور ګڼل کېده، چې اور و اوبه او ځمکه د ناپاکیو له ککړتیا څخه و ساتي، ځکه نو دوی ځمکه د مړو د جسدو له ککړتیا څخه ساتله او خپل مړي یې نه ښخول بلکې په ازاده هوا کښې یې په لوړو ځایو باندې اېښودل چې د هوا مرغان یې و خوري او له منځه ولاړ شي.

د زردشت ایین چې د پیدا کېدو او روزني ځای یې د دنیا ډېر لرغونی پایتخت بخدي = بلخ و، د اوېستا د کتاب په وسیله تبلیغ شو، چې



تفسیر یې په پهلوی (زند) ژبه راغلی دی او هغه ژبه چې اوېستا پرې لیکل شوې، له ویدي ژبې سره ډېر نژدېوالی لري، د اوېستا کتاب د اسکندر تر یرغل دمخه (۸۱۵) فصله او (۲۱) نسکه یاکتابه لرل خو سکندر د غوایي (۱۲۰۰) پوستونه چې پر هغو اوېستا کتاب لیکلی و، وسېزل او تر سکندر وروسته چې بې بیا هغه کتاب راټول کړ (۳۴۸) فصله لاس ته ورغلل، چې پر همهغو (۲۱) نسکو وویشل شو او دویسټ نومې انګریزي عالم په حساب دې ټولو (۲۱) نسکو (۳,۴۵۷,۰۰۰) کلمې درلودلې، چې اوس له هغو څخه یوازې (۸۳,۰۰۰ کلمې) شته، له هغې شرح څخه چې انګریزي ختیځپوه براون کړې ده، داسې څرګندېږي چې د اوېستا باختري اصل له منځه تللی او هغه څه چې اوس پاته دي، یوازې څلورمه برخه یې ده په دې تفصیل:

۱ - یسنا (پرسته او جشن): چې دیني سرودونه دي او (۷۲) فصله لري.

۲ - ویسپرید (سروران): د دعا او اورادو مجموعه ده، چې له (۲۳) څخه تر (۲۷) پورې فصلونه لري.

۳ - وندیداد (د شیطانانو دفع کوونکی): د اوداسه، استغفار، توبې او نور دیني احکام لري او (۲۲) فرګرد (بابونه) دي .

۴ - یشت (نمونځ اوستاینه): د خدای او ملایکو ستاینه ده او (۲۱) بابه لري.

۵ - خورده اوېستا (کوچنۍ اوېستا): چې د (۲۵۰ م) په شاوخوا کښې آذربد مهر اسپند تالیف کړې ده او دعاوې، نمنځونه او مناجاتونه په کښې دي.

د اوېستایي مدنیت په دوره کښې چې له (۱۲۰۰ ق ،م) څخه پیل شوې ده، لومړی وار په بخدي کښې شاهي نظام منځته راغی او اوېستا وایي

چې "يمه " دا هوره مزده په امر يوه "واره" ودانه کړه، چې اوږده او سور يې د يوه اسپريس (اس ځغلولو د ميدان) په اندازه و او په هغه کښې يې راز راز ځناوران لکه پسونه، غوايان، سپي، مرغان او نورو ساتل او هم يې د يو هاتره (ميل) په اوږدوالي د اوبو ځای وکښنځ او په هغه واره کښې په مخصوص ترتيب بازارونه، کوڅې او کورونه جوړ کړل، خو په هغه ښار کښې يې ناروغانو ، درواغ جنو، بدخويو، پيسانو او ليونيانو ته ځاي ورنه کړ".

په دې ترتيب د بخدي په " واره " کښې د آريايي مدنيت لومړی ښار ودان او لومړی مرکز تاسيس شو. او همدا د "واره" اوېستايي کلمه ده ، چې په سنسکريت کښې "وهاره" شوی ده، او په دري کښې "بهار" ځنې جوړ شوی دی، چې پر هغه ځای تر اسلامي لومړی پيړی پورې " د بلخ نوبهار " ودان و.

د اوېستايي مدنيت په زمانه کښې چې آريايي خلکو د هندوکوش په شمالي لمنو کښې کليوالي ژوند ته لاس ورته کړ، کلي او ښارونه يې ودان کړل او د کوچيتوب له دورې ځخه په کورو کښې د اوسېدو حال ته راواوښتل. دا هغه ګام و، چې د مدني مراحلو د لوړتيا او اقتصادي تحول په لار کښې واخيستل شو، همدامهال و، چې شاهي نظام هم منځته راغی او د بخدي پاچهانو چې د اوېستا په يشتو کښې د "پره ذاته" په نامه ياد شوي دي يعنې پيشداديانو په خپل سلطنتي نظام کښې نظم، داد او نياو (عدل) منځته راوستل، د اوېستا په تعبير د بخدي دغو پاچهانو د رب النوعی مقام هم درلود او ځنګه چې په ويدي سرودو کښې هم د دغو پاچهانو يادونه شوې ده، ځکه نو د دې شاهي کورنيو زمانه تر تاريخ دمخه عصرته چې آرين خلکو د هندوکوش له شمالي سيمو هجرت نه وکړ - رسيدای شي.

خو په اوېستا کښې يو لوی پهلوان (د ګيومرث له اولاد ځخه) چې



هيوشينګه نوميد، په "پره ذاته = پيشداد" ملقب و، يعني لومړی قانون ګذار او دا د دري ادبياتو همغه هوشنګ دی، چې د البرز په غره کښې يې د ناهيد (اناهيتا) د رب النوع له پاره قرباني کولې او له ديبانو سره جنګېده، او پر اوو هېوادو يې پاچهي کوله.

د د ينکرد په دريم کتاب کښې داسې راغلي دي چې: "د کرهنې او د هکانيه = دهقاني دود او د مالکيت اصل همدغو پيشداد يانو منځته راوړي دی او بيا وروسته هوشنګ د يهوپتيه (دالبيروني په وينا د هوفذيه) يعنې د حکومت او پاچهی او د خلکو د ساتنې اصل ايجاد کړی دی" له دغه روايت ځخه پوهېدای شو، چې د اوېستايي دورې مدنيت د ويدي د اوايلو او کوچيتوب سره توپير درلود - په دې مانا چې دا وخت د ښکلي بخدي خلکو په کرهنه او آبادی، د کليو او ښارو په ودانی لاس پورې کړی و، د کوچيتوب او بدويت د ژوند له اقتصادي مرحلې ځخه، د هکانيه او د مځکې مالکيت ته او حتی تر هغه يوې لوړې مرتبې "د هيوپتيه" (د حکومت او سلطنت ايجاد) ته رسېدلي و او هوشنګ پر يوې خورا ارتې ورشو او ځمکې حکم کاوه او د ديبانو او کوډګرو او بد ذاتو سره چې د مدنيت ورانوونکي او د کليوالو کروندګرو دښمنان وو جنګېده.

تر هوشنګ وروسته بل پيشدادي پاچا "تهمورث" دی چې په اوېستا کښې د "تخمه او روپه "په نامه ياد شوی او په ازينه ونت (وسله وال) ملقب و، دی يې د اوو هيوادو پاچا د "ويونګهان" زوي د "اينګهت" لمسی او د هوشنګ کړوسی ګڼلي دی، چې ديرش کاله يې د خپل وزير "شيدسپ" په کومك په نياو (عدل) او انصاف حکومت وکړ ده ته "ديوبند" هم وايي، دا ځکه چې ديبان او هريمن يې بند کړي وو او هم يې ځينې داسې مدني کارونه وکړل، چې په نوې اقتصادي مرحله کښې ورته اړتياوه، لکه د وړيو وريشل،

د کاليو سکښت او ګنډل، د څارويو اهلي کول او له اس، غاتري، اوښ غوايي او خره څخه ګټه اخيستل، ليك او لوست منځته راوړل.

د کريستن سين په وينا: "تر تهمورث وروسته يې ورور جمشيد پاچاشو او لومړي ځل يې د نوروز جشن جوړکړ، ادوي د اوېستا په تعبير "د ښو ګلوخاوند" و، چې د القب په اوېستا کښې هوثوه ( په پهلوی کښې هورمنګ) راغلی دي.

ده دري خويندې د "يمګ " او "اري‌نوك" او "سنګهوك " په نومو درلودلي ( په شهنامه کښې : ارنواز - او شهرناز).

د اوېستا يې مدنيت دوري او د آريايي نژادو شاهي کورنيو او نوميالیو کسانو او پهلوانانو په اړه تر اسلام دمخه او وروسته د پخوانيو کتابونو روايتو د زمانو په تېرېدو يوه داستاني بڼه پيدا کړې ده او په دغو کتابو کښې دا اساطير په مختلفو ډولو راوړل شوي دي، خو موږ دلته زيار باسو، چې ترځيله وسه د نوموړيو داستانو تاريخي اړخونه ولټوو.

په ويدا کښې د پيشدادي ستر پاچانوم (يمه) Yama په اوېستا کښې "ييمه "Yima پهلوی کښې "يم " Yam او په دری کښې "جم " ذی، چې صفت يې په اوېستا کښې خشيته Xshaeta په پهلوي کښې شيت Shet او په دری کښې "شيد" راغلی او "جمشيد " يې بولی، يعنی ځليدونکی جم. د جم پلار په اوېستا کښې ويوهونت Vivahvant دی، چې وروسته بيا ويونګهونت = ويونګهان په ويونجهان معرب شو، زوی يې يمه = جم دا هوره مزده له خوا د خلکو ساتندوی او پاچاو ټاکل شو چې د خلکو د ودانی او هوسايی له پاره زيار وباسي، ده ته يوه لکړه، يو غمی، يوه توره، يوکټوری (جام) او د يوې زرين تيش (غاښور) ورکړ شو، چې د ده د شاهی لومړی نښان وی او له تيش څخه د ځمکې په کرلو او کرهڼه کښې کاروا خلې، د خلکو او څارويو د نسل



په ډېر ولو کښې زيار وباسي، د بخدي "واره" ودانه کړي او هغه ځای چې په اوېستا کښې د لوړ و بيرغو لرونکی (ښکلی بخدي) بلل شوی د خپل ځان او نورو ښاري خلکو ټاټوبی وټاکي.

د بخدي پاچا " يمه" لومړی پاچا دی چې د مدنيت او ښاريتوب بنسټ يې ايښی او ټولنيز ژوند يې ترتيب کړی دی.

کرنه، څاروي روزنه، کار، د اوسپنې ويلول، د کاليو اوبدل، د وسلو او جواهر کارونه، د لښکري طبقې ټاکل، ختګري او د فلزاتو او درملو کارول يې دود کړل او په خپل لومړي شاهي پايتخت ښکلي بخدي کښې يې مدنيت جوړ او خپور کړ. د فرانسوي څېړونکي بنونسيت په وينا: دی هغه آريايي شخصيت دی چې د اسلام تر منلو دمخه د نورستان د خلکو په منځ کښې د "ايميرا" Imra په نامه تر ټولو ارباب انواعو لوړ او ستر رب النوع ګڼل کېده او د هغې سيمې په مرکزي معبد کښې چې هلته يې د قربانيو دودونه پر ځای کول د ده مجسمې درولې وې.

په ۹ يسنا کښې له دريمې ترپينځمې فقرې پورې وايي! "د جم د پاچاهی پر مهال تودوالی، سوړوالی، زوړوالی، مړينه او رخه (رشك) په دنيا کښې نه وو" او د ۱۹ يشت په ۳۱ - ۳۸ فقرو کښې داسې راغلي دي چې: "د جم په پاچاهی کښې د نړی ژوندون په خوښی او خوشالی تېرېده د رنځ او ناورين نخښې نه وې" په اوېستا او د عرب او عجم په نورو تاريخي کتابو کښې، د جم او پيشدادي پاچاهانو کيسه د ډېر لرغونتابه له امله افسانوي بڼه غوره کړې ده او ځرنګه چې يې د جم پاچاهي د هر راز هوسايی او ارامی، نياو "داد" او ښېګڼې سر چينه بللې ده ځکه يې نو هغه ځوك چې د خير، خوښی او ښېګڼې ددې سر چينې دورانولو وسيله شوی اژی دهاکه (اژدها - ښامار) بللی دی. او دا سړی" بيوراسپ" د "اروندا سپ" زوی (ګيو

مرث دګر شاه = غرشاه) له اولادې ځخه و، چې مور یې او ذاك (ودك) د جم خور وه او بیو راسپ دلسوز رواسونو د خاوند په مانا دی او ځنګه یې چې ګړندی اسان درلودل، نو ځکه یې ورته" تازي" ویلی دي، چې په همدې سبب ځینو مؤرخینو دی تازی او له عربي نژاده ګڼلی دی.

وایي چې دی د (بورې) پر ځمکه راپورته شوی دی او په دغه نامه تر اوسه یو ځای د افغانستان جنوب ختیځ ته په ږوب کښې شته.

ځرنګه چې عربو دا نوم معرب کړی او ضحاك یې ورته ویلی دی، ځکه یې نو نوموړی عربي نژاد بللی دی او هم ځرنګه چې سامي نژادو له آریایانو سره سیالي درلوده، ځکه نو هر عنصر چې د نوي تشکیل شوي مدنیت او د بخدي پاچاهۍ ته خطر پېښاوهٔ هغه له پردي نژاده باله او لکه آرایي نژاده تورانیان، ضحاك بیوراسپ یې عربي نژاده ګڼلی دی.

د طبري او البیروني په څېر ځینې دقیق مؤرخان وایي: عربانو ضحاك عربي نژاده او عجمیانو عجمي انګیرلی دی.

ځرنګه چې د افغاني تاریخي ښار و، ځایونو او سړیو په نومونو کښې (لکه د غوري شاهانو د کورنۍ ستر نیکه ضحاك او په بامیان کښې د ضحاك ښار) دد غه نامه ریښه شته او مورخان هم د ده نسبت لړی اریایي نژاده ګیومرث ته رسوي اودی د جم خوریی بولي، نو دا خبره چې عربي نژاده و، له منلو ځخه لیرې ښکاري.

په هر حال د اوېستا د اشارو له مخې بیور اسپ اژي دهاکه د ښکلي بخدي پر مدنیت یرغل وکړ او ځرنګه چې ایزدي فر (د سلطنت پر تم یا ځلا) د بریالیتوب د مارغه په څېر له جم ځخه جلا شوی و، اژي دهاکه پرده بری ومونډ او د ده هېواد یې ونیو او دی یې په اره دوې ټوټې کړ.

دې تازي (تازنده) ضحاك د رام میشت د ۱۹ فقرې له مخې د کوی



رینتا په نامه یوه ټینګه ماڼۍ او شاهي تخت او زر ینه چترۍ درلوده او د اسلامي دورې په دري ادبیاتو کښې ده ته "ضحاك ماران مار دوش اژدها) ویلی شوی دي.

د اوېستا له مخې تر جم وروسته ایزدي فر (د سلطنت ځلا) پر "تراتینه" (په پهلوي کښې فریتون فریدون) د پورتورا "پورګاو" پر زوی چې د جم له اولادې ځخه و وځلیده چې پلار یې د اثویه (اثفیان ابتین) په نامه هم یاد شوی دی، د دې کورنۍ خلك کروندګر وو چې د زیاترو له نومونو سره د ګاو کلمه (په اوېستا کښې ګتو) راغلې ده.

فریدون د اوبو د رب النوع اناهیتا له پاره سل اسان، زر غویي او لس زره پسونه قرباني کړل. ځو چې پر شریراژي دهاکه بریالي شو او هغه یې وواژه او د جمشید دوې خویندې "اري نوك" او شنګهوك چې ضحاك بندیانې کړې وې لاس ته راوستلې.

د اژي دهاکه په مقابل کښې د خلکو د خوځښت داستان چې د فردوسي په شاهنامه کښې د هغو خدای نامو له روایتو ځخه را اخیسته شوی چې تر اسلامي دورې د مخه وې، داسې دي چې: یوه پښن (آهنګر) چې کاوك "کاوه" نومیده، د خپلې اهنګرۍ خرمن د نېزې پر ځوکه د بیرغ په څیر وتړله او خلك یې په ځان راټول کړل او د اژي دهاکه په مقابل کښې وپارېدل او د هغه د تېریو پر ضد پورته شول او دا هم هغه د کاویان بیرغ دی چې تر ډېر وخت وروسته پورې د اریایي خلکو د بري سمبول و.

فریدون په دې هڅه او خوز ښت کښې د پارېدلو خلکو مشر و او ده پر ضحاك باندې د خپل بری په یاد د نو روز د جشن په څېر "د مهرګان د جشن" بنسټ کښېښود دیبان یې پر سرو ټکول او جهان یې ونیو.

د آریایي اولسو په داستانو کښې یو بل ته ورته روایات شته چې

وايي:

فريدون د ايرينه ـ توئيرينه او سيئريم مينه هېوادونه پر خپلو درو زامنو ارج (ايرج) او توچ (تور) او سرم (سلم) ووېشل، خو سلم او تور د ايرج سره رخه (رشك) درلودهٔ او دی يې په ناخوانه ډول ووژه تر هغې چې د منوش چيتره (منوچهر) په نامه د ايرج زوی پيدا نشو او د ايرج كسات يې وكيښ.

د دې استان په څېر د درو زامنو كيسې نورې هم شته لكه د زردشت د درو زامنو او د تارژي تائوس سكايي د درو زامنو او د درو پښتني ورونو (غرغښت ـ بيټنی ـ سړبن) كيسې چې د كلژ دوفرانس د استاد ژرژردومزيل په وينا پخوانۍ اريايي ټولنه له دريو ډلو:

روحانيونو، جګړنو او ثروت موندونكو څخه جوړېده او د پخواني هند اساسي كاستونه هم بر همنان ـ جګړن نجيبان او څاروي پالونكي كروندګر و، د زردشت له دريو زامنو څخه هم مشر زوی روحاني، دويم زوی جګړن "او دريم چوپان و او د اګرده كيسې پر پخواني اريايي قومونو كښې سره ورته دي.

په هر حال منوچهر د ايرج كسات واخيست، سرم او تور يې ووژل او د آريايي نژادو صحرا نشينو توراني ير غلګرو خلكو مخه يې ونيوله، د ده په وخت كښې لوی پهلوانان لكه قارن كاوه زوی او نريمان اوزال ورستم رامتخته شول چې د آرينه څمكه يې د دښمنانو له شره ساتله.

تر ده وروسته د اوېستا په وينا نـو تره (نوذر) د ده زوی پاچا شو چې توراني افراسياب تر دريو جګړو وروسته هغه ونيو او وېي واژه خو له هغه څخه د نئوتريان = نوذريان په نامه لوی كهول پاتې شو، چې داستانونه يې په اوېستا كښې راغلي دي.

د نوذر تر وژنې وروسته "اوزوه" د توماسپه زوی (زو = زاب = د



توهماسپ زوی = تهماسپ) د فريدون له اولادې څخه تر پينځو كالو پورې حكومت وكړ چې هوښيار او عادل سړی و، د دې نامه ريښه په "زابل" او زوب كښې شته، ده د پهلوانانو په مرسته له تورانيانو سره جنګونه وكړل څو په پای كښې يې د آمو سيند تر خپل منځ ويش (بريد) وټاكي.

د زاب تر مړينې وروسته د هغه زوی كرشاپه Kereshaspa (يعنې د ډنګراس ښبنتن) پر تخت كښيناست، چې لسم پيشدادي پاچا و، نهه كاله يې حكومت وكړ د ده تر مړينې وروسته افراسياب د توراني شنګ په فرمان د هغه پر هېواد يرغل وكړ او د كرشاسپه د داستان له ختمه سره د پيشداديانو داستاني تاريخ هم پای ته ورسېد، خو دلته بايد دا وويل شي چې دا كرشاسپه د زاب زوی له اوېستايي نامتو پهلوان، كرشاسپه نريمان څخه جلا وي، څكه چې كرشاسپه نريمان د ثريته ( ثريت = اثرط ) زوی د سيستاني سام له كهول څخه و چې د فريدون د پاچاهۍ په پای او د منوچهر د كار په پيل كښې ژړور او بوډا و هم اصلاً يو له پهلوانانو څخه دی، نه له پيشدادي شاهانو څخه.

## د كاوي = كيان كهول:

"كوي" يا كاوي په ويدي ژبه او اوېستا كښې د (پوه، پاچا، امير) په مانا دی، چې د اوېستا له مخې "كوي" د پهلوي (كي) د بلخ او د اوسني افغانستان شاوخوا د پخوانيو پاچاهانو له لقب سره يو ځای و، خو د دې هېواد لويديزې خواته نه استعمالېده.

د كوي = كي كلمه د بلخ د هغو پاچهانو د نومو په سر كښې ګورو چې د پيشداديانو تر كهال وروسته پاچهۍ ته رسېدلي دي او د دې څمكې شاهي پرتم (شاهي فر) د كوئنم خورنو Kavaenem-xvreno په نامه په دوی اړه

لرلي ده.

په دري ژبه کښې یې "کی" په "کیان" جمع کړی دی او دا کهول یې په شاهنامه او نورو کتابونو کښې "کیان = کیانیان او کیاني" یاد کړی دی.

د اوېستا له مخې د دې کورنۍ لومړی پاچا کواته Kavata نومېده، او ده ته یې کوی، کواته (کی قباد) وایه، چې د سیستاني پهلوان رستم د پلار په غوښتنه د البرز په غره کښې (د بلخ سهیل ته) پر تخت کښیناست او دې د خلکو د هوساینې، ارامۍ او نیکمرغۍ سبب شو، عادل پاچا و، پېنځلس کاله یې پاچاهي وکړه، فردوسي دی د فریدون له توکم څخه ګڼلی دی. تر کیقباد وروسته په اوېستا کښې د کی اپیوه - کی - ارشن - کی بیرشن - کی پشین نومونه هم راغلي دي، چې د ده اولاد دی، خو د هغه په باره کښې راغلي افسانې کمزورې دي او پخوانیو کتابو کې هم زیات شهرت نه لري.

تر کیقباد وروسته یې زوی "کوی اوسن Kavi - Usan " (کیکاوس) د بخدي پر تخت کښیناست، چې د اوسن مانا هیله یا خوښي ده. ده له غیر وادریایي پردیو عناصرو سره چې د حماسي روایاتو له مخې د اوسني ایران په شمال کښې د مازندران په ځنګلو کښې اوسېدل جنګونه وکړل او پر هغوی یې بری تر لاسه کړ. په اوېستا کښې هغه خلکو ته (دیبان) ویل شوي دي.

اوېستا وایي چې غښتلي او زورور کوي اوسن (کیکاوس) د ارزیفیه Erezifya د غره پر سر (اناهیتا، د اوبو رب النوع) لپاره سل اسان او زر غوایي او لس زره پسونه ددې لپاره خیرات کړل چې د پاچاهانو ستر پاچا شي.

څرنګه چې نوموړي غر د پوهانو د څېړنې له مخې د خراسان شمال ختیځ خواته په بلخ کښې و او کیکاوس پر هغه اووه هسکې ماڼۍ جوړې



کړې وې، څکه نو د ده داستان هم سر تر پایه (د افغانستان په تاریخ او خاورې پورې اړه لري).

دی له لویو پاچاهانو څخه شو چې (د هغه مهال د کشف شوې نړۍ) پر اوو هیوادو یې حکومت کاوه او د اوشنر oshnar په نامه یې یو پوه وزیر درلودئ چې په اوېستا کښې یې د پورو جیره Pura-Jira په صفت یاد کړی دی یعنې ډېر پوه او هوښیار (په پښتو کښې: پوره = څیر = کامل دقیق).

په اوېستا کښې کیکاوس ته څینې غلطۍ او خطاوې هم منسوبې دي، لکه د همدې پوه وزیر وژل او د ځمکې د ساتندوی غوایي له منځه وړل او اسمان ته د ختلو هڅه. له همدې امله کیاني پرتم (کیاني فر) له ده څخه وګرځېدئ او توراني افراسیاب ورباندې غالب شو او دده هیواد یې ویجاړ کړ، څو چې روت ستخمك Rot - Staxmak "رستم" سیستاني پهلوان لښکر جوړ کړ او افر اسیاب یې وشاړه.

د بلخ له کیاني پاچاهانو څخه یو بل "کوی سیاورشن "Syavarshan" (سیاه نر) و، چې تر کیکاوس وروسته پاچا شو او د بلخ واکمن پاچا و، چې د آمو تر ها خوا (توران) کښې له آریایي یرغلګرو قبیلو سره په یوه جګړه کښې وژل شوی دی او دی د کیکاوس زوی ګڼل شوی، چې په پهلوي او دري ادبیاتو کښې د سیاوخش = سیاوش په نامه شهرت لري.

سیاوش ایرینه ویجه ته نژدې، یوه لویه کلا د کنګ دژ (KANGHA د = اوېستا) په نامه ودانه کړه چې د جمکر د واره په څیر دویم آریایي مرکز و او ده په توران کښې د توراني پاچا افراسیاب لور چې فرنګیس نومیدله ماندینه کړه او له هغې څخه هئو سره وه "Hausravah = کیخسرو" وزیږېد. چې تر پلار وروسته یې د پاچاهۍ تخت ونیو او د پلار د خون اخیستو په غرض له تورانیانو سره د خپل ننګیالي سپه سالار هئومه Haoma په ملګرتیا یې

افراسياب او د هغه ورور کيريسه وزده (چې په شاهنامه کښې: کرسيوز راغلی) په ځنځيرو کښې وپيچل او وېې وژل.

اوېستا وايي: کله چې کياني پرتم (کياني فر) په خسرو پورې اړه پيدا کړه نو دهغه په مرسته يې لوی کارونه وکړل، زور او قوت، مينه او ښکلا، برم او پرتم دده په برخه وو او د کياني شاهنشاهۍ هيوادونه يې بېرته سره ونښلول، چې له همدې امله په اوستا کښې د خشتري هن کريمو Xshathrai - Hankeremo يعني د هېوادونو نښلونکی او يو ځای کوونکی، د شاهنشاهۍ د رامنځته کوونکي په صفت ياد شوی دی.

تر کيخسرو وروسته په بخدي کښې يوه ډله پاچاهان رامنځته شوي دي، چې د نومونو په پای کښې يې د "اسپه" کلمه راځي او دا بيخي باختري نسبت دی، ځکه چې د بلخ ورشو د آس پخواني روزنځای و او ددې مځکې آريايي نژادو سپرو، په جنګونو، يرغلونو او د دښمنانو په مخنيوي کښې تل له دې اهلي ځاروي ځنې کار اخيست، ددې سيمې د خلکو تر منځ له پخوا زمانو بيا تر اوسه، د اسانو د ګلو روزنه او د سپرلۍ ورزش دود لري تر دې چې ځينو پوهو مؤرخانو لکه دينکر، په خپل پخواني تاريخ کښې، د بلخ د پاچاهانو يو کهول د "اسپه پاچاهانو" په نامه ياد کړی دی، خو په حقيقت کښې دا پاچاهان د هم هغو کيانيانو پايځوړ دي.

له همدې ډلې پاچاهانو نه هغه څوک چې تر کيخسرو وروسته د بلخ د پاچاهۍ پر تخت کښيناستلی، په اوستا کښې ائوروت اسپه Aurvat Aspa (= کی لهراسپ) ياد شوی دی چې د ګرندي اس په مانا دی او نسب يې کيقباد اومنو چهرته رسيږي، د فردوسي په وينا د مهر د مياشتې د مهر پر ورځ (د ميزان په ۱٦ مه) يې د پاچاهۍ خول پر سر کښيښنوو او په بلخ کښې يې د "آذر برزين" په نامه يوه دوهه (آتشکده) جوړه کړه، د ساساني وختو



په نورو روايتو کښې وايي چې: ده د خپل يو سپه سالار بوخت نرسيه (معرب يې: بخت النصر) په ملتيا پر اورشليم يرغل وکړ او هغه يې وران کئ، او جهودان يې تيت کړل، د ژوند په پای کښې يې پاچاهي خپل زوی ويشتاسپه Vishtaspa (= ګشتاسپ، د توريدلي آس په مانا) ته پريښووه او پخپله د بلخ په نوبهار ننووت، وبنستان يې پريښوول، د خدای په ستاينه بوخت شو او د زردشت دين يې ومانه، چې په پای کښې د توراني ارجاسپ په يوه حمله کښې ووژل شو.

ويشتاسپه (ګشتاسپ) لوړ همته پاچا، د ګرنديو آسانو خاوند د زردشت مويد او پيرو او مزدا پرست او کياني فر لرونکی، رښتيا کوونکی او پاك تومنه سړی و، پر خپلو توراني دښمنانو يې برې وموند او هم يې وزير جاماسپه داوستا له مخې شريف بډای، هيوادوال او يوه بريالی او د زردشت د لور ميړه و، چې د زردشتي آئين تر منلو وروسته يې د هغه په خپرولو زيار ايستلی و او دده زوی سپينتوداته Spento - Data اسفنديار چې تخمه Taxma "= تهم = زړور" يې صفت و او د ويشتاسپه ورور چې زئيري وئيري Vairi -Zairi "زرير" نومېده هم هغه کسان دي چې د زردشتي قانون په خپرولو کښې يې زيار ايستلی دی، د اوستا په هغه نسخه کښې چې په اتمه ميلادي پېړۍ کښې په پهلوی ژبه کښل شوې او په سمر قند کښې ترلاسه شوې ده، داسې وايي چې:

زردشت د ګشتاسپ په امر د خپل کتاب دوولس زره نسخې د سروزرو په څپر کو وليکلې او د "ورهران" په اتشکده کښې يې کښېښودلې، چې دا معبد، اسفنديار د بلخ باميك په نوازك کښې ودان کړی و، همدارنګه په آذر فربغ (د موبدانو اتشکده) او آذر برزين مهر (د کرونده ګرو اتشکده) هم ګشتاسپه ته منسوبې دي، چې دا دوهمه اتشکده يې د ده په وخت کښې

له خوارزم څخه د کابلستان دروشن Roshn غره ته راوړه او د عربو تر فتوحاتو (۱۷۱ هـ) پورې لا هم پاتې وه.

د زرير زوی بستوئيری Bastawairi د بست ښار ودان کړ او هلته يې ډېر زر خيراتونه وکړل او هم يې د سلطنت مخالفان چې هلته وو له منځه يوړل.

تر اسفنديار وروسته له دې کورنۍ څخه د ځينو نورو پاچاهانو نومونه اخستی شوي دي لکه "و هومن سپينداتان" (بهمن اسفنديارى) او لور يې "همای" او "د اراب" د هما زوی. دا پاچاهان له سيستان او هلمند په وادۍ کښې داستانونه لري، ځينو مؤرخانو دا پاچاهان له هخامنشي پاچاهانو سره ګډ کړي دي.

## اوستايي پهلوانان:

د اوستايي فرهنګ په دوره کښې سر بېره پر دغو شاهي کورنيو چې مخکښې يادې شوې د ځينو لويو پهلوانانو کورنۍ هم په دې تاريخي زمانه کښې راغلی دي چې ددوی په نامه اريايي حماسي روايتونو کښې ځانګړې کتابونه وو، دا کورنۍ زياتره په اوسني افغانستان او د خراسان په سيمې پورې اړه لري. خو د زمانو او نسلونو په تېرېدو د دوی تاريخي پېښو داستاني بڼه مونډلې او په دې پهلوانانو پورې يې ځانګړې کارونه تړلي دي. چې ددې افسانوي روايتونو له منځه يوه برخه تاريخي واقعيتونه لکه د پاچاهانو د کورنيو تاريخي پېښې لاس ته راتلای شي.

ډېر نامتو او لوی پهلوانان د سيستان له خاورې څخه پورته شوي دي، چې د اوستا له روايتونو او د نورو پهلوي کتابونو له مخې د دوی نژاد



د بخدي هم هغه "يمه جم - جمشېد" پاچاته رسېده او ده د زابلستان د پاچا کورنګ لور ماندينه کړه چې له همدې نژاد نه سام نريمان پيدا شو، چې زوی يې د ويښتو د سپينوالي په سبب د "زال زر" په نامه ياد شو او د پلار له پلوه د سيستان پاچاهي ورکړای شوه، دی د کابل د مهراب شاه پر لور "رودابه" چې د ضحاک له نسله وه مين شو او هغه يې خپله ښځه کړه. چې له هغې څخه رستم وزېږيد، چې د خپل وخت ترټولو پهلوانانو غښتلی، زورور و؛ کک، کوهزاد (غرزی- غلجي)، يې چې له زال څخه يې خراج اخيست وواژه، خو په پای کښې د بهمن په وختو کښې د خپل ورور شغاد په دوره او چل څاه ته ولوېد او د خپل آس رخش سره په هم هغه څاه کښې مړ شو.

زال سر بېره پر رستم او شغاد يو بل زوی د " زوارهٔ" په نامه هم درلود چې لوی پهلوان و، د هغه دوه زامن فرهاد او تخار(تخوار) مشهور دي.

له رستم څخه فرامرز ته، سهراب، جهانګير او ګشسپ بانو او زر بانو پيدا شول او له سهراب څخه چې د پلار له لاسه وژل شوی و د "برزو" په نامه يوزوی پاتې شو، تر برزو ورسته شهريار وزېږيد، چې ددې پهلوانانو په نامه بېل بېل کتابونه شته، لکه فرامرز نامه، برزونامه، شهريارنامه، بانوګشسپ نامه، جهانګيرنامه او سام نامه. همدا راز د فردوسي په شاهنامه کښې هم د دوی داستانونه راغلي دي.

د رستم زال او تخوار داستان په افغانستان کښې تر اسلام وړاندې له پخوا زمانونه شهرت لاره او تر اوسه يو څو ځايونه، د تخت رستم په نامه (په سمنګان کښې) د رستم غونډۍ د زال کلا، ( تخارستان) د کک کهزاد کلا د رستم آخور (په فراد کښې) شته چې ځيني دانومونه له اسلامي فتوحاتو وروسته د عربو په تاريخونو کښې هم راغلي دي او حتی د نورو ملتونو په تاريخونو کښې لکه د موسی خورنی ارمنی په تاريخ کښې له (۵ - ۸ مې

پېړۍ پورې) هم درستم نوم راوړل شوی دی.

د دې دورې بله کورنۍ چې په زړورتیا او پهلوانۍ کښې یې شهرت درلود "کاوه" کورنۍ ده چې دمخه یې یادونه راغلې ده او د ضحاك د ظلمونو او ستمونو په مقابل کښې یې د خلکو یو ډلیز غورځنګ رامنځته کړی و، له هغه نه یو زوی د "قارن کاوګان" په نامه پاتې شو چې د فریدون او ایرج او منو چهر په وختونو کښې یې له افر اسیاب سره د کیقباد په جنګونو کښې ډېره مېړانه او زړورتیا ښودلې وه.

دا کورنۍ د اشکانیانو او ساسانیانو تر دورې پورې د کارن په نامه پاتې و او حتی تر دریمې هجرې پېړۍ پورې یې خپل برم او قوت ساتلی و.

د پهلوانانو بله کورنۍ د نو ذریانو کورنۍ ده چې نوذریان د منو چهر د زوی "نوتر" له اولادې څخه وو.دې کورنۍ ته په اوستا کښې نئو تئیر یانه Naotairyana ویل شوې ده او توسه (طوس) د نوتر زوی چې نوم یې خراسان د طوس د ښار په نامه کښې پاتې دی د کیانی وخت له لویو پهلوانانو څخه و چې د وایسه که Vasesaka پرزامنو یې بری وموند، د نوتر بل زوی "ویسه "چې په اوستا کښې دویسته یؤرو Vistauru (او په پهلوی کښې ویستخم = په دري کښې ګستهم) یاد شوی دی چې مزدیسنا د آئین ډېر دښمنان یې وژلي دي او زر اسپ هم د طوس د زوی له دې کور څخه ګڼل شوی دی.

همدا ډول د کاوس زو ی فریبرز ( په پهلوی کښې برزی فره) او د لهراسپ زوی زریر او د زریر زوی بستور ( په اوستا کښې بسته وئیره) او د ګشتاسپ زوی اسفندیار او د وزیر جاماسپ زوی ګرامي ( په پهلوی کښې ګرامیك کرت) ددې پیر هغه شهزاد ګان او نجیب زاد ګان دی چې په داستانو کښې د پهلوانانو په څېر یاد شوي دي او د روایتي کیسو له اړخه



ددوی تاریخي وجود پېژندل کېدای شي، هریو د بخدي او خراسان په لرغونیو تاریخي داستانو کښې نوم او نښان لري.

## افغانستان او اوېستايي سیمې:

د اوېستا په دریم کتاب وندیداد کښې د هغه مهال د معلومې ځمکې شپاړس سیمې یادې شوي دې ځینې یې په اوسني افغانستان یا پخواني خراسان کښې دي، همدارنګه د اویستا په ریښتو کښې د هغو غرونو او سیندونو نومونه راغلي چې ټول په دې هېواد کښې دي. د بېلګې په ډول:

۱- ایرینه ویجو (هغه سیمه چې په پامیر یا امو ته نژدې په خوارزم کښې ده).

۲ - سغده (د آمو په شمال کښې سغد)

۳ - مورو (د مرغاب مجرامرو)

۴ - بخدي (بلخ)

۵ - نیسایا (په شمالي خراسان کښې نسا)

۶ - هرای وه (هرات)

۷ - وایکرته (کابل )

۸ - اورود (رود د پختیا ولایت او سلیمان غر)

۹ - هری ویتي (ارغنداو او ده هراوت)

۱۰ - ای تومنه (هلمند)

۱۱ - ره ګه (د بدخشان راغ = د پښتو: رغه)

۱۲ - هپته هندو (سند).

چې دا ټولې سیمې په افغانستان او یا د افغانستان په ګاونډ کښې پرتې دي. همدارنګه په اوستا کښې سیامکه (سیاه کوه = تور غر) یو پاړي سینه ( د ګوربت تر الوتنې هسك غر - هندوکش ) سپیته ګونه ګیري (سپین غر) او نور غرونه او سپندونه یاد شوي دي چې له دې هېواد سره د او ستا کتاب د ترتیبوونکیو آشنایي راښیي.

## ایزدان او ارباب انواع:

سره له دې چې زردشت یو نوی سم شوی قانون رامنځته کړ او لکه چې د مخه وویل شول د شریرو قوتونو د مقابلې لپاره یې د خیر او ښیګڼې شپږ ملکې وټاکلې، خو بیا هم د هغو ارباب انواعو اغیزه چې د ویدي د وخت لرغونیو اریایانو لرله بیخي له منځه نه وه تللې، یوازې د ویدي د لوی رب النوع "وارونه" پر ځای "اهوره مزده" ودرېد چې مانایې پوه بادار (سرور) واو دا نوم زردشت "د یو خدای" لپاره وټاکه او هغه آریایي خدایان (دېوان) چې تر هغه وخته یې لا په هندوستان کښې د خدایۍ مقام درلود د زردشت په آئین و قانون کښې متروك او پرېښوول شول. ځکه نو د "دیو" کلمه چې تر زردشت د مخه د خدای په مانا وه د "بلا، غول او ګمراه کوونکي" مانا پیدا کړه او له هغه وخته خدای پرست ته "مزدیسنا" او مشرك او د باطل دین پیرو ته "دیویسنا" وویل شو، خو سره له هغه هم د "دیو" کلمې په ټولو اریایي اولسونو کښې (له زردشتیانو پرته) خپله اصلي مانا ساتلې ده او د هندوانو په نزد تر اوسه هم "دیوه" د خدای په مانا دی.

"زیوس" د یوناني لوی پروردګار نوم و، چې لاتیني "ډیوس" او فرانسوي "ډیو" او د پښتو "ډیوه" (د څراغ او رڼا په مانا) له دې ریښې څخه



دي.

د ویدي دورې په آریایانو کښې "اګني" د اور رب النوع او خدایي خرې (قاصد) و، چې په اوېستا کښې "اوترو" او "اترش" او په پهلوي "اتور = اتر" او په دري کښې "اذر = آتش" اوپه پښتو کښې اور دی او په زردشتي ایین کښې یو عنصري ایزد او د هوره مزده زوی ګڼل کیږي. چې لمبه یې د خدایي رڼا ښکارندویه (نماینده) ګڼلې کیده او د پرستنې په ځایو کښې یې د محراب پر ځای ځلانده اورغالي (اتش دانونه) جوړ کړي وو.

اوېستایي بله رب النوع اوبه دي چې په ویدي دوره کښې هم "اپام نپات" (د اوبو زوی) یاد شوی دی او څرنګه چې د بخدي اریایي نژادو د خپل هېواد په زړه کښې له لوی سیند څخه ډېرې ګټې اخیستې وې نو ځکه د اوبو له پاره یې د "اناهیتا" په نامه رب النوع پېژندله او په خپله دغه سیند ته یې اردوی - سوره Ardvi - Sura ویل، چې د اوېستا ابان یشت د همدغه رب النوع ستاینه ده او څېړونکي دا رب النوع د مور - ادیتا په رب النوع پورې تړي، چې د هغې مجسمې مو تر تاریخ دمخه آثارو کښې ولیدلې، په راورستیو زمانو کښې د دغه نامه وروستۍ برخه اناهیته = ناهید په مجرد ډول پاتې شوی چې د اوېستا په آبان یشت کښې د یوې ښکلې نجلۍ په بڼه راغلې ده، چې طلایي خول او زرین کمیس لري او په باختر نومي کتاب کښې د راولنسن په وینا د باختر په ښار کښې د اناهیتا مشهور عبادت ځای و چې د اوېستا په پینځم یشت کښې دابنکلې ښځینه رب النوع د نارینه و د نطفې او د ښځو د رحموز د تصفیه کوونکې او د زیږېدنې د روزونکې او میندو ته د ښو شیدو د بخښونکې په صفت ستایل شوې ده. (وګورئ لسمه نومره عکس).

د اوېستا یو بل عنصري ایزد "واته" په غښتلي او ګړندي متخلص

و او دا کلمه په دري او پښتو کښې "باد" او په ویدي دوره کښې "وایو" Vayu وه چې د دښمن له سپاهیانو سره د جګړې په اړو دوړ کښې او یا پر تهذیب او دین باندې د پردیو خوني ستمګرانو او یرغلګرو د تیري په وخت کښې او یا د یوه سړي د نیولو پر مهال چې په دروغو او خیانت د دښمن په لاس نیول شوی، له دغه عنصري رب النوع څخه مرسته غوښتله کیده، دی غښتلی، جګړن، ټینګ پر ځای ولاړ، د ارت ټټر خاوند او د سم او رسا نظر څښتن و. دا رب النوع د کنشیکا تر عصره (د ۱۲۵ م پر شاه و خوا) ددغه کوشاني پاچا پر سیکو د ځغاستې په حال کښې د یوه زېرور سړي په بڼه کیندل کیده، چې هغه یې په کوشاني دري ژبه "واد" بللی دی.

الماني څېړونکي "ګیګر" یوه ډله اوېستایي ارباب انواع د ستور ود یزتو په نامه یاد کړي دي، چې له هغو څخه یو "میتره" Mithra د نور او رڼا ښکارندوی و چې د "وارونه" رب النوع د سترګې حیثیت یې درلود او په اتفاق یې د نړۍ نظام او د رښتینولۍ قانون ساته، د دومزیل په وینا: "این میثره مهر= میر (په پخوانۍ دري اوپښتو کښې) د تړون (عهد) خدای او دځمکې دارتو ورشو ګانو څښتن او دربښتینولۍ ساتندوی بلل شوی دی. چې پر شریرانو او تړون ماتوونکیو بېرحمه او پرستایونکیو مهربان دی. د څارویو او د کرنې دمحصول او د باران اوبرکت زیاتوالی له ده دی."

مهر چې رڼا راپیدا کوي، د اهریمنانو سخت رقیب، د آسمان ډیوه او د اهوره مزده سترګه ده، چې داوېستاله مخې: "اهوره مزده د هره برزتي (البرزیاپامیر) غره پرڅوکه هغه ته ټاټوبی جوړ کړي، چې هره ورځ پرځلانده او روښانه بګۍ چې څلور سپین جنتي اسان یې کشوي له ختیزه راخیژي او دمهر رب النوع دا اوېستایي تصویر له سپینو اسانو او بګۍ سره کټ مټ د بامیان د پینځه دیرش متري بت د طاق پرچت انځور شوی او تر اوسه شته، د دغو لرغونیو آریایي عقیدو اغیزې په راوروسته زمانو کښې د لویدیزې



د دغو لرغونیو آریایي عقیدو اغیزې په راوروسته زمانو کښې د لویدیزې اسیا تر پایه خپرې شوې او دلمر (مهر) ناهید او نورو پرستنه د اوېستایي ثقافت له مرکز د (بخدي) له سیمو څخه هر لورته خپره شوې ده.

پر مهر (هور) سر بیره سپوږمۍ (ماوګه) هم د شپې ډیوه او واښوته وده ورکوونکې ګڼله کیده، چې هغې ته یې د څارویو د روزنی له امله ګئوڅ چیتره Gao Chitra ویل.

په دغو عنصري یزتو او ستوریو کښې د تیشتریه (تېر=) ستوری د باران شیندونکی او داسماني چینو پرانستونکی، چې د چینو، ویالو او سیندو او به یې زیاتولې، وو.

په اوېستایي قانون کښې بې له شپږو، روحاني امشاسپندانو چې دمخه مو یاد کړل، د نورو مو کلو پرېښتو نومونه هم یاد شوي دي چې څو یې دا دي:

ارشتات= رشن (د عدل او نیاو پرېښته) ورتره غنه (بهرام = د بري پرېښته) سره اوشه (Sraosha) سروش = د اطاعت اوقانون پرېښته) اشهی وګهوي (د اخلاقي نظم اوپرهېزګارۍ ساتندویه)

## ژبې، ادبیات او له افغاني ژبو سره د هغو اړیکي:

په تېرو دوروکښې مو د افغانستان د لرغوني مدنیت پردریو دورو، (تر تاریخ دمخه ،ویدي دوره، او اوېستایي دوره) باندې ډیره لنډه توضیح ولیکله او ومو ویل، چې دتاریخي دورې له سره یوازې، دوه لیکل شوي آثار:" ویدا، اوېستا" پاتې دي.

د مقایسوي ژبپوهنې له مخې د دې دواړو ژبو اثرونه په افغاني ژبو

ار. د افغانستان په ځايونو او نومونو کښې څرګند دي او زياتره لرغونې کلمې اوس هم په هم هغه خپلو تاريخي ماناو کارېږي اوژوندي دي. په تېره بيا پښتو ژبې او د افغانستان د شمال ختيځ د غرو ځينو لهجو داسې تاريخي مواد زياتره ساتلي دي، د بېلګې په ډول يوازې د څو کلمو شرح راوړو:

**ارين:** د "ار" له ريښې ځخه چې د اصيل او نجيب ياکروندګر په ماناو په پښتو ادب کښې "اره" د اصل اوبنسټ يا کرنې په مانا راغلې چې په پاى کښې د نسبتي (ن) په نښلولو "ارين" ترې جوړ شوى او د اصيل يا شريف کروندګر مانا يې پيدا کړې ده.

**ايرينه ويجه:** د هندوکوش د شمال سيمو ته تر هجرت دمخه د ارين لرغوني تاټوبى چې مانايې دشريفانو تاټوبى او ځمکه ويل کېده او دا ويجه کلمه د کندهار په پښتو کښې تر اوسه د ځمکې او تاټوبي په مانا کارېږي.

**آريه ورشه:** هند ته مهاجرو ارياييانو خپلې پخوانۍ ځمکې ته اريه ورشه (ورته) ويلې او په کندهار کښې تر اوسه د څړ ارتې ځمکې ته "ورشو" وايي، چې د لرغونيو ارياييانو د څاروي پالنې او کوچيتوب له ژوند سره بيخي زيات پيوستون لري.

**واته:** په اوېستا کښې د باد رب النوع و، چې شرحه يې مخکښې ولوستل شوه دا تورې په يغنوبي لهجه "وات" او په پښتو او دري "باد = واد" دى حال دا چې د ايران په نائيني او سيوندې لهجه کښې خپل ويدي شکل ته نيژدې (وا= باد) او په سمناني کښې "ويه" او په زازا کښې: "وايه" دى.

**ريشي:** ويدي کلمه د ستاينکي، ژبور او وياند په مانا ده، په پښتو کښې د "وراشه" خبره" او "رشه" اخلاق ريښه لري.



**سيندهو:** ويدي کلمه ده، چې په پښتو کښې تراوسه دسيند کلمه شته.

**سومه هومه:** مشهور واښه چې په پښتو د "اومه" په بڼه شته.

**څهند اواشلوك** : دنظم په مانا چې د پښتو په پخواني ادب کښې کټ مټ په خپله ويدي مانا راغلى دى.

**برهمن:** په پښتو برمن (د برم = جلال ، ځښتن).

**کشتري:** په پښتو (کښ + توری) د شمشير باز په مانا چې د پير روښان په خير البيان کښې (تور+ کښ) راغلى دى.

**ويسيه:** په پښتو "ويسا" د اعتماد او باور په مانا راغلى دى.

**شو دره:** په پښتو "سوډر د بى تهذيب او وحشي ناپوه په مانا" دى. او داسې نورې ډېرې ويدي کلمې په پښتو ژبه کښې ژوندى دي او کارېږي، همدا ډول تاسې دا داوېستايي دورې په مباحثو کښې ولوستل چې دا ژبه له پښتو سره تېنګه او غښتلې اړيکه لري.

نو ځکه مونږ پښتو ژبه د سنسکريت او اوېستاخور بولو، چې په غږو قواعدو او تورو کښې له دواړو ژبو سره ګډه ده، مګر لرغوني دري ژبه ښايي چې په خپله دافغانستان په خاوره کښې له او ستاځخه راپيدا شوي وي چې مونږ به دا موضوع په راتلونکيو بحثونو کښې مفصله وڅېړو.

په ويدي سرودونو کښې چې د هغه عصر يوازينى لرغونى ادبي اثر دى د هغه عصر د پوهو ريشيانو او ژبورو خبرې او سرودونه رانقل شوي، چې په هغو کښې يوه ډله آريايي ژبورې شاعرانې ښځې هم شته. د بېلګې په ډول د ريګويدا دلومړي کتاب په ۱۱۷ سرود او د شپږم کتاب ۳۹-۴۰ سرود کښې د شهزادګۍ ګهوچه Ghocha سرودونه را نقل شوي دي او هم د لوپا

مودره، Lopamudra، ماماته Mamata، اپاله، انداني، ساسي او ویشو وره سرودونه په ریګویدا کښې لیدل کېږي چې دهغه وخت شاعراني وې او موږ دلته د هغه وخت د تخیل، بیان او خبرو د طرز د څرګندولو له پاره د ریګوید د لومړي کتاب ۱۱۷ سرود د ګریفت ترجمه راوړو (۱) چې شهزادګۍ ګهوچې ویلې ده:

یه د سهار ستوریو! ستاسي بګۍ چې تر خیال ګړندۍ ده او زړورتیز اسان یې کشوي د خلکو لورته رازغلي چې د پاکانو ټاټوبې ولټوي.

چېرې ځئ؟ ای زړه ورو پهلوانانو، دلته زموږ ټاټوبي ته راشئ، تاسې ای د عجیبو کارنامو څښتنانو وندنه مو راویوست چې د بري او برم څښتن لکه خالص زر چې ښخ وي، لکه هغه څوك چې د تباهۍ او فنا په غېږ کښې پروت وي، لکه هغه لمر چې په تورتم کښې پټ وي.

یه د سهار ستوریو! تاسې د خپلو زیاتو قوتونو په مرسته هغه لرغونی مېړه شیه وانه مو د زلمیتوب غېږې ته وسپارۀ! تاسې یه ناستیانو! خپلې بګۍ وګمارئ چې دلمر لور له ټول هغه برم سره چې لري یې پورته کړئ، تاسې یه هغو کسانو چې تل زلمیان یاست، له خپل لرغونې دود سره سم مو "تورګا" راياد کړ او په خپلو غنم رنګو اسانو چې په ګړندیو وزر والوزی (بهوجیو) مو د سیند د څپو له منځه راوویوست.

یه د عجبو کارنامو خاوندانو! ځمکه مو یوې کړه او وربشې مو وکرلې، انسان ته مو دغذا شیره ورکړه او دښمنان مو په خپله برغو (کرنا) له منځه یووړه اولیري مو وغورځول او اریه ته موزیا ته رڼا او ځلا ورکړه،

۱- دا سرود ګران پوه ښاغلي عبدالرحمن پژواك پر ۱۳۲۲ هـ. ل کال په انګریزي ژباړلی او د اریانا مجلې په "٦ مه ګڼه" کښې خپور شوی دی.



چې د اسمان پرخندو خپره شوه.

یه ستوریو! زه له تاسې نه مرسته غواړم، یه د سهار ستوریو، زما نیازونو ته د مهربانۍ په سترګو وګورئ، یه ناستیه یانو! ماته له اولاده سره زیاته بډاینه او ثروت راکړئ.

ستاسې د زړورتیا سترې کارنامې چې په لرغونیو وختونو کښې مو تر سره کړې دي خلکو ته ښکاره دي هیله کوم، یه د سیك او قوت خاوندانو! زما دعاوې به هغه وخت تاسې ته وویلی شي چې زړور او قوی زامن مې خو او شاته ولاړ وي.

زه سو ماته خطاب کوم، چې تر ټولو ماته نژدې دی، دهغه ځای زموږ په اروا کښې دی له هغه څني غواړم چې زما ټول ګناهونه وبخښي."

* * *

د اور درب النوع اګني په ستاینه کښې یو سرود چې مدو چندس دوشوه متره زوی د ګایتري په بحر کښې په (۹) بیتونو کښې ویلی دی، شته چې څو بیته یې دا دي:

زه اګني چې روحاني ښکارندوی دی ستایم، دی د نمانځنې په وخت کښې روڼ دی، اود نمانځنې په بدل کښې بډایي بخښي.

اګني د لرغونیو او اوسنیو پوهانو دستاینې وړ دی ځکه چې ده دېوان ځای ته راوستل.

یه اګني! یوازې هغه ستاینه چې په هغو کښې مانع پیښ نه شي او ته یې له هرې خوا خوندي وساتې، داسې ستاینه نو خدای مني.

یه اګني په اسانه رسېږه لکه پلار زوی ته او زموږ د ښېګڼې له پاره له موږ سره اوسه!

* * *

اوس د ویدې د دغه سرود ترڅنګ د اوېستا څو سروده چې د زردشت له خبرو ځنې دي راوړو، په (۳۰) یسنا کښې وايي:

"سترو خبرو ته غوږ ونیسئ! په روښه اندیښنه ورته وګورئ د "درواغ اوربښتیا" د دوو ائینو تر منځ توپیر وکړئ! تر هغه دمخه چې د اخرت ورځ راشي، هر څوك دې په خپله خپل دین غوره کړي، ودې شي چې په پای کښې به مراد ته ورسیږو، هغه دوی همزولي توکي چې په‌پیل کښې دخیال په عالم کښې څرګندی شوې یوه یې په اندیښنه ویلو او کولو کښې د نیکۍ توکه وه او بله یې د بدۍ. اوپه دې دوو کښې باید یوه سړی نیکي غوره کړي نه بدي، هغه وخت چې همدا دوه توکه سره یوځای شي نو ژوند او مړینه ترې پیدا شوه همدا لامل دی چې په پای کښې د درواغجنو ډیر بدځای ( دوزخ) او د ربښتینو ډیر ښه ځای جنت په برخه کیږي."

په ۵۳ یسنا کښې وايي:

"یه مېړه کونکیو نجونو! او یه زومانو! دادی د ربښیم او خبروم مو، نصیحت مې په زړه ومنئ!

د سپېڅلتوب او پاکۍ په ژوندانه پسې د غیرت ملاوتړئ او ورپسې زیار وباسئ تاسې هر یو باید په ښه کار کښې یو تر بل دمخه شئ او په همدې ډول خپل ژوند خوښ تېر کړئ.

# د پردیو هخامنشیانو واکمني

هغه څه چې مو تر اوسه ولیکل زموږ د هېواد د تاریخ ټولې هغه پېښې دي چې د وخت په تېرېدو له کیسو سره یو ځای شویدي، خو د دې سیمې د کلتور یوه برخه ده او په هغو زمانو پورې اړه لري چې تر ځمکې لاندې لټوني لا د هغو په ترلاسه کولو نه دي بریالی شوي. خو په دیني کتابو کښې لکه ویدا، اوېستا او نورو خدای نامو او په ملي روایتونو کښې پرله پسې رانقل شویدي.

د آریایي نژادو ملتو تر منځ چې له باختره یې ختیځ او لویدیځ خواو ته هجرت کړی دی او د آریانا (لرغوني افغانستان) له خاورې بهر یې مدنیتونه او حکومتونه جوړ کړي. د دوی له یوې برخې سره د تاریخ او سیاست له مخې اړه لري، په دې مانا چې د دوې سیاسي او فرهنګي نفوذ دومره غوړیدلی و چې اثر یې دافغانستان تر خاورې پورې رارسیدلی و.

د بېلګې په ډول د ایلام آریایي نژاده خلك چې مدنیت یې تر تاریخ وړاندې په لویدیزې اسیا پورې اړه لري اوپه پای کښې له سامي نژاد سره ګډ شوي دي، زمونږ په لرغوني فرهنګ کښې مخامخ اغیزه نه لري. اوهم میتاني تېرونو چې د مدنیت آثار یې د کوچنۍ اسیا په بوغاز کوي د هیتي (پتریوم) په پای تخت کښې پیدا شوي او د (۱۴۰۰ ق.م) په لویدیزو اریایانو پورې اړه لري، دوی د افغانستان پر اوسېدونکیو اریایانو مستقیماً اغېزه نه

درلوده، خو په اوومه قبل المیلاد پیړۍ کښې د " ماد" قوم چې اریایي نژاده اوارياييِ ژبې ټبرو اوپه اسوري ډېر ليکونو کښې د دوی هېواد د "امادای" په نامه ياد شوی د اوسني ايران د سيمې په شمال کښې پيدا شو، چې د دوی شاهي مرکز هګمتان "د هيرودت: اګماتان = همدان" و، د هيرودوت په وينا له (۷۰۱ ق. م) کال څخه تر (۵۵۰ ق.م) پورې څلورو مادي پاچاهانو حکومت کړی دی:

۱. ديوکس Deiocas = دهياکو = دهکان د فرورتس زوی (۷۰۸-۶۵۵ق.م) د (۵۰) کالو په شاوخوا کښې.

۲. فره اورتس د ديوکس زوی (۶۵۵-۶۳۳ ق.م ) ۲۲ کاله ( د داريوش ډبرليك: فرورتيش).

۳. هووخ شتر (= کواکزار = سياکزار يوناني ( ۶۳۳=۵۸۵ ق. م) ۴۸ کاله.

۴. استياګس Asteyages (اژدهاك) د هووختشر زوی (۵۸۵- ۵۵۰ ق.م) چې تر ۳۵ کاله پاچاهی وروسته دده په وخت کښې د "ماد" دولت پای ته ورسېد او ځای يې هخامنشيانو ونيو.

د افغانستان په تاريخ کښې د مادي شاهانو دوره او د دوی مدنيت، څکه د اهميت وړ دی چې د هيرودت په وينا فرور تيش د مادويم پاچا، د ارين استوګنو ټولې ختيزې ځمکې د باختر او جيحون تر غاړو پورې نيولې وې، له همدې امله د دوې د تمدن آثارو، تشکيلاتو، معمارۍ، ژبې، حجارۍ، مجسمه جوړولو، مهر او رڼاپرستۍ، څرنګه چې يې د هخامنشي ددورې په تمدن باندې اغيزه کړې وه، د اريانا په دې ختيزه برخه کښې به يې هم اثر پرايښی وي. حتی دارمستتر د فرانس ستر پوهاند پښتو ژبه هم مادي ژبې ته نژدې ګڼي او هيرودت وايي چې دماد خلکو سپي ته "سپاکو"



ويل چې دا کلمه په اوسنۍ پښتو "سپي" ده چې له تانيث تصغير سره ورته " سپيکو" ويل کېدای شي، همدارنګه يوه ډله څېړونکي پوهان وايي چې زردشت له ماد څخه باختر ته تللی و، څرنګه چې د مغ ډلې (روحاني ماديانو) د لمر پرستۍ مذهب په کوډو او جادوګرۍ لړلی و، زردشت وغوښتل چې اصلاحات راولي نو باختر ته لاړ او دلته يې برياليتوب په برخه شو.

بنايي وويل شي چې هخامنشي پاچايانو له ماد څخه ډېر څه زده کړل او د هخامنشي دورې زيات ترتيبات مادي دورې ته ورته او د هغې دورې بشپړيده و، چې دماد دولت له منځه ولاړ په سياست او ژوند کښې کوم بنسټيز بدلون رامنځته نه شو.

حتی په ځينو مواردو کښې په صراحت ويل کېدای شي چې د هخامنشي پارسيانو اقتباس د ماد له خلکو و. د مثال په توګه هيرودوت او سترابو ليکلي دي، چې پارسه خلکو د کاليو ډول د "ماد" له خلکو څخه زده کړی دی.

کراستي خولۍ، لستوڼي لرونکي چوخه، تيز ارغواني، تك تور، سره کالي او تنګ لستوڼي، ترزنګنو پورې د څرمنې کوټ (تنزيب)، د څرمنې لوړ پروتوګ، تنۍ لرونکی کوښې چې جګې څوکې يې درلودې، د کراستي ګردۍ خولۍ، ترزنګانه پورې خت، ملاوستونی (کمربند) خنجر له تيکي سره، د لينډۍ پوښ، خول، رېره او راز راز وسلې هغه شيان دي چې د (ماد) له خلکو څخه اقتباس شوي دي.

په هر حال د "ماد" دولت د "هو و خشتر" په وخت کښې خپل اوج ته رسېدلی و او له عربي دولتوسره يې اړيکي درلودل د ليدي پاچا "اليات" لور د "ماد" ملکه وه او همدارنګه د اژدهاك خور د بابل ملکه ګڼله کېده.

د "ماد" په عصر کښې د اريايي خلکو يوټبر چې "پارسوا" نوميد

له شمال څخه جنوب ته ولاړ او پر هغه ځمکه ميشت شو، چې وروسته د همدغه ټبر د نامه له امله "پارس" وبلل شو، له آسوري کتيبو څخه څرګندېږي چې له (٧٠٠ تر ٦٠٠ ق،م) پورې د پارسوا اميران د اسور تابع وو او د مادي پاچهانو له کهاله څخه فرورتيش (٦۵۵ - ٦٣٣ ق،م) پارس د ماد تابع کړ.

د پارسي شپږو قبيلو په منځ کښې چې په ښار کښې اوسېدل، يوه هم "پارساګاد" وه چې مشرېې هخامنش (٧٠٠ - ٦٧۵ ق،م) نوميد او د ده له نسله د هخامنشيانو په نامه دغه پاچهان وزېږېدل:

(شجره په مخامخ پاڼه کښې وګورئ)

مورخان د دې تابلو پرجوړښت اختلاف لري ځينو يې يو څو نومونه نه دي راوړي، خو هغه څه چې د "ايران باستان "ترتيب کړي، تر نورو معقول ښکاري، چې دلته يې له ځينو زياتو تشريحاتو سره راوړل شوه.

هخامنشي پاچهانو له (٧٠٠ ق،م) څخه د ايالتي اميرانو په توګه د مادي پاچهانو تر اداري لاندې په ايلام کښې حکومت کاوه، او د "ماد" وروستنی پاچا ستياګس چې يو ناپوه سړی و، خپله لور "ماندانه Mandane" يې دويم هخامنشي کمبو جيه ته ورکړې وه، چې د هغې له نسه لوی کوروش (سيروس) وزيږېد او هغه د ستياګس پرضد پاڅېد او له منځه يې ورک کړ پر (۵۵۹ ق،م) کال يې د يوې لويې شاهنشاهۍ بنسټ کښېښو چې د ايران د فلات ټولې ځمکې په کښې راتلې.

که څه هم کوروش د هخامنشي کورنۍ اووم پاچا ګڼل کېږي، خو د دغه، کهاله لومړنی لوی بريمن (فاتح) دی او وروسته تر هغه چې لويديځ خواته يې د مديترانی تر غاړو پورې هېوادونه ونيول، د پارس ختيځ خوا ته يې مخه وکړه، ورنه کانه (ګرګان)، پرثوه (پارت)، اريا(هريو- هرات) چې پايتخت يې ارته کنه (Artacana) و، زرنکه (=درنګه درنګيانه = اوسنی




( د ۵۳ مخ مربوط)

سیستان) د اتیماندروس (= هیتومنت = هلمند) د سیند پرغاړه، هاور وتیش (- هرووتی = اراکوزی = ارغنداو)، د کوفن (کوبهه = کابل) د سیند ناوه، داوپیري سینه (= پارو پامیزاد = هندوکوش) غرونه، دوګز که (غزنه)، د ګندهاره ولایتونه (له ننګرهاره د سند ترغاړې پورې)، باختریش (بکتریه = بلخ) د سکاهومه ورګا (پامیر) تر غرو پورې او همدارنګه یې د آمو هاخوا ته سوګودو (سغد) تر (اور کسارتس) (سیر دریا)، د خیوه او هوارزمه (خوارزم) او مرګیانا (مرو) ډاګونه او دښتو نه له هخامنشي هېواد سره وتړل .

د ګندهارا په ناوه کښې د خیبر درې ختیزې خواته د سیروس له آثارو څخه د یوې آتشکدې پاتې برخه ده، چې د پېښور د ګزیټیر (د ۱۹۳۱ چاپ) له مخې د آتشکدې دا پاتې برخه په سوابۍ کښې د مردان د ضلع "شهباز ګړی" شمال ختیځ ته ۱۲ میله لیرې په "اسوټه " کلي کښې د یوو لسو فټو په لوړوالی په یوه دایره کښې چې شپیته فټه پیړوالی (قطر) لري پرته ده، او بنسټ یې پرشنو ډبرینو پایو اېښوول شوی دی، چې د هرو دوو پایو ترمنځ یو تش ځای شته، پوهان وايي چې د اور پرستو دغه معبد دیرش دروازې درلودې او په یوه میاشت کښې هره ورځ له یوې دروازې څخه ورننوتل چې ټولې دیرش دروازې کېدې هره دروازه د دوو ډبرینو پایو ترمنځ وه.

سیروس (کوروش) پر (۵۲۹ ق،م) کال په یوه جګړه کښې وژل شوی او یا په طبیعي مړینه مړ دی او دریم کمبوجیه چې د ده پرځای کښیناست د ده فتوحات یې پسې تعقیب کړل، چې د مړینې پروخت یې هېواد له خورالویو او ارتو هېوادو څخه و تر هغه وروسته لومړی داریوش د دغه کهاله نهم پاچا پر (۵۲۲ ق،م) پر تخت کښیناست، چې په یوه کال کښې یې د کمبوجیه پرټول هېواد برې ومومد او له یونان څخه ترهند پورې یې پردې لویه



ځمکه حکومت کاوه، او د مدنیت په خپرولو، لوړو مانیو ودانولو، د هېواد والۍ (مملکت داری) د اصولو په وضع کولو، د لارو په جوړولو او د لښکر په سمبالولو کښې یې زیار ویوست او پر ۴۸٦ ق - م کال مړ شو. د هخامنشي سلطنت د مدنیت او فرهنګ اثار په افغانستان کښې هم خپاره شول. په پارس، شوش، مصراو د الوند په غره او نورو ځایو کښې د داریوش ځیني لیکنې او کتیبې پاتې دي، چې په میخي لیکدود په پخواني فرس، ایلامي، آسوري، مصري، بابلي او شوشي ژبو لیکل شویدي. "د پخوانی فرس میخي خط {۴۲} نخښې درلودې."

د دغو لرغونیو اثارو ډیرې مهمې لیکنې هغه دي چې د پارس په نقش رستم او بیستون کښې له داریوش څخه پاتې دي، په هغو کښې داریوش د هغو هېوادو نومونه لیکلی دی چې ده تر واکمنۍ لاندې وو، هغه څه چې زموږ د هېواد په تاریخ پورې اړه لري دادي:

۱- پرتوه Parthava (خراسان او ګرګان)

۲- باختریش Baxtrish (بلخ) چې شمال ته یې آمو او لویدیځ ته یې مرګویه (مرو) او ختیځ ته یې د سیتي له قومو څخه یو قوم د ماساژت په نامه و او پایتخت یې زری اسپه بنایي چې اوسنی بلخ و.

۳- سوغوده Sughuda (سغد) د اوسني سمرقند سیمې.

۴- کرمانیه Karmania (کرمان= د پارسه او ګدرزي او پرثوه تر منځ).

۵- ګدرزی Gedrosie (د افغانستان جنوبي سیمي تر سمندره پورې).

٦- زرنګه Zaranka (زرنج = سیستان).

۷- هره یوه Haraiva هرات.

۸- او ارزامیه Uvarazmiy (خوارزم).

۹- ګداره Gadara (د کابل رود او پېښور).

۱۰- هیندوش Hindush (سند).

۱۱- ته ته گوش Thattagush (د هرو دوت سته گید = شیتك د کوهاټ، بنو او ختیکو سیمې).

۱۲- سکه هومه ورکه Saka-Homa-Varka (د هومه راکښنته کوونکی ساکه یان- غالباً د پامیر په شاوخوا کښې).

۱۳- سکه تیگر خئوده (د تیره خول خاوندان ساکه یان).

۱۴- سکه تیه تر دریا (د سیندها خوا ته ساکه یان).

۱۵- مکه (مکران).

۱۶- هراووتیش Harauvatish (اراکوزی = ارغنداب).

د داریوش ارت هېواد ټول "۳۱" ساتراپی (ولایتونه) لرل، چې په هغو کښې د ټول اوسني افغانستان پورتني ولایتونه او څیرمه ځمکې شاملې دي او د گندهارا ولایت ته په بابلي او ایلامي لیکنو (کتیبو) کښې (پاره او پره ازانه) یعني تر غرو ها خوا ایالت ویلی شوی دی، خو د هغو وختو د وضعیت جزیات تر اوسه په تفصیل سره څرگند نه دي یوازې همدومره ویل کېدای شي، چې له ۵۵۰ق.م یعني د داریوش له راتلو څخه بیا تر (۳۳۱ق.م) پورې چې هخامنشي شاهنشهی د سکندر په لاس له منځه تله، د افغانستان خاوره د هخامنشي لویې شاهنشهی برخه وه او حتی د سند د هاخوا پنجاب یوه برخه هم وریورې نښتې وه، نو ځکه د هخامنشي او هندي مدنیت په یو ځای کېدو سره د هخامنشیانو له رسمي آرامی لیك څخه خروشتی لیکدود د ناوې د خلکو په ژبه کښې د فاتح او مفتوح کلتور له گډون څخه منځته راغی او د هند د موریه کهاله پاچهانو (۳۲۳ - ۱۹۰ق.م) د هخامنشي صنعت او معمارۍ د سبك پیروي کړې وه.

هیرودت (۴۲۵ ق.م شاوخوا مړ) د افغانستان په ختیزه ځمکه د اریونس د پاچاهۍ د دورې په اړه ښه اطلاعات راکړي دي، چې له هغې جملې څخه په ۴۴۴ کتاب کښې لیکي:



"د اریوش، دریاب ته د سند رود د گډیدود ځای کشفولو له پاره یو یوناني امیر البحر چې سکیلاکس Skylox نومېد او د {کاریاندار} د ملك و، له څو باوري کسانو سره په بېړۍ کښې کیناوه، او د هغه کار له پاره یې واستاوه د اډله د کسپاتو رس له ځمکی (ښاره) او د پکتویك Paktuike له ځمکې وخوځېده او دریاب ته ورسېده".

همدارنگه دغه لرغوني مؤلف په ۳ - ۱۰۲ کتاب کښې د کسپاتورس ښار د پکتویك په هېواد کښې بللی او وایي چې دا خلك د ژوند دود او دستور له پلوه باکتریانو ته ورته او ډېر جگړن دي.

ډېرو څېړنکیو پوهانو د هیرو دوت "کسپارتورس" او پکتویك له اوسني پېښور او پښتون سره تطبیق کړی دی، دا ځکه چې تر هیرودوت د مخه هم مشهور جغرافیا پیژندونکي هیکاتایوس Hecataus د (۵۰۰ ق.م) په شاوخوا کښې کسپاتورس په گندهاره کښې بللی و، چې همدا پېښور او گندهارا دی.

هیرودوت د اووم کتاب په ٦٦ - ٦٧ - ۸۵ - کښې د "خشیارشا" د جگړنو فهرست راوړي او په هغه کښې یې گنداریوی Gandarioi او دادیکای Dadikai چې د باکتر وسلې یې درلودې، دپکتویس (د پوستین اغستونکیو لیندۍ، ویشتونکیو او خنجر لرونکیو) په نامه یاد کړي دي، او هم یې د ساگارتیوي Sagartioi د کوچي قبیلو یادونه کړې ده، چې ژبه یې پارسي او کالي یې نیم پارسي او نیم پکتوان Paktuan وو او اته زره سپاره یې لښکر ته ورکول مؤرخانو گنداریوي د گندهارا خلك او د ادیکا تاجیك او پکتویس او پکتوان پښتون بللي دي، زه د هیرودوت ساگار تیوي همهغه د داریوش د بهستون ساگارتي بولم، چې (د غور له جنوبي) ساخر - ساغر- سره تطبیقیږي، او ځینو بیا په سپك احتمال هغه شرخبون "= خربنبون = د مطلع السعدین خرشوانی = د قندهار د پښتنو یوه قبیله" بللې ده.

د داریوش د بهستون له لیکنې (کتیبې) څخه د ده په عصر کښې د دغه هېواد د اوضاعو په اړه ډېر ښه معلومات لاس ته راځي، او له دې څخه چې د بهستون په کتیبه کښې د ولایتو شمیر ۲۳ او په نورو کتیبو کښې ۳۱ دی معلومیږي، چې کله کله به د هخامنشي ترلاس لاندې ځینو هېوادو بلوا کوله او له نورو تر لاس لاندې هېوادو سره به نه ګډیدل، لکه چې د ساګارتیوي د ولایت نوم یوازې د پارس د بهستون په کتیبه کښې راغلی او په نورو کتیبو کښې نه شته.

د بهستون د کتیبې په (۲ ستون - ۲ بند) کښې وایي:

"هغه وخت چې داریوش په بابل کښې و. پارت (خراسان )مرو، تته ګوش او سکائیه بلوا کړې وه، د پارت بلوا د داریوش پلار ویشتاسپ غلې کړه، دی له فروتیش سره په "ویش پاوزات" نومي ځای کښې وجنګید او هغه یې مات کړ. په ساګارتي کښې (که یې ځای د خراسان خواته وټاکل شي) هم د چیتره تخم .Chitrataxm په مشرۍ بلوا شوې وه، چې داریوش د تخمسپاده Texmaspada په مشرۍ یو لښکر وروااستاوه او چیتره تخم یې ونیو، چې داریوش ته یې راووست، د هغه غوږ او پزه یې پریکړه، سترګې یې ور وویستلې او غرغره یې کړ (۲ ستون ۱۴ بند) د خراسان په مرو کښې هم فراده Frada نومي سړي بلوا وکړه، چې داریوش د باختر والي "د ادرشیش" د هغه دفع ته وګماره، دادرشیش مرویان رعیت او ټول باختر غلی شو (۳ ستون ۳ بند).

هغه وخت چې په پارس کښې " وهی یزدات " یاغی شوی و نو ده یو لښکر د رخج هره خواتیش ته = د ارغنداو ناوې ته واستاوه او د رخج والي ویوانه Vivana یې وشاړه، خو دا والي په کندهار کښې د داریوش له لښکر سره یو ځای او د "وهی یز دات" د لښکر مقابلې ته ووت او په هغه جګړه کښې چې دانامکه د میاشتې پر۱۳ ورځ د کاپیش (کاپیشکانه) په کوټ



(کلا) کښې وشوه، د یاغیانو لښکر مات او ترهغه وروسته یې د (کندهار) د ګندوم Gandum په سیمه کښې د ویخن د میاشتې پر "۷مه" ورځ بیا همدغه یاغي شوي لښکر ته ماتې ورکړه، د یاغیانو مشر له لږ شمېر سپرو سره و تښتېد، دی د (کندهار) د ارشاده په کلا کښې د ویوانه په لاس کښیووت او ووژل شو او په دې ډول درخج ایالت د داریوش د هېواد برخه شوه.(۳ ستون ۱۳ بند).

دا پېښې د ۵۲۲ ق،م د سپتامبر له ۲۹مې څخه د ۵۲۰ ق،م د مارچ تر لسمې پورې منځته راغلې دي.

د هند د نیولو لپاره د داریوش د جنګي سفر بیان داسې لیکل شوی دی:

دی د سند له سینده پورې ووت؛ سند او پنجاب یې ونیول او یوناني سکیلاکس یې د عمان سیند ته واستاوه، چې هر کال به ډېر سره زر له هنده پارس ته رسیدل په دې توګه د هند او غربي هېوادو ترمنځ تجارتي روابط ټینګ شول، او له همدې شلم ایالت څخه هر کال ۳۶۰ تالانه سره زر (تخميناً ۲۵ ملیونه افغانۍ) د باج په توګه هخامنشي دربارته رسیدل.

د پارس د تخت جمشید د داریوش په هدیره کښې د هخامنشي دولت د تابع شویو خلکو تصویرونه کښل شوي دي، چې د نورو دیرشو ملتو په جمله کښې دا نومونه هم شته: پارتی (خراساني) هراتي، باختري، سغدي، خوارزمي، زرنګی (سیستاني) رخجی (قندهاري) ته ته ګوشي (پختیا د سند ترغاړې پورې) ګنداري، هندي، او ساګارتي. داخبره هم څنې ښکاري چې د اوسني افغانستان خلکو د پنځمې ق،م پیړۍ په شاوخوا کښې د خپلو ځایو او ولایتو په نومو شهرت درلود. (وګورئ ۱۲ مه نومره عکس).

داریوش په خپل پایتخت شوش کښې یوه ماڼۍ جوړه کړې وه، چې کتیبه یې په درو ژبو "پارسي، ایلامي او بابلي" کشف شوې او په هغې کښې

هم د افغانستان د ولایاتو د خلکو یادونه شوې ده.

دی وایي: ددې ماڼۍ چندڼ لرګی له ګنداره طلایي له باختره، د لاجورد ډبرې يې له سغده، فیروزه يې له خوارزمه او پیلغابښ (عاج) يې له هند او رخجه او د څیړۍ (بلوط) لرګي يې له ګنداره څخه راوړل شوي دي، چې داټول ځایونه په افغانستان او د هغه په شاوخواکښې دي.

داریوش خپل ارت هېواد چې په هغه کښې له راز راز نژادو څخه ۴۸ ډوله خلك د راز راز ژبو، ادیانو او اخلاقو سره اوسېدل په دېرشو ستراپۍ (ولایتو) ویشلی و، چې هلته محلي حکمرانانو هم د خپلو عقایدو له آزادۍ سره ژوند کاوه او هر ولایت د خشترپاون (د ولایت د ساتندوی) په نامه یو اعلی حاکم درلوده، چې له هخامنشي درباره مقررېده او ولایت يې د یوه دبیر او یو لښکري مشر په مرسته اداره کاوه.

سردبیر به تل مستقیماً مرکز ته اطلاع ورکوله، د امنیت مسوول ارګ پت و. څرې تونونه (چاپارخاني) لارې او میلمستونونه (مهمانخاني) يې درلودل. په هر ولایت کښې خشترپاون مالیې ټولولې، پلې او سپاره لښکر يې درلودل، اوولس زره تنه دولتي غښتلي لښکر د "جاویدان" په نامه و. هیرودوت د هر ولایت د مالیې اندازه هم لیکلې ده، چې له هغې جملې څخه د افغاني او ګاونډیو ولایتو مالیه داسې وه:

١ - د هخامنشي اووم ایالت: چې ستاګیدی، ګندهاره، دادیك، اپریدي پکښې وو ١٧٠ تالان (د لسوملیونو افغانیو په شاوخواکښې)

٢ - دوولسم ایالت باختر او نور اړوند ځایونه ٣٠٠ تالان (١٨ ملیونو افغانیو شاوخوا پورې).

٣ - څوار لسم ایالت چې ساګارتي زرنګي (سیستاني) پکښې اوسېدل د عمان د جزایرو د غاړو تر خلکو پورې ٦٠٠ تالان ( د دېرشو ملیونو افغانیو په شاوخوا کښې)



اوس د افغاني سیستان ویش ته نژدې یو لرغونی ښار کشف شوی دی، چې د هخامنشي دورې په مدنیت پورې اړه لري او له ده څخه هم څرګندېږي، چې سیستان په هخامنشي هېواد کښې داخل و. (وګورئ ١٣ مه نومره عکس).

۴ - پارت - خوارزم - سغد - هرات ٣٠٠ تالان ( د ١٨ ملیونو افغانیو په شاوخوا کښې )

۵ - هند او سند - ۴٦٨٠ تالان (د یوسل او شپېتو ملیونو افغانیو په شاوخوا کښې) دا د ختیزو ولایتو د مالیو اندازه وه، خو د داریوش د وخت د دولت ټوله مالیه يې "٥٦٠، ١۴" تالان - نوي ملیونه طلایي فرنکه = ۴۵٠ ملیونه افغانۍ) بللې ده.

د اولف کرو په وینا: د هخامنشي کهاله کوروش، لومړی داریوش، خشیارشا، او دویم داریوش په ګندهارا کښې مستقیماً حکم چلولی دی، چې د ختیزو ایالتو پایتخت کسپاتورس (پیښور) او پیوکیلاوتس (چارسده) و، او لکه سرد او ېدهوګرث چې د سکندر په کتاب کښې وایي: "د ګوګمل په جګړه کښې چې د دریم داریوش او سکندر تر منځ پېښه شوه، د یوناني مؤرخ اریان له فهرست سره سم پښتانه او د هندوکوش د غرو خلك د داریوش په لښکرو کښې شامل وو "چې له دې څخه هم له دغه هېواد سره د هخامنشیانو اړیکې څرګندېږي.

# د سکندر یرغلونه

د هغو لویو تاریخي جریانو په سلسله کښې چې ترویدي او اوېستایي فرهنګ او د هخامنشي مدنیت تر اغېزو وروسته یې د افغاني فرهنګ په جوړولو او زموږ په هنر او پخواني فکري جوړښت کښې ډېر زیات او څرګند اثر کړی، یو هم د افغانستان پر خاوره د سکندر مقدوني لښکرکشۍ دي، چې د دغه هېواد د فرهنګ، ژوندانه، فکر او مدنیت لرغوني جریان ته یې څرګنده اوښتنه او نوې بڼه ورکړې ده او د افغانستان په تاریخ کښې دا پېښه خاص اهمیت او ډېرې ژورې اغېزې لري، ځکه چې زموږ پر سیاست، د ژوندانه پربڼه، فکر، ادب، هنر او زمونږ د فرهنګ پر ټولو خواوو یې دومره ژور او تغییر ورکوونکی اغېز کړی، چې پخوانۍ لاره یې بېخي پرې ایښې ده.

سکندر د یونان په شمال کښې د مقدوني پاچا دویم فلیپ زوی و، چې پر ۳۵۶ ق،م کال د پلا په ښار کښې زیږېدلی دی، پلار یې فلیپ د دریم امین تاس زوی او مور یې المپیاس د مولوس د پاچا، "نی اوپ تولم" لور وه، د یوناني اساطیرو له مخې سکندر د پلار له خوا هرکولس او د مور له خوا "اشیل" د یونان افسانوي پهلوانانو ته رسېږي. همدا چې پلار یې پر (۳۳۶ق م) په یوه مېله (جشن) کښې د یوه یوناني له خوا ووژل شو، نو پر هم هغه کال پر شل کلن عمر د یونان پر شاهي تخت کښېناست.



دا مهال د هخامنشي کهاله تخت دریم داریوش "کدمان" ته رسېدلی و، چې د هېواد چارې د ده د یوه ګوتو هوني وزیر "باګواس" په لاس کښې وې په خپله کدمان لټ، بېکاره او ناراسته سړی و ځکه نو سکندرته - چې د جهان نیولو اراده یې درلورده - د هخامنشي د ارت هېواد نیول اسانه کار ښکارېده، او له ۸۰ زرېز لښکر او جنګي بېړیو سره د دار دانل تر آبنا راپورېووت او پر "اسیا" یې یرغل وکړ.

دریم داریوش هم ۸۰ زره عسکر لرل، چې یو څه یې یوناني اجیر سپایان وو او د دوی قوماندان هم یوناني (میمنین) نومی و، خو د ګرانیك، ایسوس او ګوګمل په درېو جګړو کښې یې کلکه ماتې وخوړه، سکندر هخامنشي ښکلي پایتخت "تخت جمشید" ته اور واچاوه، داریوش پارت (خراسان) ته وتښتېد او د (۳۳۰ ق م) کال په جولای کښې د پنځوسو کالو په عمر دامغان ته نژدې د باختر دوالي "بسوس" او درخج او در نګیانا (کندهار او سیستان) د حکمران (برسینتس) له خوا ووژل شو.

سکندر د داریوش د نیولو له پاره پر خراسان یرغل وکړ همدا چې هغه یې وژلی وموند د هغه وژونکي یې غرغره کړل او د ختیزو سیمو نیولو ته یې مخه وکړه.

دا وخت بسوس باختر ته ورسید، هلته یې د پاچهۍ اعلان وکړ او د سکندر د مقابلې له پاره یې په هڅو لاس پورې کړ بر سنتس هم ځان سیستان ته ورساوه او ساتی بارزانس له اریا (هراته) په دغه دفاعي تړون کښې ګډون وکړ، خو چې سکندر سوزیان (طوس) ته ورسېد، د هرات حکمران هغه ته ښه راغلاست وویل، بیانو د بسوس د ترټلو او نیولو له پاره باختر ته وخوځېد، چې د ده په غیاب کښې د هرات خلك د همهغه بارزنس په مشرۍ پاڅېدل او د یوناني لښکرو مشر اناکسیب یې په هرات کښې

وواژه، سکندر چې د هراتیانو له دغه ملي پاڅون نه خبر شو، ژرارتاوکوانا ښار ته ستون شو او د ساتي بارزانس او هغه د فدا کار لښکر مقاومت یې "چې په یوه ځنګله کښې یې مورچه نیولې وه "ځنګله ته د اور اچولو له امله مات کړ ده د یوناني لښکرو د ساتلو او استوګنې له پاره د اریا سکندریه ښار ودان کړ چې همدا اوسني هرات دی او د هغه حکمراني یې ارزاسس (ارشك) ته وسپارله.

هرات چې د سکندر لاس ته ورغی، نو د فراه له لارې یې پرزرنګ (سیستان) یرغل وکړ او د ۳۳۰ ق،م کال د اکتوبر پر میاشت یې په سیستان کښې د خپل لښکر ستر قوماندان فیلوتاس د پارمن یو زوی او هم د خپل ګارډ سردار دیمتریوس یې چې ځنې ویریده ووژل او له هغه ځایه ختیځ خواته، دایتي ماندر (هلمند) د غاړې د اورګیتی "ګرمسیر" د نیولو له پاره چې تیرې داس یې حکمران و، هغه هېواد یې له ګډ روزیه (بلوچستان) سره ونیو او د هغه ځای پایتخت یې چې اریاسپ نومېده ونیو.

سکندر د هلمند له ناوي څخه د اراکوزی (ارغنداو) ناوي ته ولاړ او د ۳۲۹ق،م پر دوبي یې اوسني کندهار ته نژدې د اراکوزي سکندریه ښارودان کړ او دغه عسکري کوټ یې د یوناني سپایانو قرارګاه کړ او هم یې د هغه ځای له خلکو عسکر واخیستل او (ممنن) یې د هغه ولایت والي وټاکه.

دا وخت که څه هم سکندر دری لوی ولایتونه لکه آریا (هرات)، د رنګیانه (سیستان) او اراکوزی (کندهار) نیولي وو، خو د هراتیانو ملي مشر ساتې بارزانس د باختر له پاچا "بسوس" څخه دوه زره عسکر کومك واخیستل او په اریا (هرات) کښې یې د خپلواکۍ بیرغ پورته کړ؛ سکندر خپله یوه لویه پوځي قوه دار ته بازیوس، ایری ژیوس او کارانوس په مشرۍ



د هرات د ملیون د مقابلې له پاره واستوله او د پارت والي چې فراتافرون نومېد، له دغو مشرانو سره یو ځای شو او د هرات ملي قواوې یې لېه هرې خوا محاصره کړې، چې په یوه سخته جګړه کښې ساتي بارزانس د ایری ژیوس له لاسه ووژل شو او د هرات مقاومت هم پای ته ورسېد.

تر هغه وروسته سکندر د کابل او د پاروپامیزاد د غرو د نیولو خوا ته مخه کړه او د ۳۲۹ق.م د نوامبر پر میاشت د ژمي په سر کښې کابل ته راغی، بیا د کابل د شمال خوا "کاپیسا" ته وخوځېد او چاریکار ته نژدې یې په هوپیان کښې د قفقاز سکندریه ښار ودان کړ.

د ۳۲۹ق،م د پسرلي په پای کښې سکندر له خپل لښکر سره د قفقاز له سکندریې څخه وخوځېد او د اندراب له لارې د هندوکوش تر غرو (د یوناني قفقاز تر غرو) تېر شو او د باختر د حکمران بسوس پر لښکر یې چې اته زره باختری وسله وال وو یرغل وکړ، خو بسوس په لښکر کښې د مقاومت متره و نه لیده، د باختر سیمې یې ورانې او خوراکي شیان یې له منځه یوورل، د آمو له سینده د سغد خوا ته تېر شو او باختر د سکندر لاس ته ورغی چې ارته بازیوس یې د هغه حکمران وټاکه، ازچیلاس یې له ساتندویو عسکرو سره هلته پرېښوو او په خپله کیلیف ته نژدی د آمو تر سینده پورېووت، د قرشي یا اوسني شهر سبز په شاوخوا کښې بسوس لاس ته ورغی، ماراکنده (سمرقند) یې ونیو او هلته یې د تانائیس سکندریه ښار ودان کړ چې اوسنی خجند دی.

په سغد یانه کښې هم د سکندر پر لښکرو سختې حملې وشوې، نو ځکه سکندر مقدوني پر کولائوس له دریو زروسپایانو سره هلته پرېښوو، باختر ته راوګرځېد، او چې دلته را ورسېد د هرات والي ستازانور یې دربار ته راغی او د هرات پخواني والي ارزامس او د پارت والي برانس یې چې د

بسوس له خوا مقرر شوي وو، د اوسپنې په ځنځیرو کښې تړلې راوستل، بسوس یې په غونډه کښې محاکمه کړ او ویې واژه (۳۲۸ق.م).

دا مهال نولس زره هوسا او نوي عکسر له یونانه د سکندر له لښکر سره یو ځای شول او ده دمرګیان (مرغاب) په ناوه کښې یې د هغه ځای وطني حکمران اریمیازیس په دار وځړاوه. د مرو په سیمو کښې یې د سرخس او مروچاق کلاوې ودانې کړې او بلخ ته راوګرځېد، د لارې پر سر یې په میمنه، اندخوی، شبرغان، او سرپل کښې څلور پوځي کوټونه (حصارونه) جوړ کړل، بیا تر امو پورې ووت او په مراکنده (سمرقند) کښې له خپلو لښکرو سره یو ځای شو.

د سپیامنش د باختر یو جنګیالي او زړور مېړه چې په هغو سیمو کښې یې له سکندر سره جګړې کړې وې او د څه وخت له پاره له میدانه وتلی و، بیا په باختر کښې ډګرته راووت او د یونان په عسکرې مرکز زریاسپه کښې یې د سکندر د لښکر مشر پیتون Petton ونیو، خو د سکندر له خوا کراتیروس له سپیتامنش سره ونښت او هغه یې له هغه ځایه ویوست، خو لږ وخت وروسته چې سکندر له سغدیانه څخه را وګرځېد، همدغه سپیتامنش له دریو زرو سغدي او باختري سپرو سره د ده مخ ته ودرېد، سکندر د دغه توریالي له مېړانې څخه په عذاب شو او د باختر والي ارته بازیوس یې چې د سپیتامنش په ملګرې تورن و ګوښه کړ او د هغه پر ځای یې مقدوني امینتاس Amyntas وټاکه چې د عسکرې جنرال کوانس په ملاتړ باختر وساتي خو بیا هم د باختر سپیتامنش ورباندې یرغل وکړ، چې د خپلو ملګریو د خیانت له کبله ووژل شو (۳۲۷ق.م) په دې ترتیب د وطنپالو باختریانو مقاومت پای ته ورسېد او زیات ملي مشران د سکندر له لاسه نیست او نابود شول. یو له هغو مشرانو څخه هوخیارتس Oxyates نومېد، چې



له خپلې کورنۍ سره غره ته ختلی و خو مقدوني لښکرو ورباندې یرغل وکړ او دی یې د خپلې خورا پیمخې لور روښانې Roxana سره چې یونانیانو په خپل ګړدود رکسانه بللې ده، سکندر ته راووست او ده دا ښکلې باختري پېغله د ۳۲۷ ق.م په پسرلي کښې ماندینه کړه، خو د یوناني لښکرو مشران له باختري پېغلې سره د یونان پاچا په واده خوښ نه وو. یو له هغو ناخوښیو څخه ستر پوځي مشر "کلیتوس" و، چې د ۳۲۷ ق،م پر پسرلي د مستۍ په یوه مجلس کښې چې په باختر کښې جوړ شوی و، د سکندر له لاسه ووژل شو.

همدا چې د باختر او سغدیانه په سیمو کښې د سکندر دوې کلنې جګړې پای ته ورسېدې، نو هند ته د تګ فکر ورپیدا شو، دیرش زره باختري زلمیان یې په خپل لښکر کښې راغونډ او د ۳۲۷ ق،م په پسرلي کښې له خپلو (۱۲۰) زرو پلیو او "۱۵" زرو سپرو سره چې (۷۰) زره یې اسیایي خلك وو، د هندوکوش له لارې د هند خواته مخه وکړه او امینتاس یې له لسو زرو پلیو او دریو زرو او پېنځه سوو سپرو سره په باختر کښې پرېښوو.

سکندر د پارو پامیزاد د خاواك درې له لارې کاپیسا ته واوښت، نیکاتور یې د هغه ځای حکمران وټاکه او د کابل د ناوې حکمراني یې تیریاسپ Tyriaspes ته وسپارله، دی د درونټې له لارې د کونړ ناوې ته ورغی او له هغه ځایه اسمار، باجوړ او جندول ته لاړ، خو د لارې په هره برخه کښې خلکو جګړې ورسره وکړې.

په هغه جګړه کښې چې د کونړ له اسپیزو (غالباً اوسنیو یوسفزیو) سره یې وکړه څلوېښت زره بندیان او دوه سوه او دېرش زره غوایي یې په چور او چپاو ونیول او هغو لښکرو چې د هفستیون او پر دیکاس په مشرۍ د

کابل سیند له لارې د ټکسیلا د پاچا "امپهي" په لارښوونه د پېښور او چارسدې او ویهند د سیمو د نیولو له پاره استول شوې وې، هغه سیمې یې ترسنده ونیولې .

سکندر د کونړ په سیمو کښې تر باجوړ پورې د پښتنو له خورا کلك مقاومت سره مخامخ شو، د هغو سیمو په جګړو کښې دوه ځله ټپي شو او ده هم تر بري وروسته ښارونه وران او بندیان یې تر تېغ تېر کړل. خو څرنګه چې دا سپیزي امیر د سواست (سوات) د ناوې په یوه ښار کښې مقاومت کاوه. نو تر سرکاڼیو، چمر کنډ او ناوګۍ تیر شو او د ګوري (پنجګوره) له لارې چکدرې او د سوات ناوې ته ورسید ، څو ښاره یې ونیول او ډېرې قبیلې یې ایل کړې، د یوناني مورخ آریان په وینا (د ۱۷۵م شاوخوا) په وینا، دلته د اساکي نوس Assakenos په نامه خلك اوسېدل او مرکزي ښار یې مساګه Massaga نومید، چې اوس یې د کتګله د درې او وچ خوړ تر منځ کنډوالې لیدل کېږې، همدا چې دلته ۷۵ زریز نوی ملي لښکر د مدافعینو ملاتړ ته راورسېد ، خورا سخته جګړه ونښته او سکندر دوی د مراګه په ښار کښې څلور ورځې کلابند او ټول یې له منځه یو وړل، تر هغه وروسته یې داور، او بازیرا (اوسنی بریکوټ) ښارونه هم ونیول د مهابڼ، (او رنوس) دغره لمنو ته وخوت چې د اټك د شمال په دېرش میلۍ کښې پرتې دي، اوسي کوستوس یې د هغې سیمې والي وټاکه او مقدوني نیکاتور د انډوس د لویدیزې ناوې حکمران شو.

د (۳۲٦ ق،م) پر فرورۍ، سکندر پر هغه پله تېر شو، چې کېدای شي د اټك په شاوخوا کښې یې پر سند تړلی و او د ټکسیلا تر ښاره چې د دغه هېواد لوی دارالعلم و او دراولپنډۍ د شمال لویدیځ په لس میلۍ کښې د مرګله د کوتل په لمنه کښې پروت و، پر مخ ولاړ، د ټکسیلا پاچا امپهی



Omphis یې چې له سکندر سره یې روغه وکړه ېېرته په هغه ښار کښې د خپل ستراپ (والي) په توګه وټاکه، له هغه ځخه یې پېنځه زره جګړن واخیستل او د ۳۲٦ ق،م د مۍ تر میاشتې د جیلم غاړې ته ورسید ، د همدغه کال پر جولای د هند د پاچا پوروس (فور) سره ونښت، خو هغه غاړه کېښوده، ده هم بېرته پر خپل ځای پرېښوو او په خپلۀ دبیاس تر غاړې پر مخ ولاړ خو لښکرو یې بلوا وکړه، د هند په توده خاوره کښې یې له نور پر مختګ څخه غاړه ویېچله او سکندر یې بېرته را ګرځېدو ته اړ ویست، ده هم خپلې لښکرې پر دریو برخو ووېشلې: لومړۍ برخه یې د کراتیروس له لښکر ناروغانو سره د بولان، کندهار او سیستان له لارې واستوله. دویمه برخه چې ۱۲ زره سپایان او دوه زره ماڼو ګان وو د نیارکس په مشرۍ له سلو کښتیو سره د دریاب له لارې واستول شوه، او دریمه برخه چې په خپله سکندر ورسره و، د سند پر لویدیزه غاړه ملتان ته ورسېده خو دهغه ځای خلکو خورا سخته دفاع وکړه، ان تر دې چې په یوه جګړه کښې سکندر ټپي شو، له همدې امله یې ټول ووژل همدا راز د سند دناوې په پای کښې د اتیازرو په شاوخوا کښې خلك ووژل شول، د ۳۲۵ ق،م جولای میاشت وه چې سکندر له خپلو ملګریو سره د اوسنۍ کراچۍ شاوخوا (د اسلامي دورې دیبل) ته ورسېد، د یوې سمندریزې سکندریې بنسټ یې هلته کېښوو او له هغه ځایه د ګدروز یا (بلوچستان د افغانستان د جنوب) له لارې پارس ته ولاړ او چې بابل ته ورسېد ۳۲۳ ق،م د جون پر ۱۳ مه شپه پر ۳۲ کلنۍ د ملاریا په ناروغۍ مړ شو، د اریانه پر خاوره دده یرغلونه او د دغه ځای د خلکو د مقاومت وخت له ۳۳۰ تر ۳۲٦ ق،م پورې ټول څلور کاله و "وګورئ ۱٤ مه نومره عکس".

د اریانا په ختیزه برخه کښې (د انډوس لویدیځ ته) تر نیکاتور

وروسته یو سړی د فیلیپس په نامه والي شو، همدا چې هغه پر ۳۲۴ ق،م کال د یوناني عسکرو له لاسه ووژل شو، تر هغه وروسته وایودموس د ټکسیلا د خلکو په ملاتړ د انډوس له لوېديځ څخه د خپل ترون رسۍ وشلوله او چې سکندر مړ شو، د هند پاچا پوروس (فور) د انډوس برنۍ ناوه ونیوله خو پر ۳۱۷ق.م د ایو داموس له خوا ووژل شو او په خپله ایو د اموس هم هند پرېښوو او د ده له تګ سره په ختیز هند کښې یونان واکمني پای ته ورسېده.

# په آریانا کښې، موریا لنډ مهالې واکمني او بودایي لویه اغېزه

د سکندر له مړينې سره سمه د ده پراخه امپراتوري هم ړنګه شوه، د ده لویو افسرانو د شام په طرابلس کښې یوه غونډه وکړه او په هغې کښې یې د سکندر هېواد په خپلو منځو کښې سره ووېشه. د اریانه جنوبي ولایتونه یعني ارا کوزي (د ارغنداو ناوه) او ګدروزي (مکران) سیبیر تیاس Sibyrtias ته وسپارل شول، په اریا (د هریرود په ناوه) او په درنګیانه (د هلمند په ناوه) کښې قبرسی ستساندار Stasandar واکمن شو، بکتریانه (باختر) او سغدیانه (سغد) ستاسانور Stasanorته ورکړ شول او هو خیارتس Oxyartes د سکندر د ماندینې روښانې پلار د آریانه د مرکزي سیمې (پارو پامیزاد او د کابل ولایت) حکمران شو.

خو د آریانه ختیز ولایتونه چې بریدونه یې تر ټکسیلا پورې رسېدل د هندي شهزادګانو او یوناني جنرالانو تر منځ د کشمکش په حال کښې پاتې شول او همدا چې دغه هېواد ته د یوناني لښکرو راتګ او په باختر کښې د هغو د پاتیو کسانو پاچهۍ دوام وکړ، دلته یوناني فرهنګ، هنر، فکر او عقایدو اغېزه پرېښې وه، دا اغېزه چې د دغه هېواد د خلکو له فرهنګي بقایاو سره ګډه شوې وه، د ختیځ له خوا له یوې بلې ډېرې مهمې پېښې سره مخامخ شوه او هغه په هند کښې د موریا د لوی سلطنت جوړېدل و.

که څه هم د آريانا په ختيز و برخو کښې د موريا واکمنۍ له سياسي پلوه ډېر دوام نه درلود او دلته د يونانو باختري خپلواك سلطنت منځته راغی، خو په دې لنډه موده کښې د موريا پاچهانو او د بودا د دين مبلغانو د اديانت د آريانه په ختيځ کښې خپور کړ، چې دلته بيا په يوه فرهنگي آيډ و گلاس او د ثقافت او عقيدې د يو ځای کېدو په ځای کښې، درې مهم عنصره سره گډ شول او د دغه هېواد د فرهنگ په تاريخ کښې يې يو مهم باب چې د "گريکو بوديك" په نامه يادېږي پرانيست. دا ديانت او هنر په افغانستان کښې زرکاله نور د اسلام تر راتگ پورې پاتې شو، چې مهم عناصر يې دا وو:

۱ - باختري يا د دغه هېواد خپل کورني فرهنگي، هنري او عقيدوي عناصر.

۲ - يوناني صنعت، عقيده او فکر چې د ۳۳۰ ق، م په شاوخوا کښې له سکندر سره پيل شوي وو.

۳ - بودايي هنر، فرهنگ او دين له خپلو هندي آثارو سره چې د موريا له واکمنۍ سره يو ځای راغلل.

په هند کښې د موريا د سلطنت مؤسس چندراگو پتا (يوناني: سندروکتس) دی، چې د ننداکه شاهي کهاله يوې شهزادگۍ ته چې ميوره (طاوس) نوميدله منسوب و، او دی د کشتر يانوله طبقې او د راجپوت (شهزادگانو) له تبر څخه و، چې پر ۳۲۴ ق،م پاچا او تر ۲۴ کاله پاچهۍ وروسته پر ۳۰۰ ق، م مړ شو او زوی يې بيندو ساره Bindusara چې د "دور دهرا" ملکې له نسه و، د ده پر ځای کښيناست د موريانو پايتخت د هند د پتالي پترا (پټنه) ښار و.

چندراگو پتا د "ننداً" سپه سالارو، ده د ټکسيلا د بهرهمنانو يو



مشر چانه کيه Chanakya (په سياست، ټولنيزو علومو او اقتصاد کښې د ارتهه شاستره کتاب ليکوال) چې وروسته د ده وزير شو، له ځانه سره يې ملگرې کړ او دمگده پاچا او پاچهي يې له منځه يو وړه او د گنگا او سند تر منځ يې د يوه لوی سلطنت بنسټ کېښوو چې اداري او مدني منظم تشکيلات يې لرل ځکه نو دی يوازې يو، بريالی سپاهي نه، بلکې يو هوښيار او ځيرك سياست مدار هم بلل کېږي.

چندراگوپتا د خپل هېواد لويديز بريدونه د سند تر غاړو وغځول. د سکندر ځای ناستو يونانيانو غوښتل چې سکندر نيولې ځمکې بېرته لاس ته راولي، نو هغه وخت چې سيليو کوس ملقب په نيکاتور (بريالی)، د بابل واکمن شو، پارس او پارت يې ونيول او پر (۳۱۱ق،م) يې آريا بکتريا هم فتح کړه او پر ۳۰۵ ق،م د کابل له لارې ختيځ خواته ولاړ او د سند تر رود پورېووت نو د هغه سيند پر ختيزو غاړو د چندراگو پتا له لښکرو سره مخامخ شو، خو چې نيکاتور خپل بده (حريف) ډېر غښتلی وليد نو روغه يې ورسره وکړه، خپله لور يې ورکړه او د ۵۰۰ پيلانو په بدل کښې يې گندهاره، اراکوزيه-گدروزيه - اوپارو پاميزاد، چندراگو پتا ته پرېښوول، او په باختر کښې يې هم د يودوتس حکمران وټاکه.

د چندراگوپتا او سيليوکوس تر روغې وروسته د هند او باختر اړيکې پراخ شول او د هند تجارتي مالونه تر پخوا ډېر د کابل او بلخ له لارې د خزر بحيرې بندرو ته يوړل شول. سيليو کوس خپل يو پوه جنرال ميگاستينيس Megastenes د موريا دربارته د سفير په توگه واستاوه او هغه يو کتاب د هند د حالاتو او د موريا د پاچهۍ په اړه ليکلی و، چې اوس نه شته، خو ستر ابو او د يونان نورو مورخانو په خپلو کتابو کښې د هغه کتاب ځينې مطالب راوړي او ساتلي دي. د دغه سفير په وينا چندرا گوپتا شپږ سوه

زره پلي، دېرش زره سپاره او نهه زره پيلان لرل. د ده په شاهي کمپ کښې ځلور سوه زره تنه وو، په دې توګه د اريانه د خاورې نيمې برخې د هندوکوش تر جنوبي لمنو پورې په ده پورې اړه درلوده او دا لومړی ځل دی چې د هندي اريايانو فرهنګي او سياسي اغېزه له ختيځ څخه د اندوس لويديزې خاورې ته د هندوکوش تر غره پورې رسېدلې ده.

چند راګوپتا چې پر ۳۰۰ ق،م کال مړ شو، د ده زوی بيندوساره، د اميتره ګهاته Amitraghata (دښمن وژونکي) په لقب د پلار پر تخت کښېناست، ده له يوناني اميرانو سره دوستانه سياست غوره کړ او د ګندهاره، پارو پاميزاد او اراکوزي له لارو يې د سيليو کيدانو له هېواد سره تجارتي اړيکې ټينګې کړل او کله چې سيليو کوس نيکاتور پر (۲۸۰ق،م) د ۷۸ کلنۍ پر عمر مړ شو، دده زوی انتيا کوس سوتر Antiachos-Soter د ده پر ځای کښېناست نو ده د ۳۰۱ ق،م پر شاوخوا (دی ماکوس) پټنې ته د بيند وساره دربار ته د سفير په توګه واستاوه.

د موريا پاچهۍ او يونانيانو تر منځ فرهنګي اړيکې له همدغه وخته پراخ شوي وو او دا هڅه د هند او يونان د ګډ مدنيت د تاسيس پيل وګرځېده، سر ببره پردې له هند سره د سمندر له لارې هم تګ، راتګ کېده لکه چې پتروکليس Patrokles د سيليو کوس افسر او د هغه زوی د هند سمندر له لارې سفر وکړ او ښه جغرافيايي معلومات يې راغونډ کړل چې وروسته پليني او استرابو ګټه ترې اخيستې وه.

د موريا پاچهانو له يوناني سيليو کيديانو سره دومره خپلوي درلوده چې د هند د پخواني سياسي تاريخ مولف ليکي: "بيند وساره انتيا کوس ته وليکل چې ماته يو حکيم، خواږه شراب او وچ اينځر رانيسه او راوېږي لېږه، انتياکوس په ځواب کښې ورته وليکل: زه به اينځر او شراب درولېږم، خو د



يونان په قانون کښې د پوهانو پلورل ممنوع دي.(!)"

د اموريايي پاچا د يونان علومو او ادب ته ډېر سراښې و او د ده پر وخت هنديانو د يوناني هومر اشعار په خپله ژبه ژباړلي او ويل به يې.

وراهه ميهرا Varahamihara په خپل کتاب بريهت سمهيته Samhita - Brihat کښې د يوناني آسمان پېژندنې معلوماتو ته په درنه سترګه ګوري او څنګه چې دا اوضاع د ګريکو- بوديك مدنيت پر پيل رڼا اچوي، موږ يې دلته په لنډه توګه راوړو، چې د افغانستان ګريکو - بوديك مدنيت ښه وپېژندل شي.

د هند دا يوناني دوسته پاچا "بيند وساره" پر ۲۷۳ ق،م تر ۲۷ کاله پاچهۍ وروسته مړ شو او زوی يې چې اشوکا نومېده، د خپل وزير رادها کوپتاپه مرسته پر خپلو ورونو بريالی شو او د موريا پاچاهۍ پر تخت کښېناست، دی بې شکه د هند ستر پاچا و، چې پر ټوله سرتره وچه او د افغانستان د خاورې پر يوه برخه يې د ارغنداو تر غاړو پورې سلطنت کړی دی.

اشوکا په پيل کښې يو جګړن او ويني بهوونکی سړی و: د بنګال خليج پر غاړه د کالنګه په جګړه کښې يې يو لك تنه ووژل او ۱۵۰ زره يې بنديان ونيول، خو هغو زړه لړزوونکيو فجايعو چې ده په دې خونړۍ جګړه کښې د سر په سترګو وليدې چې تر سلو زرو پورې انسانان له لوږې مړه شول، د ده پر روحيه او شخصيت باندې يې سخته اغېزه وکړه او دی يې د بودا دين د روغې او سلامتۍ د فلسفې پر خوا واړاوه. پر ۲۶۰ ق،م کال يې د بودا دين رسماً ومانه او د هغه تبليغ او خپرولو ته يې ملا وتړله، تر هغه تاريخ وروسته د ده د پاچهۍ دوره دروغې، امن، د ديني ودانيو، د خيريه چارو د پراخوالي، د بودايي بودتونو( معابدو)، لارو او مسافر خانو ودانولو

او د مذهبي دساتیرو د خپرولو دوره وه او دی چې دخپل ارت هېواد هر ځای ته ورسېد، هلته یې پر ډېرو په مختلفو ژبو د بشر پالنې او حتی د ځناورانو او ژویو دنه آزار ولو نصیحتونه وکیندل، چې تر اوسني وخته هم پاتې دي. دا ډېرین فرمانونه د هغې دورې پر اوضاعو ښه ډېره رڼا اچوي.

په ګندهارا او د افغانستان په ختیزه برخه کښې چې جنوباً تر کندهاره رسېږي، د بودایي ستوپو زیات آثار شته، چې دهاغو تاریخي ودانیو یوه برخه تر اوسه پیژندلې شوې ده او د ټولو شمېرل مشکل دي.

وایي چې اشوکا د خپل هېواد په شمال کښې څلور لویې ستوپې ودانې کړې چې یوه یې د پیښور د بالا حصار پر غونډۍ پرته او تر (۹ هـ کال) د هیون تسنګ تر عصره پورې هم په همهغه خپل برم پاتې وه. د هیون تسنګ په وینا دا ودانۍ یې له ښکلیو ډېرو او انځور شویو لرګیو څخه ودانه کړې وه، چې د فاهیان په وینا په سپینو او سروزرو ښکلې شوې وه موسیو فوشه وایي چې دا هغه ستوپه ده چې "د سترګې سوغات" نومیدله او بودایانو عقیده درلوده چې دلته بودا خپله سترګه قرباني کړې وه.

همدارازد اوسنۍ چارسدې ختیزې خواته د "کنیز که" نړ غونډۍ داشوکاودانه کړې ستوپه وه چې د هیون تسنګ تروختته هم په همدغه نامه مشهوره وه او دی وایي چې د استوپه په پرله پسې عصرو کښې د څلورو بوداګانو د قوانینو د تبلیغ ځای و.

## د بودا دین او په افغانستان کښې د هغه خپریدل:

سره له دې چې د افغانستان خلکو ته د ویدي او برهمني پخوانیو او زړو عقیدو بایخوړ چې د هېواد په ختیزو سیمو کښې یې رواج درلود ورپاتې و، د هېواد په شمال اولویدیز و سیمو کښې د زردشت آیین او



اوېستایي مزد یسنا هم رواج درلود، خو هغه وخت چې پر ۲۶۰ ق،م اشو کادبودا د دین تبلیغ او خپرولو ته ملا وتړله دغو عقیدو او ائین آن زر کاله وروسته هم د هېواد په ختیزو او شمالي سیمو کښې پوره دود وموند او هېواد د دغه دیانت دودې زانګو شوه چې د فکر، هنر او فرهنګ له پلوه یې ددې خاورې د خلکو په ژوندانه کښې ژورې اغېزې وکړې.

«بوده» د دغه دین موسس دساکیا ټبر د کشتر یه او جګړنې طبقې یو شهزاده و، چې د ساکیا مونی (دسا کیاد د ټبر پوه) په نامه معروف شو او پر ۵٦۳ ق،م کال د نیپال د کپی لاواستو په ښار کښې زیږېدلی و او پر ۲۹ کلنۍ یې خپله کورنۍ او د شهزادتوب ژوند پرېښو و.

تر ۵ - ٦ کالو ګوښه کښېنستلو (انزوا) وروسته یوه شپه چې ډېره روښه وه (بدهـ) یعنې روڼ او ویښ وبلل شو د خپل دین په تبلیغ کښې یې زیار ویوست؛ د هند پاچهان یې خپل دین ته راوبلل او وروسته تر هغه چې د هند زیات خلک یې بودایي کړي وو پر ۴۸۳ ق،م د اتیا کالو په عمر په کوچي نګره کښې مړ شو. (وګورئ ۱۵ مه نومره عکس).

څنګه چې د بودا دین یوه تیاره فلسفه نه درلودله، نو د ده د مړینې پر کال په باجا ګره کښې د بودا د پیروانو یوه مذهبي غونډه وشوه، د ده دریوتنو نامتو ملګریو انانده،یو پالی، او کاسیاپه دده خبرې او وینا وې راټولې کړې او له هغو څخه یې د تری پیټکه Tripitaka (دری ټوکری ګلان) په نامه د بودایي قوانینو مجوعه جوړه کړه.

بودایي دیانت داشوکا د سلطې د نفوذ له امله د هندوکوش له جنوبه تر کندهاره خپور شو او د بودایي دین دریمه لویه جرګه د اشوکا په قیادت او د لوی عالم" موګالی پوتاتیسا" په مشر تابه جوړه شوه، چې په هغې کښې د مذهبي احکامو پر ترتیب او تدوین سر بیره داسې پریکړه وشوه چې یوه

بودايي ډله مبلغان لرې هېوادوته ولېږل شي د دغو هېوادو اولېږل شويو مبلغانو نو مونه، اشوکا د خپل جلوس پر ۱۴ کال( ۲۵۶ ق،م) په ۱۳ لمبر ډبرين فرمان کښې کيندلي دي، له هغه څخه څرګندېږي، چې څو تنه بودايي مبلغان چې مجهان تيکه، مدهيان تيکه، دهه مراکهيه ته، او مهار کهيته نومېدل، ګندهاره او د آريانه ختيزو سيمو ته را استول شوی دي، دا مبلغان چې د دوتا Douta په نامه بلل کيده، د ( ۲۵۸ ق،م) په شاوخوا کښې د بودايي دين په تبليغ بوخت وو او په همدغو وختو کښې انتيا کوس د سيليو کوس زوی د باختر پاچا و، چې د ده نوم يې د اشوکا په ډبرينو فرمانو کښې "انتيا که" ليکلی دی.

د موريا وروستی حکمران چې په دغه وخت کښې يې پر کابل حکومت کاوه، سوفاګازنس دی، چې د باختر د پاچا ايوتيديموس د واکمنۍ تر پيلڅ يې هم په ګندهاره او د کابل په لويديزه سيمه کښې نفوذ درلود، ايوتيديموس چې په باختر کښې خپلواک پاچا شو ده د هندوکوش جنوبي خوا ته لښکرويوست او په کابل کښې يې د موريا نفوذ ته خاتمه ورکړه او تر هغه وروسته د هندوکوش جنوب سيمې هم د باختري يونانيانو د خپلواک سلطنت برخې شوې.

د افغانستان په خاوره کښې د موريا سياسي نفوذ ډېر لنډو، اشوکاپر (۲۳۲ ق،م) کال تر څلوېښتو کالو پاچهي وروسته په ټکسيلا کښې مړ شو د ده په کهاله کښې يو مقتدر پاچا نه و، چې د ده پر ځای کښيني او د ده ارت سلطنت وساتي، نو ځکه د افغانستان په خاوره کښې د دوی د نفوذ ځنځير هم وشليد، خو هغه دين چې اشوکاله ځان سره رواړی و، د هغه له فکري، هنري او فرهنګي آثارو سره تر زرو کالو پورې پاتې شو.

و موويل چې بودا ځان په فلسفي مسايلو کښې نه و پېچلی، خو



پيروانو يې د ده ويناوته د الهياتو بڼه ورکړه چې د زماني په تېرېدو سره دا دوه لوی مذهبونه څنې جوړ شول:

لومړی، مهايانه: يعني لوی مذهب(يون = يانه = په پښتو کښې د تګ رفتار او مذهب مانا لري) چې د هند په شمال، تبت او چين کښې تر ژاپون = جاپانه خپور شو او د ځای د پراخوالي او د قومو د ډېروالي په سبب ډېر تاويل پکښې پيښ شو، د دغه مذهب پيروانو تبليغ مهم باله او ويل به يې: هر فرد د کل جزو دی چې هغه انسان نومېږي او بيا دغه انسان د هغه لوی کل جزو دی چې د دهرمه (کېش) او عمل تر قانون لاندې راغلی دی، نو څوك چې غواړي د شر له لومي وژغورل شي، له نورو دې نه بېلېږي زيار ايستل بايد مجموعي وي نه انفرادي او دا ډول زيار انسان بودی ستوه Bodhisattva ته رسوي او د دې کلمې مانا د ژوندانه هغه دانشمندانه حالت دی، چې د نورو په خدمت کښې تېر شي. نو انسان دوه مقصده لري، يو د پوهې زده کړه او بل بې له خپل ځانه پر بل مهرباني او د بل خدمت.

دويم، هينه يانه Hina-Yana: (کوچنی مذهب) نوميږي، چې تابعان يې په جنوبي هند کښې دي. دوی پر فردي زيار تکيه کوي او کتابونه يې زياتره په پالي ژبه دي، حال دا چې د لوی مذهب کتابونه په سنسکريټ ژبه ليکل شوي او لکه چې چيني زايرانو د مسيحي عصر تر پيل وروسته په افغانستان کښې ليدلي دي، د دغه ځای په بودايي معبدو او ښارو کښې د بودايي دواړو مذهبو تابعان وو.

بودا خپل دين پراوو اصولو: سپېڅلي عقيده، سپېڅلي اراده، سپېڅلي وينا، سپېڅلي رفتار، سپېڅلي روزي، سپېڅلي زيار او سپېڅلي پاملرنه بنا کړی و او ويل يې:

هر چا چې پردغو اوو اصولو عمل وکړ له قيودو پاکېږي او خپل فکر

په يوه مخصوص تکي کښې چې د خواهشو له څنځيره بشپړه آزادي ده متمرکز وي، هغه وخت نو تر څلورو نورو مقامو تيرېږي:

۱ - درشتيا پيژندنې په لار کښې څېړنه.

۲ - د حقايقو په پوهېدلو کښې تفکر.

۳ - ژور تفکر او سکون.

۴ - بشپړ سکون او توازن چې "نروانه" (فنا) نوميږي.

د فرانس نامتو محقق فوشه د بودا دين د خپريدو د سببونو په اړه وايي: د آريانا د ختيزو سيمو خلکو چې تل د بېرحمو ير غلګروتر پښو لاندې ژوبليدل (د هخامنشي اسکندر او چندراګوپتا د يرغلو تر ليدو وروسته) دا دين چې له وينو تويولو بيزار و او د خود ګذرۍ او ښه نيت توصيه يې کوله له خپلې سليقې سره سم وموند او کروند ګرويا کسبګرو خلکو هغه په آسانۍ ومانه.

د بودا د ديانت پراختيا د اشوکا په توجه دې درجې ته رسېدلې وه چې دغه پاچا (۸۴۰۰۰) مذهبي ودانۍ يعنې ستوپې (توپ افغاني مقامي کلمه) جوړې کړې وې، چې د دغو ستوپو شکل په کابل او کاپيسا کښې توپير پيدا کړی او لوړې شوې دي، يعنې د ستوپې تنګاچه (سکو) څلور کنجه شکل موندلی او لوي والی يې زيات شوی؛ د کنبد او تنګاچې تر منځ يوه استوانه يې برخه اضافه شوې ده او د ګنبدې لوړه څوکه د شيروانۍ په شکل ليدل کېږي. خو د اشوکا د عصر ستوپو چې هندي خصوصيات يې درلودل، د آريانه خاورو ته لږ سرايت کړی دی.

د اشوکا د وختو پاتې ليکنې چې د بودايي نصيحتو له مجموعې څخه دي د ټکسيلا تر ډبرليکونو وروسته پر دوو ډبرو ليکلې پاتې دي، چې يوه له مانسهرې څخه لس ميله لرې دايبټ اباد شمال ته د پکهلی د ناوې په



مدخل کښې او بله يې د سوابۍ پر لويه لار د هوتي مردان ختيز خواته اته ميله لرې په شهبازګړهۍ کښې پرته ده، چې دواړې ليکنې په پراکريت ژبه او خروشتهی ليکدود دی، حال داچې د اشوکانورې ټولې ليکنې په هند کښې په براهمو ليکدود دي چې د لرغوني هند د نورو سيمه ييزو ليکدودو پيل دی. د اشوکا د همدغو اخلاقي فرمانو يوه بله ليکنه د لغمان او ننګرهار ترمنځ د درونټې په تنګي کښې وه چې پر درې کونجه غوندې ډبره په ارامي ژبه ليکل شوې او اوس په کابل موزيم کښې ده خو ډېر تاوان ورپېښ شوی چې څوليکې يې-چې د څارويو د نه وژلو په اړه دي-اوس هم ښکاري.

د همدغه پاچا يوه بله مهمه ليکنه پر ۱۳۳۷ ل کال له خاورې څخه راووتله، دا ليکنه د کندهار په زاړه ښار کښې چهل زينې ته نژدې د غره پر يوه کاڼي په يوناني او آرامي دوو ژبو او دوو ليکدودونو موندل شوې ده، چې پورتنۍ برخه يې په يوناني ژبه ۱۳ نيمې کرښې او کښته برخه يې په آرامي ژبه ۷ نيمې کرښې دي، چې د ټولې کتيبې اوږدوالی ۵۵ سانتی او سور يې له ۴۵ څخه تر ۵۰ سانتيو پورې دی پر هغې هم د ځينو نورو کتيبو په څير د اشو کانوم پيوداسس ليکلی شوی دی (وګورئ ۱٦ مه نومره عکس).

د دغه ډبرليك له کتنې څخه پوهېږو، چې د اشو کا د بودايي کېدلو پر لسم کال يعنې پر ۲۵۰ ق،م ليکل شوی دی او په دغه وخت کښې د موريا نفوذ او بودايي ديانت تر کندهاره خپورو او د ده زياتره اخلاقي ښنسټونه تطبيق شوي وو - حال دا چې په نورو ډبرليکونو کښې د همدغو ښنسټونو د عملي کولو توصيه کوي. د کندهار ډبرليك د يوناني ليکنې ژباړه دا ده:

"پيوداسس پاچا د لسوکالو زيار ايستلو په پای کښې انسان ته اخلاقي اصول ورزده کړل او له هغه وخته يې د ټولې ځمکې خلك لاښه دیندار

او لا ښه نېکمرغه کړل، پاچا د ځارویو له وژلو څخه ځان وژغوره، نورو ښکاریانو او کب نیوونکیو خلکو له ښکار او کب نیولو څخه لاس واخیست او د مور او پلار په نمانځنه یې لاس پورې کړ، نو تر دې وروسته به په دغه ډول ډېر ښه ژوند ولري.

له دې ډبرلیك څخه ځرګندېږي چې تر میلاد دمخه د دریمې پېړۍ په منځ کښې په افغانستان کښې یوناني او آرامي دواړه ژبې او لیکدودونه وو، د یوناني ثقافت اغیزه دومره غښتلې وه، چې په کتیبو کښې یې لومړی ځای یوناني ژبې او لیکدود ته ورکړی و، دا هغه عصر ته نژدې و چې په باختر کښې یونان باختري خپلواك دولت جوړېده، حال داچې د بودا د دین اغېزه اویوناني فرهنګ د اراکوزي تر سکندر یې (زاړه کندهار) پورې رسېدلې وه خو کټ مټ په همدغو وختو کښې د هخامنشیانو له بقایاو څخه آرامي لیکدود هم په دغه سیمه کښې و.

# یونان، باختري خپلواك سلطنت

هغه وخت چې سکندر باختر ونیو نو "پارسي ارته باز یوس" یې پر خپل ژوندانه د دغه ځای حکمران وټاکه، دی تر لنډې مودې وروسته مړ شو او د ده ځای امین تاس "د نیکو لاوس" زوی ونیو. د آریان په وینا د سکندر تر مړینې وروسته قبرسي "ستاسا نور" د باختر او سغد حکمران و او چې "سیلیو کوس" په هند کښې له "چند راګوپته" سره روغه وکړه (۳۰۲ ق،م) د باختر حکمران هم ده ته غاړه کښېښووه، هغه وخت چې "سیلیو کوس" بابل ته ستون شو، باختر تر پنځوسو کالو پورې د ده د کهاله تر لاس لاندې پاتې شو چې په باختر او بخارا کښې یې ډېرې سیکې موندل شوي دي، ده د باختر ځایي خلك په خپل لښکر کښې اخیستي وو.

د سیلیدوکي کورنۍ د دریم پاچا په وخت کښې چې دویم "انتیو کوس" نومېد، د شاو خوا حکمرانانو په مصر کښې د هغه له جګړه ییزې بوختتیا نه په ګټې اخیستلو سره، د ده له اطاعته سر وغړاوه او له هغې جملې څخه د باختر خلکو له هغو یونانیانو سره لاس یو کړ چې په دغه هېواد کښې له باختري ادابو او فرهنګ سره اشناشوي وو، نو د خپلواکۍ اعلان یې وکړ. دا وخت په باختر کښې دیودو توس = تهیودوتوس Diodotos حکمران و، ده د ۲۵۶ ق،م په شاوخوا کښې د آزادۍ غوښتونکیو باختریانو په ملاتړ په باختر کښې د خپلواکۍ پاچهۍ اعلان وکړ چې حدود یې تر سند، مرو او

هندوکوش غره تر لمنو پورې رسېدل او دا چې ده باختريان د نورو له تسلط څخه ژغورلي او کورنی آزاد حکومت يې جوړ کړی و، نو ځکه "منجی" لقب ورکړ شو.

د ديو دوتوس يوه سکه شته چې پر يوې خوا يې د دويم انتيوکوس څېره او پر بل مخ يې د ده د کهاله ساتندوی رب النوع "زيوس" له دوو، وازرو سره ليدل کېږي. له دې څخه څرګندېږي چې ده د باختر د خپلواکۍ تر اعلان د مخه د "انتيو کوس سيليوکي" په نامه د سپينو زرو سکه خپره کړې او بيا يې تر خپلواکۍ وروسته د باختر په دارالضرب کښې خپله سکه د پاچا په توګه پر سرو زرو وهلې ده. دا د سرو زرو سکه چې په پاريس کښې ده پر يوه مخ يې د ديو دوتوس څېره او پربل مخ يې د جوپيتر (داسمان، تالندې او برېښنا دورمی رب النوع) لوڅ لغړ شکل دی، چې په پښو کښې يې يوه ګربته (عقاب) هم کښل شوې او د سکې پر څنډه "بازيليوزد يو دوتوس" ليکلې شوی دی يعنې ديو دوتوس پاچا (وګورئ ۱۷ مه نومره عکس). د لومړي "د يودوتوس" له کهاله يوازې د ده يوه زوی چې "دويم ديو دو توس" نومېد د پلار تر مړينې وروسته (له ۲۵۰ تر ۲۳۰ ق،م شاوخوا) په باختر کښې حکومت کړی دی، چې ده د شاهي سيليو کيانو د اقتدار پر خلاف د پارت له دولت سره ښه اړيکې او هم آهنګي درلوده او څنګه چې د پارت د دولت موسس "ارساس" هم د باختر له خلکو څخه و، نو "دويم ديودو توس" له ده سره د دوستۍ تړون او ښه روابط لرل او د ده د پاچهۍ په وخت کښې د هريرود او د هرات ښار هم د باختر په قلمرو کښې شامل شو او سغديانی ته هم له باختره حکمران استول کېده.

د لومړي ديو دو توس د کهاله پاچهي ډېره پاتې نه شوه او د دويم ديوتوس يو امير چې ايو تيديموس Euthydemus نومېد او د سغديانی حکمران



ياغي شو، د باختر پاچايي وواژه او دی په خپله د باختر خپلواك پاچا شو (د ۲۲۰ ق،م شاوخوا) (وګورئ ۱۷ مه نومره عکس).

د باختر ايوتيد يموس په وخت کښې د شام يوناني پاچا "دريم انتيو کوس" د لوېديځ له خوا د پارت پر دولت يرغل او پارتي پاچا "تيری داد" يې مغلوب کړ او د ۲۰۸ ق،م په شاوخوا کښې يې د باختر خواته مخه وکړه، له دې خوا ايوتيديموس له لسو زرو باختري سپرو سره د اريوس (هريرود) پر غاړه له انتيو کوس سره ونښت، خو چې مقاومت يې ونه کړای شو نو بيرته باختر ته راغی، او د باختر په پايتخت "زرياسپ" کښې تر دوو کالو پورې کلابند پاتې شو (د دغه ښار موقع د مرو او اندخوی تر منځ ګڼل شوې ده) په دې موده کښې "دريم انتيو کوس" درنګيانه او اراکوزيه هم ونيول، خو چې زرياسپ يې ونه نيولای شو، او دواړی خواوې ستړې شوې وې، نو هغه وخت چې د باختر شهزاده "ديمتر يوس" دروغې د خبرو له پاره ده ته راغی، ده خپل لور ورکړه، او تر روغې وروسته د کابل او اراکوزيه لوېديځ خوا، د خپل سلطنت د قلمرو لورې ته وخوځېد( ۲۰۵ ق،م).

ايو تيد يموس تر هغه وروسته د هېواد د اداري په يووالي کښې زيار ويوست، او د کابل د ناوې حکمران "سوفا ګازتوس" يې د ځان تابع کړ او شمال ته تر پامير ها خوا تر چيني ترکستان او ختن پورې پر مخ ولاړ او لوېديځ ته يې مرورود، هرات او طوس ونيول، او خپل زوی "انتي ماکوس" يې د هغو سيمو حکمران وټاکه، د جنوب له خوا تر اراکوزيه او درنګيانه پورې يعنې د آريانه ټوله خاوره د ده د پاچهۍ د قلمرو برخه شوه، بل زوی يې "ديمتريوس" ددغه ولايت حکمران و، چې دغه ټول ارت هېواد د يوناني جغرافيونو په اصطلاح زر ښاره درلودل دا مهال د باختري يونانيانو د دولت فرهنګي او تجارتي روابط له هند او غربي چين سره ټينګ وو، "وايو

تيديموس" لومړی پاچا دی چې د ده په عصر کښې باختري هنر مندانو او صنعت کارانو ددغه ځای هنر او صنعت هند ته سوغات يووړ، درا ولنسن په وينا: له يوې خروشتهي کتيبې څخه څرګندېږي چې يوناني باختري هنر مندان په دغه عصر کښې هند ته تللي او د هند په هنري آثارو کښې يې خپله هنري اغېزه پرېښې ده. د باختري "ايوتيديموس" د پاچهۍ دوره له ۲۲۰ څخه تر ۱۹۰ ق،م پورې ګڼل شوې ده. چې د ده تر مړينې وروسته يې زوی "ديميتريوس Demetrius" پاچا شو (وګورئ ۱۸ مه نومره عکس) او دی د هند په خاوره کښې د ټکسيلا تر نيولو وروسته د ګجرات تر کڅو او کاتيا وار او د موريا تر پايتخت پټنه پورې پر مخ ولاړ چې دا پر مختګ د ده د دوو لويو جنرالانو "اپلودوتوس" او "منامندر" د زيار نتيجه وه، "مناندر" د کابل په شمال او پيان کښې زيږېدلی و او اولادو يې د ۱۰۰ ق،م تر شاوخوا پورې په هند کښې پاچهي کوله.

"ديمتر يوس" د ۱۷۵ ق،م په شاوخوا کښې له هند څخه باختر ته راوګرځېد، خپل دريم زوی "پانتالئون Pantaleon" يې دارا کوزي او سيستان حکمران وټاکه او بل دويم زوی يې د باختر حکمران و.

هغه وخت چې د اراکوزي حکمران پانتاليون مړ شو، ځای يې دده ځلورم ورور "اګاتو کليس Agathoicles" ونيو (وګورئ ۱۹ مه نومره عکس).

ديمتريوس او د ده پر ځای ناستو حکمرانانو په خپل قلمرو کښې دېرې سکې وهلې دي او همدغه پاچا داراکوزي "ديمترماس" (کلات) او ايو تيدميا (سيالکوټ) او د سند ديمترياس (پټياله) او ته او فيليا (د سند په دلتا کښې) ښارونه ودان کړل، چې دويم ښار د ده د پلار په نامه او ځلورم ښار يې د مور په نامه نو مول شوی دی.

ديمتريوس د خپل ژوندانه په پای کښې له خپلو لښکرو سره په هند



کښې بوخت پاتې شو، نو ځکه پر ۱۸۱ ق،م کال د باختر له يونانيانو څخه يو سړی چې ايو کراتيديس Eukratides نومېد په باختر کښې پورته شو، د پاچهۍ اعلان يې وکړ او سکه يې ووهله، چې په هغې کښې يې ځان باز يلو زميګا ليوس (لوی پاچا=هندی مهاراجه) وباله (وګورئ ۲۰ مه نومره عکس) او چې ديمتريوس د خپل تاج او تخت د بيرته موندلو له پاره زيار ويوست، ځای يې ونه نيو او مړ شو. ايوکراتيديس په باختر کښې ديو نانی پاچهانو د دربيمې سلسلې بنسټ کښېښو تر ۱۸٦ ق،م پورې د آريانه د ختيزې سيمې له حکمران "مناندر" سره وجنګيد، چې د آريانه ټوله خاوره يې ونيوله، خو له لوېديزې خوا د پارت پاچا د ده د هېواد لوېديز ايالتونه ونيول او هغه اختلاف چې د "ديمتر يوس" او "ايو کراتيديس" د کورنيو تر منځ پيدا شوی و، د باختر سلطنت يې کمزوری کړ او د ۱۳۵ ق،م په شاخوا کښې د هغه سلطنت مرکز د هندو کوش له شماله کاپيسا ته يوړل شو. هيليوکليس Heliokles د ايو کراتيديس زوی چې د ۱۴۷ ق،م په شاوخوا کښې پاچا شوی و، د باختر وروستنی يوناني پاچا ګڼل کېږي، چې د هندوکوش د شمال سيمو تر پرېښنولو ورسته يې خپله پاچهي د ګند هارا د ولايت تر پايه (تر ټکسيلا او جيلم پورې) غځولې وه. (وګورئ ۲۱ مه نومره عکس).

تر"هيليو کليس" ورسته يې نورو لسوتنو ځای ناستو حکمرانانو پر کابل، ګندهارا او پنجاب حکمراني کړې ده، چې د ۳۰ ق،م په شاوخوا کښې د کابل له وروستنيو يوناني پاچهانو څخه "انتيال کيداس" "امين تاس" - "هرما يوس" - زيات شهرت لری (وګورئ ۲۲ مه- ۲۳ مه - ۲۴ مه نومره عکسونه). د باختر يوناني پاچهانو د سقوط علت د ساکا او سيتي قبيلو منځته راتګ دی، چې دا پاچهي يې د ق.م د لومړۍ پېړۍ پر لومړۍ نيمايي پای ته ورسوله، او په دې ترتيب د دوی واکمني تر دوه نيمو سوو کالو

وروسته ختمه شوه. په دې موده کښې د"دیو دوتوس" له وخته د ۱۰۰ ق،م تر شاوخوا پورې د دوی ۳۶ پاچهانو او یوې ملکې په افغانستان او هند کښې واکمني کړې ده، یوناني فرهنګ او هنر یې په آریانه او هند کښې خپور کړی دی، چې په دې موده کښې د ارباب انواعو پرستنه، یوناني صنعت، افکار، فلسفه، ژبه لیکدود او نور فرهنګي مظاهر د آریانه په ټوله خاوره کښې له محلي او بودایي فرهنګي عناصرو وسره ګډ شول، او د یونانو باختري او ګریکو بودیك خاص فرهنګ منځته راغی، چې د اسلام تر راتلو پورې یې اغېزه درلوده.

د دانیل شلوم برژه (په افغانستان کښې د لرغون پېژندنې فرانسوي مشر) په وینا: د هیلنسم نفوذ په افغانستان کښې تر اوومې پېړۍ پورې دوام درلود چې نښې یې په دوه ډوله لیدل کېدای شي: لومړی د هنر له لارې او دویم د لیکدود له لارې. د اسلام تر راتلو دمخه په اوومه پېړۍ کښې د دغه هېواد هنر لاډګریکو بود یك د مشهور هنر یوه وروستنۍ څانګه وه، خو د لیکدود په اړه ښایي وویل شي، هغه وخت چې د چین نامتو زایر "هیون تسنګ" پر ۶۳۰ م کال یعنې په عربو کښې د اسلام د لمر راختو پروخت له باختره تیرېده، دلته د الفبا ۲۵ توري وو چې ۲۴ توري یې بې شکه یوناني وو او یو د (ښ) غږ یې چې په پخوانۍ دري کښې و، خو په یوناني کښې نه و، پر زیات کړی و او هغه د PX توري یعنې د ش + خ مجموعه توری = ښ دی.

هغه دوه یوناني ډبرلیکونه چې پر ۱۹۵۸ او ۱۹۶۳ کلو په کندهار کښې موندل شوي داشوکا هغه اخلاقي موعظې دي چې په ټول هند کښې په هندي ژبو کیندل شوې دي، خو د دغو ډبرلیکونو اهمیت په دې کښې دی، چې د ارغنداو په ناوه کښې آرامي ژبه او لیکدود د اشو کاتر وختو (۲۵۰



ق،م شاوخوا) پورې ثابتوي او لکه چې یونان پېژندونکي پوهان وایي د دغو دوو ډبرلیکونو یوناني متونه د یوناني فیلسوفانو او خطیبانو لکه اپلاتون او ارسطو د ژبې ساري ګڼل کېږي او وینو چې د ق،م پر دریمې پېړۍ په کندهار کښې د فکر او لیکنې ژبه همهغه ده چې په آتن یاد میلیت په ښارو کښې رواج وه او حتی د کتیبو د کیندنو ډول هم د یوناني کلتور یووالی ښیي او څرګندېږي چې دا ځای د یوه یوناني مورخ په وینا د مسیحي عصر په پیل کې دیونانیانو تاتوبی و، (د کندهار ډبرلیك (۱۶) لمبر عکس دې وکتل شي). سربېره پردې تر ۱۹۶۱م کال وروسته فرانسوي لرغون پېژندونکیو د یوه یوناني ښار (آی خانم = سپوږمۍ مخې مېرمن) په کندوالو کښې د همدغه یونان باختري مدنیت ډېر ښه آثار موندلي دي. دا ښار د افغانستان او شوروي اتحاد پرویش د افغانستان د خاورې په هغه برخه کې پروت دی چې هلته آمو او کوکچه سیندونه سره ګډېږي او ډېرې کندوالې لرې چې دا کندوالې د دواړو سیندو پر غاړه پر دوو ټاکلیو برخو وېشل شوې دي: یوې خوا ته یې یوه لوړه غونډۍ ده چې د جنوب له پلوه د کوکچې پر سیند حاکمه ده او ددې شل مترۍ غونډۍ بلې خواته آمو سیند بهېږي او هم ددې غونډۍ پر سر لوی استحکامات شته چې د دغه ښار بالاحصار دی او یو حصار یې د برج او خندك سره د لیندۍ په شکل درلود او د ښار په منځ کښې یې له شمالي دروازې څخه جنوبي دروازې، خواته ۱۶۰۰ متره واټ ایستل شوی و، چې کوڅې یې هم لیدل کېږي (وګورئ ۲۵مه نومره عکس ـ د ښار نقشه).

په دغه لرغوني ښار کښې یې د مدنیت نخښې موندلې دي، چې هغه باید "دګریکو باختر" خاص مدنیت په نامه یاد کړی شي، چې د منځنۍ آسیا د صحرا نښینو د یرغل له امله له منځه تللې دی. خو کندوالې یې د

لوړې معمارۍ طرز رابښيي، چې په پخو خښتو او ډېرينو ستنو د مرکزي لويې ماڼۍ وداني جوړې شوي دي، دماڼۍ يو اوږد غولی لري او هم په ماڼۍ کښې د شنې، ژيړې، سرې او تورې رنګ اميزۍ نخښې شته. هغه خښتې چې په دې ماڼۍ کښې کارول شويدی هره ضلع يې ۴۵ سانتي او پنډوالی يې له ۱۲ څخه تر ۱۵ سانتيو پورې دی، د دغه ښار اوبه د ويالې له لارې د کوڅو لوړو برخو او حتی بالاحصار ته رسېدلې، چې د کوکچې سيند له ۲۰ کيلو متره واټن څخه را بهيدلې. ښار درې برخې درلودې، چې يوه برخه بالاحصار، بله برخه تر حصار را کښته او درېيمه برخه ارګ دی. په جنوب لوېديزو برخو کښې د خلکو د اوسېدو ځای، د ورزش وداني او بازارو نه وو، له دې ورزشګاه څخه د هرمس(دپهلوانی رب النوع) مجسمه لاس ته راغلې ده، چې د کشف شوي ډبرليك له مخې هغه يوه يوناني "ترياباه کوس"، د استراستون نومي هرمس او هرکول وقف کړې وه.

بله ليکنه چې د دغه ښار د خلکو د فکر او فلسفې ښکارندويه ده، هغه د يوه يوناني "کي نه آس" د قبر د اوږ ده سندوخ کتيبه ده چې "کلا ارك" "د ابې فراد يوس" زوی په آی خانم کښې پر هغه سندوخ کينلی او پر هغه قبر يې ايښې ده چې مطلب يې دا دی:

"په کوچينوالی کښې ښه روزنه واخله! په زلميتوب کښې خپلې غوښتنې (خواهشات) اداره کړه! په پاخه سن کښې سم کاری اوسه! پر زوړ والي ښه ناصح شه! او د ژوندانه په وروستيو ورځو کښې پوه شه چې څنګه بې افسوسه مړ شې!"

دا قيمت بها وجيزه د هغه وخت د خلکو د فکر او اخلاقو د بهير ښه ښکارندويي کوي.

## ساکان، پارتيان او پهلوايان

د هخامنشي پاچهانو په ډبرليکونو کښې وليدل شو، چې د ساکه قبيلې د آمو ها غاړې ته د پامير په شاوخوا کښې د هومه راوړونکيو يا د ګړنديو ساکانو په نومو د هغو پاچهانو تر اداري لاندې اوسېدلې او د پارت (خراسان) له لارې د زرنګه ـ د رنګيانه ځمکې ته راتېرې شوې خپل نوم يې سکستان ـ سيستان ته ورکړی و او هم يې د هندوکوش په شمالي سيمو او باختر کښې ژوند کاوه، چې بيا له دې ځايه لوېديځ او ختيځ خواو ته خپرې شوې او د دوی پېښې د آريانه د تاريخ برخه ګڼل کېږي.

موسيوهاکن په خپل کتاب کښې چې "په افغانستان کښې د فرانسې د لس کلنو کيندنو نتيجه" نومېږي وايي: "صحرانشين ساکان تر عمومي مهاجرت دمخه په باختر کښې يونانيانو ته راتلل او د سرتېرو په ډول نوکران کېدل د دوی ځينې مشران لوړو ملکي او عسکري رتبو ته رسېدلي وو چې د هغوی له جملې څخه هرا يوس (Heraius) د يونانو باختري د وروستيو پاچهانو په تقليد سکه وهلې، او داسکه يې "هاکن" په تاشقرغان کښې موندلې وه. دا قبيلې له باختر څخه د هريرود ناوې او له هغه ځايه د هلمند او ارغنداو ناوو ته راښوه شولې او د پاچهۍ په جوړولو يې لاس پورې کړ چې د دوی د هېواد وېش ختيځ پلو ته د بولان شاوخوا ته د سند تر ناوې پورې هم رسېدلی و او هغه يې "کی ـ پن - Ki - Pin" بللی دی او د ساکه له

دې قبیلو څخه چې د ارغنداو او کښته سند په ناوو کښې اوسېدل یوه سرې چې مایوس ـ (Mayos) نومید د ۷۲ ق،م په شاوخوا کښې د "بازیلیو زباز یلیون میګا لیوس مایوس" په عنوان یعنې "لوی شهنشاه مایوس" سکه وهلې ده او د خپل هېواد وېش یې تر ټکسیلا پورې رسولی دی، چې یوه ډبرلیك یې په ټکسیلا کښې پر مسي غاب کشف شوی چې نېټه یې (۷۸ ق،م) ده، له دې څخه معلومېږي چې د ختیز پنجاب د یوناني پاچهانو نفوذ د مایوس په لاس له منځه تللی دی او اووه زره سکې یې په یوناني او خروشتي لیکنو موندل شوي دي.

تر مایوس نومي وروسته د ده له پاتې کسانو څخه دوه نور هم د سکو له مخې پېژندل شوي چې یو یې ازیس AZES (د۵۰ ق، م په شاوخوا کښې) او بل ازیلیسیس ـ AZILISES دی. دوی په یوه عصر کښې اوسېدل او د دواړو پر سکو باندې په یوناني خط "لوی شاهنشاه" لیکل شوي دي. داسې سکې هم لیدل شوي دي چې د دواړو پاچهانو نومونه یو په یوناني خط او بل په خروشتي لیکل شوي دي (وګورئ ۲٦ مه نومره عکس).

هغه وخت چې دغې ګرځندوېې کوچې قبیلې د آمو د بهیدو جنوب ته د باختر په سیمو کښې له پکهت ـ پښت او پښتنو سره ګډې شوې د ساکه نوم یې په دغو پښتنو کښې پرېښوو، چې په زابل او کابل کښې د پښتنو د سهاك قبیله او په هلمند کښې ساکزي (سکزی) تر اوسه د دغه نامه رېښه لري، د دوی نورې قبیلې په خراسان کښې د هریرود له ناوې څخه د خزر بحیرې تر کڅو پورې د پارت په نامه مېشته شوې او څمکه یې هم د دوی په نامه یاده شوه، څنګه چې له خپل اصلي ټاټوبي باختر څخه د هریرود ناوې ته تر دامغان (د خراسان یوه برخه) پورې تللې وې نو د ژوستن په وینا د پارت په نامه مشهورې شوې چې پارت په سکایي ژبه تبعید شوي ته وایي او دوی



هم له باختره هجرت کړی و.

"سر او لف کرو" انګریز افغان پیژندونکی د ګندهاره د ساکانو حکمرانانو په نومو کښې له پښتو سره ډېر شباهتونه موندلي او لیکي چې د ساکي حکمرانانو دا نومونه پښتو ته نژدې دي: سپاله که دمه Dama-Spalag (سپاله = سپاه) + (ګه ـ د تجلیلی تصغیر نخښه) + (دمه = جلال ـ برم) چې ټوله جمله د "مجلل سپاهی" په مانا ده.

بل نوم سپاله هوره Spala-Hura دی: (سپاله = سپا+ هوره = اور یا هور) د اور سپاهي یا لمر سپاهي او بادرنا سپاهي په مانا ده.

همدارنګه د چستنه Chastana نوم همدا د پښتو "څښتن" د مالك او خاوند په مانا دی.

او که موږ پارت ـ پارتهوه د ژوستن په وینا "تبعید شوی" او "مهجور" وبولو، نو په پښتو کښې یې اوسنی شکل "پردی Pradia" یعنی بیګانه او مهاجر دی. یا به د پښتو (پرته) PRATA وی (د دریم حرف په زور کښې) چې دغه هم دلیری مانا لري لکه چې وایي: له مخه مې پرته شه یعني لېرې شه. یا پلانی پرتې وایي یعنې له عقله لېرې خبرې کوي.

داسې ښکاري چې سیستان ته د ساکه قبیلو لومړني مهاجرتونه تردې وختو ډېر پخوا پیښ شوي دي: د موسیو فوشه په وینا لوی کوروش (۴۵۰ ق،م) د سیستان د نیولو په وخت کښې دا "ساکان" د دوی د ښو خدمتو په سبب "ښه کړونی ـ نیکو کردار" (په یونانی کښې ایو یرګت (Evergetes) بلل همدا خلك د(۳۳۰ ق،م) په شاوخواکښې پر همدې ځمکه اوسېدل، چې سکندر هم دوی نازولي وو او ښه نرمه رویه یې ورسره درلوده (وګورئ تمدن ایراني کتاب).

د (۲۵۰ ق،م) په شاوخوا کښې بلخی ارساس ـ ارشك ـ اشك د "فري

یاپت" زوی له خپل ورور "تیرداد" سره لوېدیځ خواته لاړ، د پارت یوناني حکمران فریکلیس یې وواژه او داشکاني سلطنت بنسټ یې کېښېښوو، په یوناني او خروشتی دواړو ژبو یې سکه ووهله، او خپل ځان یې بازیلیوزبازیلیون (شهنشاه) وباله، چې منځته راتګ یې د ۲۴۹ ق،م په شاوخوا کښې او پایتخت یې اوسني دامغان ته څېرمه و، داشکاني پاچهانو سلسله ده ته منسوب ده، د سترا بو په وینا دی تر دوو داخلي جنګو وروسته د خپل نیزه وال له لاسه ټپي شو او د هغه ټپ له امله پر ۲۴۷ ق،م کال مړ شو. پر ۲۴۸ ق،م کال دده زوی تیرداد د دویم اشك په نامه پر تخت کښیناست ښه غښتلی مدبر پاچا و، تر بابل پورې یې فتح وکړه او ختیځ خوا د باختر شاوخواته ورسېد، خو له باختر یوناني پاچا دویم "د یودوتوس" سره یې د سیلیوکي دولت په مقابل کښې روغه وکړه او د یووالی لاس یې ورکړ، دی چې زوړ شو مړ شو، او پاچهي یې له ۲۴۸ څخه تر ۲۱۴ ق،م پورې وه.

## نور اشکاني نامتو پاچهان دادي:

۳ - ارتبان: اردوان (۲۱۴ تر ۱۹٦ق،م) د تیر داد زوی چې د ده په وختو کښې "دریم انتیو کوس" پر پارت حمله وکړه او باختر ته راتیر شو.

۴ - فري یاپت د اردوان زوی (له ۱۹٦ تر ۱۸۱ ق.م).

۵ - لومړی فرهاد د فري یاپت زوی (له ۱۸۱ تر ۱۷۴ ق،م) د باختري د یمتریوس معاصر.

٦ - مهر داد د لومړي فرهاد ورور(۱۷۴ - ۱۳٦ق،م) لوی او هوښیار پاچا و، چې د باختري یونانیانو غربي ولایتونه او مرو یې ونیول، اراکوزی، کابل او سند یې لاس ته راوستل او د پارت د هېواد وېش یې د سند تر سینده ورساوه. خو سره له دې هم د ده حکومت مشروطه و، د شورا دوه



مجلسونه یې لرل چې د دوی په غوښتنه یې کار کاوه.

۷ - دویم فرهاد د مهر داد زوی(۳۱٦ - ۱۲۷ ق،م) ده ساکه قبیلې خپلې مرستې ته وبللې چې له انتیو کوس یونانی دولت سره په جنګ کښې له ده سره مرسته وکړي خو ساکا نو په چور او چپا ولاس پورې کړ، او فرهاد له دوی سره وجنګید، خو چې فرهاد ووژل شو، او پارتیانو ماته وکړه.

۸ - ارتبان (دویم اردوان)(۱۲۷ - ۱۲۴ ق،م) دی د دویم فرهاد تره او د فري یاپت زوی‌و، چې د دویم فرهاد تر مړینې وروسته د پارت پر تخت کښېناست دی د تخار له خلکو سره چې د باختر یوه برخه وه ونښت، په یوه جنګ کښې د لاس پرموټ ټپي او له همدې امله مړ شو، پارتیان پرشاشول، همدا وخت و چې ساکانو درنګیانه (سیستان) ونیو، او هغه یې په خپل نامه سکستان (ـ معرب یې سجستان) وباله او ان د کابل تر نیولو ورسته د هند خواته هم تیر شو او هلته یې د هندوساکه یا هندو سیتهین دولت جوړ کړ. همدارنګه ګرځنده صحرایي سپین پوټکیو آریایي قبیلو (هون) د شمال له خوا یرغل وکړ او د ۱۲۷ ق،م په شاوخوا کښې یې باختر او تخار ونیو او د هغه ځای یونانیان یې جنوب ختیز خوا د کابل او سند لوري ته وشړل، او دا ټولې صحرایي قبیلې (ساکه، تخار، هون) شمالي آریایي خلك وو، چې د ژیړ پوستو له توکم (نژاد) څخه نه وې، بلکه د دوی ژبه ـ څیرې ـ بڼې بیخي اریایي دي د تورن فان کشف شوي آثار دا مطلب ښه څرګندوي.

۹ - دویم مهر داد دارتبان زوی(۱۲۴ ـ ۷٦ ق،م) لوی پاچا و، چې په خپل ۴۸ کلني سلطنت کښې پر ساکانو او سرکښو قبیلو بریالی شو او د باختر او سیستان یوه برخه یې ونیوله او د خپل سلطنت وېش یې همالیا غروته ورساوه.

خو لوی مهرداد د پارت د دولت پایتخت له خراسانه د دجلې غاړې

ته یووړ او دار منستان اوروم له دولتو سره په جنګو بوخت پاتې شو، نو ځکه تر هغه وروسته دپارت د دولت پیښې په آریانه پورې اړه نه لري، او زموږ د تاریخ برخه نه ده. داشکانیانو له سلسلې څخه تر پینځمې میلادي پیړۍ پورې په ایران، ارمنستان او د لوېدیزې اسیا په مختلفو برخو کښې ډېر پاچهان پاچهۍ ته رسېدلي دي، خو زموږ له هېواد او زموږ له خلکو سره یې اړه نه لرله خو څلورم اشك (څلورم فرهاد) پر ۳۳ ق،م کال ظلم او تیری وکړ او خلکو پر هغه بلوا وکړه، دی ختیځ خوا ته وتښتېد او هغو ساکانو ته ورغی چې په باختر، سیسات رخج او نور وځایو کښې اوسېدل او له دې ځایه بېرته خپل هېواد ته لاړ.

د ساکانو او پارتیانو له ګډو ځانګو څخه چې په جنوبي افغانستان او غربي هند کښې یې پاچهي کړې ده، یوه، ځانګه هم د پرتهوا - پهلوا ده چې د دې ځانګې د سیاسي تشکیلاتو او اداري لومړی ځای سګستان او اراکوزي (د هلمند او ارغنداو ناوه) ده، ددې ځانګې د خلکو واکمني د میلاد په لومړۍ پیړۍ کښې تر تکسیلا پورې رسېده او هغه وخت چې اپولو نیوس APOLLONIOS پر ۴۳ ـ ۴۴ م کال د تکسیلا د لیدو له پاره راغی، هلته له دې خلکو څخه یوه یوویشت کلن پاچا د فراوتیس Phraotes (فرهاد) په نامه پاچهي کوله.

د سیستان او اراکوزي د پهلوا د خپلو اکو پاچهانو د لړۍ مؤسس ونونیس Vonones نومیده، په سکو کښې د لوی شهنشاه په عنوان یاد شوی او د ۱۲۰ ق،م په شاوخوا کښې یې پاچهي جوړه کړې ده، سکې یې په یوناني او خروشتهي لیك دي او پر ځینو سکو یې د خپلوانو او تابعانو نومونه هم لیکل شوي لکه "سپه له هوره" ورور یې Spalahora او سپه له ګادمه Spalagama وراره یې، سپه لی ریزا Spalirisa بل ورور یې نو ځکه ویل



کېدای شي چې د سا که پهلوا د کورنیو افرادو په دې خاوره کښې یو بل ته نژدې په یوه عصر کښې په ګډه حکمراني کوله، د دونونیس دا خپلوان د هېواد په مختلفو ځایو کښې د ده نایب السلطنه ګان وو (د ۱۱۰ ق،م په شاوخوا کښې) (وګورئ ۲۷ مه نومره عکس) د دې سلسلې بل لوی پاچا ګندو فاریس Gandophares یا اندوفیریس دی (۱۹ ـ ۴۸م) چې په سکو کښې شهنشاه - ژغورونکی نه ماتیدونکی او دیندار معرفي شوی دی او هم د پېښور شمال ختیز ته د تخت بایي په ډبرلیکونو کښې (۱۰۳م) ګودو هره Guduvhara هم دا پاچا ګڼلی شوی چې له سیستانه یې تر سند و پنجاب پورې واك درلود، ځینو مورخانو د اوسني کندهار نوم پخوانی ګندوفارو ده ته منسوب بللی دی چې په دی نامه کښې د "فر" تاریخي کلمه د برم او جلال په مانا شته او مانا یې "برم ګټونکی" دی، که موږ دا نوم په پښتو واړووو" ګونده فر" د اساسي جلال او برم مانا ورکوري او موږ وینو چې د آریانه د کوشاني پاچهانو پر سکو یې هم د "فر" توری لیکلی دی.

د لرغوني هند د سیاسي تاریخ لیکونکی د تخت بایي د ډبرلیك له مخې د ګندو فاریس د پاچهۍ وخت ۴۷ م کال ټاکلی او وایي چې دا کال نه مسیحي روایاتو سره هم سم دی په دغه اساس نو دغه پاچامزدي (زردشتي) دین لاره، خو د حضرت مسیح شاګرد او په هند کښې د هغه د دین "مبلغ سنت توماس" د ده دربارته واستول شو او پاچا د مسیح دین ومانه چې په مسیحي روایتو کښې د ګندو فوروس په نامه یاد شوی دی، له همدې سببه ده په ځینو سکو کښې له خپل نامه سره ددیوه ورته Deva-Varta صفت یعني دین دارهم لیکلی دی.

. د لرغوني هند په سیاسي تاریخ کښې لیکی چې: له ګندو فاریس سره هم دده ځینې خپلوانو په حکمراني کښې ګډون لاره، چې یو له هغو څخه

د ده ورا ره ابداګاسيس Abdagases د افغانستان په جنوب کښې، اوله جنرالانو څخه يې اسپاورمن Hspavarman اوسسه (چچ) او له حکمرانانو څخه يې سپيدنه Spedana اوسته وستره Satavastra په ټکسيلا کښې وو.

د ګندو فاريس تر مړينې وروسته د ده ارت هېواد د ده د ځای ناستو تر منځ پر کوچنيو برخو وويشل شو(د ۵۰م شاوخوا) چې د هغو له جملې څخه سنه باريس Sanabares په سيستان کښې، پاکوريس Pakores او سسه په ګندهاره او لوديز پنجاب کښې حکمرانان وو، د دوی سکې په يوناني او خروشتي ليکدودونو له ټکسيلا څخه لاس ته راغلې دي، د پهلوا له همدغو شاهزادګانو څخه اورتاګنس هم دسکو له مخې پېژندل شوی دی، چې دی يې همهغه ګودا . ګاد د ګندو فاريس ورور بللی دی، چې د ميلاد د لومړۍ پېړۍ په دويم نيمايي کښې يې حکمراني کوله، د چارسدې په خروشتي ډبرليکونو کښې يې نوم "ګادسا" دی چې ځينو دا نوم د ګندو فاريس د قبيلې نوم هم ګڼلی دی، په دغه صورت کښې نو د مهابن د لمنو د پښتنو د "ګدون" د قبيلې نوم هم راپه يادوي چې د چچ (همهغه سسه) د ځمکې په شمال کښې پرته ده، عربي مؤرخانو دانوم په "صصه" معرب کړی و.

(وګورئ ۲۸ مه نومره عکس).

# کوشانيان

هغه قبيلې چې د (۱٦۵ق.م) پر شاوخوا يې له ارياييي ساکانو او سيتانو سره د وينې او توکم (نژاد) ګډون لاره، د بنې، څېرې جګو پوزو او نور څرګندو ژبنيو ځانګړتياوو له مخې د ختيز شمال له آريايي نژاد څخه ګڼل کېږي او چينيانو دوی يوچی yuach-chi بللي دي چې له خپل پخواني ټاټوبي څخه چې د ختيز چين خوا ته و، راووتلې او د آمو سيند شمالي سيموته راغلې. دوی د هغه ځای ساکان په باختر کښې د آريانه ختيزو سيمو او د هندوکوش جنوب ته وشړل چې تر ۱۲۷ ق،م وروسته تر هنده پورې هم پرشا شول او ځای يې يو چيانو ونيو.

پر ۱۳۸ ق،م چې د چين امپراتور وو-تی Wou-ti ( ۱۴۰ - ۸۷ق،م) د هيوانګ نو د قبيلو له يرغلو او حملو څخه وربېد، نو خپل يو سفير يې د چانګ-کين Tchang-kien په نامه يوچيانو ته واستاوه چې له ده سره مرسته وکړي، خو هغوی مرسته ورنه کړه، د دغه سفير په وينا د آمو په جنوبي سيمو (باختر او بدخشان) کښې د تاهيا (تخار) خلك اوسېدل او د يوه بل چيني مورخ سيو ـ ماتسين Seu-Matsien (د ۹۰ ق،م شاوخوا) له ليکنې څخه هم څرګندېږي چې يو چيانوتر (۱۲۵ ق،م) پورې لا د آمو په شمالي سيمو کښې ژوند کاوه، او د آمو جنوبي خواته را شيوه شوي نه وو.

یوچي خلك د (۷۰ ق.م) په شاوخوا کښې تر آمو را پوریوتل، او د تخاریانو (تاهیا) په مرسته یې باختر ونیو، تر هغه وروسته د یوچي او تخار تر منځ ګډون راغی، او یو غښتلی او ممتازتکم (عرق) یې منځته راوست چې د کوشي Kushi کوی شانګ . کوشان نامتو قبیله د دغو خلکو له پینځګونو قبیلو څخه وه. د "کوچي" اوسنی کلمه په پښتو او دري دواړو ژبو کښې ددې ریښې نمایندګي کوي. د چین د یوه مورخ د یادونې په اساس د کوشیانو مشر چې کیو - تسیو - کیو - kieu-Tsiu-Kieu نومېد د نورو څلورو قبیلو مشران یې د ځان تابع کړل او په خپله دی" د کوی شانګ پاچا"په نامه وپېژندل شو، له همدې وخته په تاریخ کښې د کوشان کلمې د یوچي ځای ونیو، د دغه تېر لومړی نامتو پاچا د چین د لیکونکیو په وینا همدا کیو - تسیو - کیو(- کوجوله کره کد فیزیس) Kujula-kara-kadphises (د ۴۰م شاوخوا) و، چې پارتیا (خراسان)، کابل او کاپیسا یې ونیول او د غزني په شاوخوا کښې یې د پوتا Pauta خلك هم د ځان تابع کړل چې د فرانسوي"واله د ویوسن" په وینا دا خلك پښتانه وو.

کوشان شاه د خپلې پاچهۍ په اوږده موده کښې وکړای شول چې د یوناني او پارتي پاچهانو پایخور(بقایا) له منځه یوسي؛ د آریانا په ټوله خاوره کښې خپل نفوذ ټینګ کړی او دافغانستان د خورا سترې امپراتورۍ بنسټ کښېښودي. دي د ۷۸ م په شاوخوا کښې پر ۸۰ کلنۍ تر ۳۸ کالو پاچهۍ وروسته مړ شوی دی، تر اوسه پورې یوازې د ده راز، راز مسي سکې پیدا شوي دي، چې یوناني او خروشتي لیکنې لري، دده نوم په یوناني کښې" کوزولا کده فیس" دی چې دده القاب یې "دیندار،د آسمان زوی، شاهنشاه" لیکلی دی. (وګورئ ۲۹ مه نومره عکس).

د ستر کوشانشاه لومړي کد فیزیس تر مړینې وروسته یې زوی دویم



ویمه - کد فیزیس Wema-Kadphises د ۱۱۰م تر شاوخوا پورې حکمراني وکړه او پر ۸۰ کلنۍ وفات شو. (وګورئ ۳۰ مه نومره عکس). دی لومړی کوشانی شهنشاه دی چې د خپل هېواد وېش یې ختیز خواته د ګنګا تر غاړو پورې رسولی و. خو چې د چین د پاچا در بارته یې خپل استازی (سفیر) واستاوه او د هغه لور یې ځانته وغوښتله او دا غوښتنه یې رد شوه، نو پر ۹۰ م کال یې اویا زره سپاره د خپل نایب (سی Si) په مشرۍ د پامیر له لارې ختیز چین ته د یرغل له پاره ولېږل او د چیني جنرال پان - چاو په لاس یې ماتې وخوړه، د چین امپراتور Ho-Ti هو - تي ته یې کلنګ(باج) ورکړ، خو تر هغه وروسته یې درومن له امپراتورۍ سره خپل اړیکي ټینګ کړل او پر ۹۹م کال یې خپل استازی د روما امپراتور "تراجان" دربارته استولی و، او له هغه هېواد سره یې تجارتي او فرهنګي راوابط درلودل، چې دده، د عصر په سکو کښې درومن د سکو جوړولو د هنر پیښې (تقلید) څرګندې دي او پر هغو باندې دستر کوشانشاه د یوه پوتره Deva-putra (خداوند زاده) القاب لیدل کېږي چې دفغ پور(فغفور) د لقب مانا ده، دده مړینه د ۱۱۰ م کال په شاوخوا کښې ګڼلې شوې ده. تر ده وروسته په تاریخ کښې ۲۰ کاله خلا شته چې په دې موده کښې له لرغونیو آثارو او سکو څخه تر اوسه د یوپاچا وجود نه دی څرګند شوی ځینی د سوتر میګاس (لوی ژغورونکی) سکې په دې خلا کښې ځایوي، خو غالب اټکل دادی چې دا سړی په هند کښې دویمه نایب السلطنه و.

په هر صورت د لویو کوشانیانو شهنشاهي د ۱۲۵ م یا د ۱۴۴م په شاوخوا کښې یو چاته ورسیدله چې کنیشکه Kanishka نومېد، او بنایي چې د کد فیزیس له کورنۍ سره یې د خپلوۍ روابط هم درلودل، خو دی دیوه لوی کهاله موسس دی چې د میلاد د دریمې پیړۍ تر منځ پورې یې زموږ په

هېواد کښې پاچهي کړې او خپله واکمني يې په هند کښې هم پراخه کړې ده.

د کنيشکه د شهنشاهۍ مرکز په ژمي کښې پوروشاپوره (پېښور) او په دوبي کښې د کاپيسه بګرام و، چې د هېواد ختيز ويش يې د هند تر بنارس رسيده او د لوېديځ خواته په پارت پورې نښتی و، د شمال لورې ته يې کاشغر، يار کنډ او ختن هم ونيول د چين له امپراتوره يې يرغمل واخيستل؛ بودايي دين يې ومانه؛ د اشوکا غوندې يې د هغه دين تبليغ او خپرولو ته ملاوتړله؛ د بودايانو څلورمه لويه ديني جرګه يې چې پينځو سوو پوهانو برخه په کښې اخيستې وه د کشمير په سرينګر کښې د هغو اختلافاتو د ليرې کولو له پاره جوړه کړه چې د هغه دين د روحاني طبقو تر منځ پيدا شوي و، په بودايي دين کښې بدعتونه او پساتونه پېښ شوي وو، او پر خپل اصالت پاتې نه وو، هر پلوته بېلې بېلې ډلې منځ ته راغلې وې نو په دې جرګه کښې چې د کنيشکه د دربار پوهان او د ګندهاره علما هم په کښې و، د اووم بودايي پيشوا د ګندهاره د لوی عالم واسو ميتره Vasumitra په مشر تابه جوړه شوې وه داسې فيصله وشوه چې دهينه يا نه Hina - Yana د کوچنۍ بګۍ - کوچني مذهب لرغونی مذهب چې د بودا تر مړينې راپه دې خوا يې پينځه پيړۍ رواج موندلی و تعديل او اصلاح شي، او دا مذهب چې د سپېڅلي تقوا او نفس د تهذيب سپار ښتنه يې کوله د مهايانه Maha-yana په لوی مذهب تعديل شو، چې د ناګار جونه Nagarjuna نومې عالم له خوا ترتيب شوی و. په بودايي لوی مذهب کښې چې ورسته يې په ختيزه آريانه کښې هم رواج وموند، د کوچني مذهب د اخلاقي سپېڅليو د ساتيرو پر ځای داسې ښوول کېده چې يو سړی بايد د بود يستوه Bodhisattva روښانه شوي راتلونکي بودا مقام ته لوړ شی، او هم د بودا د پېښې يا نورو نخښو ښوولو پر ځای بايد د ده ټوله او بشپړه مجسمه لکه د آريانه نور ارباب انواع چې



د يونانو باختري په صنعت کښې يې رواج و، ونمانځل شي.

د هند د جنوبي ژبې "پالي" پر ځای دې د سنسکريت ژبه مذهبي ژبه شي، په همدې سبب پخواني کوچنی مذهب جنوبي مذهب، او مهايانه د شمال مذهب ګڼل کېږي. هغه وخت چې لوی کوشانشاه بودايي دين ومانه، نو پر خپلو سکو يې چې پخوا د آريانه نور ارباب انواع کښل د بودا بشپړ صورت وکيښ، په دې توګه نو د لوی مذهب طرفدارانو وکړای شول چې خپل ځانونه له کوچني مذهب څخه بېل او په ماوراء الطبيعه مسالو کښې خپل عقايد او د بودايت په عالم کښې د ژوندانه دساتير خپاره او د خپلو نويو ګروهو تفسيرونه بشپړ کړي، په هغه زمانه کښې د کنيشکه تر دربار پرته بل داسې دربار چې په متبحرو پوهانو عالمانو ډک وای نه شو ليدل کيدای چې په هغه کښې دلوی مذهب پر موسس "ناګار جونه" سربيره نور پوهان هم وو، لکه: ((اسوه ګهوشا Asvaghosha د حماسياتو او هسکو ډرامو ليکونکی د بودهه چريته مؤلف او ساري پوتره پره کره نه، د طبي علومو ستر ليکونکی چره که، د دربار ديني مشاور پارسوا، سنګهه رکشه، او سدره سنه (هغه مبلغ چې کنيشکه يې بودايي دين ته واړا وه.))

د کنيشکه په وختو کښې د ده په ټول ارت هېواد کښې خورا ډېر بودايي معبدونه او سنګارامې ودانې شوې چې له هغې جملې څخه دهيون تسنګ په وينا يو د "شا ـ لو ـ کيا" معبدو، چې چيني يرغملانو ودان کړی و، په هغه کښې يې د مها کاله د لوی بت په پښو کښې خزانه هم ښخه کړې وه چې که دا سنګهارا مه ورانه شي بيرته يې په هغو پيسو ودانه کړي. اوس د دغه لوی بودايي معبد نښې بګرام ته دوه کيلو متره ورخيرمه د شترک پر غونډۍ (پوزه شترک) کښې ښکاره شوي او هلته انځور شوې ودانۍ او ښکلې مجسمې له ځمکې راوتلي دي.

د دویم لوی معبد آثار چې کنیشکه خپل ژمني تاتوبي پېښور ته نژدې ودان کړی و، د شهرشاهي جنوب ختیز ته د ۱۵۰ فټه جګ معبد کنډوالې دي، هغه یې په خوارا عظمت د بودا د کچکول Patra-Chity د ساتنې له پاره ودان کړی و، د دغه معبد په اړندو ودانیو کښې د اووسوو په شاوخوا کښې بودايي راهبان اوسېدل. د هیون تسنګ په وینا دا کچکول وروسته کندهار ته وړل شوی و (چې پر ۱۳۰۴ ش کال د کابل موزیم ته راوړل شو) وايي چې د بودا دا کچکول په شپږ مې میلادي پېړۍ کښې هغه وخته چې شاه کیپین (کابل) ګندهاره ونیو کندهار ته یووړل شو.

دغه معبد ته نژدې سل فټه جګه د پیپل ونه ولاړه وه چې د هغه وخت د خلکو په عقیده بودا د هغې تر سیوري لاندې کښېنستلی و، او همدلته یې د بودايي دین روزونکي شهنشا، کنیشکه د زېږېدو پیشګویي کړې وه. همدارنګه کنیشکه، د دې مقدسې ونې جنوب ته یوه لویه ستوپه جوړه کړه چې د فاهیان په وینا د ۴۷۰ فټو په شاوخوا کښې لوړه، او په قیمتي جواهرو ښکلې شوې وه؛ چې اوس یې آثار د پېښور جنوب ته نیم میل لیرې د "شاه چې ډهیرۍ" په شپږ ګزه غولي کښې پیدا شوي دي؛ او ډاکټر سپونر پر ۱۹۰۹ کال د هغې ستوپې له کنډوالې څخه یوه فلزي انځور شوې سندوخچه کشف کړه، چې پر هغې د کنیشکه ولاړ تصویر کښلی شوی و، او په سندوخچه کښې د بودا مقدس آثار وو، چې دلارډ کرزن له خوا د برما بودایانو ته ورکړل شوه د هغې سندوخچې یوه مهمه لیکنه داسې ژباړل شوې ده:

"دآګیسله Agisala خدمتګار مهاسینه په سنګهارامه کښې د کنیشکه د ویهاري د کار څارندوی" په هر صورت کنیشکه د افغانستان د کوشانیانو له سترو پاچهانو څخه دی (وګورئ ۳۱ مه نومره عکس). چې د



ده له راتلو سره په دې خاوره کښې د اداري یو مرکزي واك او د مدنیت او فکر پیدا کیده منځته راغله او څنګه چې دده شهنشاهي ۲۲ کاله ګټل شوې ده، نو څکه دده مړینه د ۱۵۱م په شاوخوا کښې اټکلیدای شي چې په دغه وخت کښې به دی د ختن په سیمو او د چین او سغد ترمنځ په غرو کښې مړوي.

د کنیشکه تر مړینې وروسته د ده هېواد د ده د زامنو تر منځ وویشل شو، او واسیشکه Vasishka زوی یې چې د هند په ماتوره کښې نایب السطنه و دده پر ځای کښیناست، که څه هم دده کومه سکه لاس ته نه ده راغلې خو ماتوره ته نژدې په یوه ډبرلیك کښې چې د کنیشکه د سلطنت پر ۲۴ کال لیکلې شوې ده، او هم په دوو نورو لیکنو کښې چې دده د جلوس پر ۲۶ ـ ۲۹ کلو پورې اړه لري، دده د زوی نوم لیکل شوی دی او له دې څخه څرګندیږي چې دی د ۱۴۵ څخه تر ۱۶۰ پورې په هند کښې حکمران و، چې زوی یې هم د کنیشکه په نامه یادیده او ده ته یې دویم کنیشکه وایه، اباسیند ته نژدې د آرا په ډبرلیك کښې د ده نوم په څرګند ډول په خروشتي لیکدود" واجشکه پوتره کنیشکه" یعنې واسیشکه د کنیشکه زوی لیکل شوی دی.

همدارنګه کنیشکه یو بل زوی د هوویشکه Huvishka په نامه درلود چې د کنیشکه د جلوس د ۳۳ کال په شاوخوا کښې دده د شهنشاهۍ د ختیز ولایت حکمران و، خو د جلوس د ۴۰ کال په شاوخوا کښې (=۱۶۹م) د مهاراجه د یوه پوتره (خداوند زاده شهنشاه) په نامه یاد شو او څرګنده ده چې تر دې دمخه یې بشپړه خپلواکي نه درلوده. خو وروسته یې سکه وهلې ده او داسې معلومیږي چې ده په هند کښې او دده وړره دویم کنشکه په آریانه کښې پاچهي کړله، مګر د پاچهۍ په ۵۱ کال (د ۱۸۰ م شاوخوا) د

هوویشکه نفوذ تر کابل پورې رسېده، هغه ډېرليك کښې چې د وردګو په خوات کښې لاس ته راغلی دی، دی د مهاراجه (شهنشاه) په عنوان بلل شوی دی او له بګرامه هم د ده ډېرې سکې کشف شوې دي، په دې توګه د ده د هېواد ويش ختيځ خواته تر کشميره او د هند تر ماتوره پورې رسېده، ده په ماتوره کښې يو شاندار معبد پخپل نامه ودان کړی و، پرسکو يې هم په يوناني ليکدود "شانن شا او ويشکی کوشان" يعنې شاهنشاه هويشکه کوشان ليکلی شوي، په کشمير کښې يې د "هوشکه پوره" ښار ودان کړی دی، او د ده د مړينې کال يې د ۱۸۲ م شاوخوا کښې ليکلی دی.

د دغه کهاله بل شهزاده واسوشکه Vasushka دی چې په هندي آثارو کښې يې واسوديوه Vasu-Diva بللی دی، ده په هند کښې د ۱۸۲ م په شاوخوا کښې پاچهي کوله، خو آريانه ته يې نفوذ، نه و رارسيدلی، پرسکه يې په يوناني ليکدود د "شاناناشا - ياشانن شا - شهنشاه" عنوان شته، خو ترده وروسته مود دې کهاله بل پاچا نه دی پېژندلی.

د لويو کوشانيانو دوره د ۱۲۵ م په شاوخوا کښې د کنيشکه له جلوسه پيل او د ۲۵۰ م په شاوخوا کښې پر واسوشکه ختمېږي، چې په اټکلي ډول يوه پېړۍ او د پېړۍ څلورمه شي. په دې دوره کښې زموږ د هېواد ويدی او اوېستايي لرغوني فکري او فرهنګي مبادي د هخامنشي - يوناني - هندي او بودايي مدنيتو له آثارو سره ګډ شوې، او د شمالي توراني آريايانو د ساکانو وسيتی تهذيبی عناصر هم په کښې داخل شول او يو ډېر غښتلی افغاني فرهنګ يې منځ ته راوړ، چې د دين نمانځنې له مخې يې بشپړه آزادي درلوده، له سپيڅلي او رمز ديسنايی اتشکدو سره بودايي سټهو يې ولاړې وې چې کنيشکه او زامن يې د بودايي دين ټينګ روزونکي او نمانځونکي وو، خو بيا هم د کوشانيو په ټول ارت هېواد کښې د نورو



اديانو معبدونه او نمانځونکي هم وو. لکه د بغلان د مهاډژ په معبد کښې، چې د کشف شوي ډېرليك له مخې د کنيشکه په وخت کښې جوړ شوی او بيا د ۱۶۰م په شاوخوا کښې يعنې د کنيشکه د جلوس د ۳۱ کال په پسرلي کښې يې ترميم کړی دی د مقدس اوراو د زردشتي معبد آثار پيدا شوي دي او د هغه معبد ترميم کوونکی نوکونزيکی نومېد چې د ماريګ Marig له کورنۍ څخه و چې د فرانسوي څېړونکي مريك په وينا دا فاميلي نوم د دوو ورونو له نامه سره د وردګو د خوات په خروشتي ډېرليك کښې هم راغلي دي، حال دا چې د بغلان د مهاډژ په معبد کښې د اور نمانځنې آثار او د خوات په ډېرليك کښې د بودايي دين نخښې څرګندې دي او دا معبد د کنيشکه د جلوس پر ۵۱ کال د (۱۸۰م) شاوخوا ودان شوی دی، د دوارو ترمنځ يوازې شل کاله واټن شته دی.

په هغه عصر کښې د ديني عقايدو د آزادۍ بل مظهر دادی: په ټکسيلا کښې چې د بودايي تهذيب مرکز و، د اتشکدې د ودانۍ ديوالونه شته چې ۱۵۸ فټه اوږدوالی او ۸۵ فټه پلنوالی لري او د ستنو د جوړښت او معمارۍ سليقه يې يوناني ده، دا څرګنده ده چې د يونانو باختري د مدنيت تر خپرېدو وروسته جوړه شوې ده، پردې سربېره هلته اتشکده، بودايي معبدونه او برهمني بود تون هم و، چې البته د هر دين پيروانو په آزادۍ سره د خپل دين مناسك پر ځای کول.

د ژبې او ليکدود له مخې هم کوشاني فرهنګ ځکه غني و، چې په سکو او د معبدو په ډېرليکونو کښې يې يوناني، برهمني او خروشتي ليکدود استعمالاوه او د بغلان د مهاډژ په ډېرليك کښې په پخوانۍ تخاري دري ژبه داسې مطالب ليکل شوي چې پښتو ته ډېر نژدې دي، خو په خروشتي ليکدود کښې يې سنسکريت او پراکريتو ژبې هم استعمالولې،

همدارنگه د هغه وخت په افغانستان کښې د برهمني لیك نخښې هم لیدل کېږي او هغه لیکدود چې د کوشانیانو په عصر کښې د یوناني الفبا له تغییره منځته راغلي ځینو څېړونکیو پوهانو هغه "یونانو کوشاني" لیك بللی، چې تر میلادي پېړۍ او د هیون تسنگ د راتگ تر مهاله پورې لاو، او له کېنې خوا څخه ښي خواته لیکل کېده چې (۲۵) توري یې درلودل (وگورئ ۳۲ مه نومره عکس).

په هغو اسنادو کښې چې د بغلان د سره کوتل د کوشاني او کنیشکه (د ۱۳۰م د شاوخوا) د معبد له کیندنو څخه لاس ته راغلي داسې څرگندېږي چې کوشانیانو د دغه هېواد د افکارو، فرهنگ او صنعت په جوړښت کښې چې هغه ته د گریکو بودیك تر دورې وروسته د "افغاني فرهنگ" یوه ټاکلی او ځانگړې دوره ویل کیدای شي، څرگندې کارنامې کړې، چې له هغې ډلې څخه د شاه نمانځنې ځانگړی قانون دی چې د بودایي او زردشتي (سپیڅلې اور) د افکارو د پایڅوړ له عناصرو سره یې په خپلو معبدو کښې د پاچهانو مجسمې او بتان هم اینښي دي موږ د دغه آیین پایڅوړ (بقایا) د اسلامي دورې په سر کښې د غزني او بامیان د دروازې په مزگت کښې گورو چې د لویك د کهاله وروستنی پاچا د خپل لوی نیکه لویك مجسمه د بت ماتوونکیو مسلمانانو له وېرې د سپینو زرو په تابوت کښې اینښې او په هغه مزگت کښې چې پخوا د شاه پرستۍ خاص معبدو په ځمکه کښې ښخه کړې ده. دا مطلب د غزني په تاریخ کښې راوړل شوی و.

فرانسوي موسیسو فوشه وایي چې: "کوشاني صنعت ددې دورې له ابتکارو څخه بلل کیدای شي، ځکه چې د دې دورې د ستوپو نوعیت د آشو-کا د زماني له ودانیو څخه په ډېره آسانۍ بېلېږي او د آشو کاستوپې د ایران د فلات لوړو ته نه دي راغلي، خو د کنیشکه او د ده د ځای ناستو کسانو



ستوپو په آسانۍ سره هند ته لار پیدا کړې ده، او ان د نوي پایتخت پوروشا-پوره (پیښور) د ختیځ په شاوخوا کښې د کوشان امپراتور خورا لوی بود تون ودان کړی دی."

د کتور هرمان گویتز چې د هند په اړه د څېړنو الماني استاد دی د کوشاني دورې د هنر په اړه وایي:

"یوناني هنر د هندي هنر شکل ته تغییر ورکړ او د گندهارا د آرټ مکتب بڼه یې پیدا کړه، خو دغه هنر ته باید لږ د یوناني او بودایي طرز پراخوالی وویل شي، بلکې اصلاً د ایران ختیز خوا (آریانه) د طرز پراخوالی دی چې ورسره سم یې د جنوب ختیز ساکانو د قبیلو او کوشانیانو تر حکمرانۍ لاندې پراختیا موندلې ده، تر ۳ ـ ۴ پېړۍ پورې لکه د کشمیر د هروان په معبدو کښې چې لیدل کېږي بیخې خالص هنر پاتې شوی د دغو خلکو یرغل د یونان بلخ او هند دولتونه له منځه وړي دي، او داسې هنرېي منځته راوړی چې د ایران د فلات په ختیز پورې اړه لري او د لوېدیز ایران او هخامنشي له هنر څخه اخیستل شوی نه دی."

په دې ډول نور د افغانستان د کوشاني دورې مدنیت ددې خاورې یو خاص تمدن او په دغه هېواد کښې زیږېدلی فرهنگ دی چې د ودانۍ جوړولو، هیکل تورلو، مجسمه جوړولو، ژبې، سکې وهلو او کالیو اغوستلو د هنرو له مخې بیخې افغاني خصوصیت لري، د مثال په توگه، سره له دې چې د دغو پاچهانو پر سکو په یوناني، خروشتي او هندي ژبو او لیکدودو لیکنې شوي خو بیا هم د دري، تخاري ژبې کلمات چې د همدې اوسنۍ ژبې مور ده هم لیدل کېږي لکه شا (ـ شاه)، شاناناشا (ـ شهنشاه) او فر (ـ برم او عظمت) چې د پخوانۍ دري ژبې کلمات دي، د کوشاني مدنیت ډېر ښه ښکارندوی د بغلان د نوشاد د مهادژ د مندر (معبد) کنډوالې دي، چې په

سره کوتل کښې له ځمکې څخه راوتلي او د زردشت د مقدس اور د نمانځنې خورا لوی ځای و، هلته لیکنې، مجسمې، سکې او د پخوانیو ودانیو دوهې (اتشګاه) آثار کشف شوي دي.

په دغه لرغوني معبد کښې پر یوه ډبره د لیکل شوي مضمون درې نسخې لاس ته راغلي، چې اصلي او یقیني نسخه یې د معبد د پورتنیو کنډوالو له خاورو څخه را ویستل شوي، دا یوه هواره شاخه ده چې کینې اړخ یې ۱۲۷ سانتي متره، ښی اړخ یې ۱۱۰ - پورتنی اړخ یې ۱۳۲ - او لاندینی اړخ یې ۱۲۵ سانتي متره دی، پر هغې (۲۵) لیکې چې (۹۴۷) شکسته یوناني توري او (۱۶۰) کلمې لري لیکلی شوي دي (وګورئ ۳۳ مه نومره عکس).

د معبد په کښته پوړ کښې یې د یوې لویې ځا کنده موندل شوې چې دیوالونه یې په منظم ډول په ډبرو راپورته شوی، د دیوال د دغو ډبرو تر منځ د مسطحو ډبرو ټوټې پیداشوي چې پر هرې ټوټې په همغه شکسته یوناني لیکدود لیکنې وې، همدا چې د ډبرو دا ټوټې ځنګ تر ځنګ سره کښیښوول شوې نو ځرګنده شوه چې د دغو ټوټو لیکنې د ځینو کلمو په لږ املایي اختلاف همغه د پورتنۍ شاخې مضمون و، د ډبرو دا ټوټې (۲۱) وې چې په مختلف سور او اوږدوالي د ډبرلیك دویمه نسخه ځنې جوړېږي، او(۲۷) لیکې لري، چې د لیك او املا د ښکلا له مخې دویمه درجه ګڼل کېږي، خو دریمه نسخه د ډبرو پر (۳۲) ټوټو په (۲۷) لیکو کښې لیکلې شوې چې لیکدود یې ډېر بې تناسبه او ناوړه دی، په املا کښې یې هم ځینې کلمات له هغو نورو دوو نسخو سره توپیر لري داچې دا (۵۳) لیك لرونکې د ډبرو ټوټې یې ولې د ځاپه دیوال کښې کارولې دی؟ د دې پوښتنې ځواب تر اوسه ځرګند نه دی دا درې واړه نسخې د کابل په موزیم کښې شته، د



ډبرلیك له مضمون څخه ځرګندېږي چې د بك لنګ (بغلان) اصلي بنسټ اېښوونکی کنیشکه و (د ۱۳۰ م شاوخوا) دغه نامتو او بریمن بګ شاه (لوی پاچا) د بغلان مالیز (مهادژ او مندر) (معبد) ودان کړی و، چې هغه یې نوشاده هم باله، خو د کنیشکه تر مړینې وروسته (د ۱۵۱ شاوخوا) د دغه معبد اوبه وچې شوې، نو ځکه د مقدس اور نمانځونکي له دغه ځایه لاړل، او معبد یې پرېښوو، خو چې د کنشکه د عهد د ۳۱ کال د پسرلي د حمل (نیسان) پر میاشت (د ۱۶۰ م شاوخوا) هغه وخت چې شاه بغپور لویك بوسر د شېزو ګرګ اروابناد (مرحوم) زوی د کوشاني شهنشاهۍ تر اثر لاندې په دغه هېواد کښې حکومت کاوه، د هغه وخت یو سړی چې "نوکونزوك" نومېد او د خداوند او ایومن نوبخت (پاچااو د هغه د وزیر) په فرمان یې د ماریګ د کورنۍ د کنارنګی منصب لاره، د نوموړي نویك بوسر له خوا فریستار آب (د اوبو رسولو مامور) و، بګ لنګ ته راغئ، او د هغه نوشاد او مندر د بیرته ودانولو له پاره یې ځا وکینده او د هغه بنسټ یې په ډبرینو خښتو کښېښوو او په هغه پوړي یې یو ارت غولی هم ونښلاوه؛ چې تر اوبو پیدا کېدو وروسته، د نوشاد معبد بیا استوګن او ودان شو، او اور نمانځونکي هلته راغونډ شول.

د ډبرلیك په پای کښې ځو تنو چې د هغه مندر په بېرته ودانولو کښې یې ونډه اخیستې وه لاسلیك کړی دی چې نومونه یې دادي:

بورزو مهر - کوز ګاشکي پور - نوکونزیکي، کنارنګ ماریګ، ایمن نوبخت، مهره من، بورزو مهر، پورا مهره من.

هغه ژبه چې په یوناني لیکدود ددې مهمې تاریخي ډبرې په لیکنه کښې کار ځنې اخیستل شوی دی بې له شکه د همدې اوسنۍ دري ژبې پخوانی شکل دی چې د ګډو توریو او ګډ ګرامر د استعمال له مخې له پښتو

سره خورا زیات نژدیوالی لري، د مثال په توګه: آب - فریستار آب( د اوبو ر سولو مامور)، شا (شاه)، بګ لنګ (بغلان)، بګ شا (لوی شاه)، مالیز (مهادژ) انند (په پښتو د بهره ور په مانا) سا (ثا)، ناموبرګ (نامور) کرد (د کاف په زیر د کردن. کړنې له مصدر څخه د ودانولو په مانا) فروګرد (پوره کدر. پوره کړ. تمام کرد) تادي (په پښتو د تلوار په مانا) ستا د (د لومړۍ توری په سکون. ایستاد) ایر (د آتشګاه په مانا چې په وزیری پښتو کښې هم تر اوسه "ایر" د "اور" په مانا دی او ایرې خاکستر ته وایی) فري (فرا) خودي (خدای) بګ پوهر (فغفور) الو (په پښتو او دری کښې اروا) ایوګ او دوهیرس (. بودیرش)، نیسان (حمل) ما (ماه. میاشت) مال (په پښتو مهال د وخت په مانا دی) کند (د کندن. کیندل مطلقه ماضي) نوشال (نوشاد) فرومان (د لومړي توري په سکون. فرمان).

د فرانسي هیئت کیندونکي پوهان وايي: دا لوی او له برمه ډک معبد په وروستیو زمانو کښې د خورا مدهش اور لګیدو له امله نړیدلی دی، لکه چې د ودانۍ په مرکزي شبستان، کوشکنو او برنډه کښې د ایرو پنډې طبقې شته او هم د نوشاد په دواړو اصلي او فرعي اتشکدو کښې د اور لګیدلو نخښې لیدلې کېږي، ښایي دا اور د (۲۴۰ م) په شاوخوا کښې د ساساني لومړي شاپور د فتوحاتو په وختو کښې په قصدي او عمدي توګه لګېدلی وي.

د نوموړی ډبرلیک له کتنې او څېړنې څخه دې نتیجې ته رسېږو چې په لومړۍ او دویمه میلادي پیړۍ کښې دري ژبه په همغه لرغوني شکل په تخارستان او کوشاني دربار کښې د لیکنو او دفتر ژبه وه، حال داچې په همدغو وختو کښې په لوېدیز او شمالي ایران کښې په پهلوي ژبه خبرې کېدې او دیني او درباري ژبه وه، پر یوه مهال په دوو ختیزو او لوېدیزو



دربارو کښې د دوو ژبو له دغه نژدیوالي څخه پوهېږو چې دري ژبه له پهلوي ژبې څخه زیږېدلی نه ده او له لوېدیځه ختیځ ته نه ده راغلې، بلکې د افغانستان وطني ژبه او له پښتو سره یې ریښه یوه او نژدې ده.

څنګه چې د یوې ژبې د پیدایښت مرحلې په آني او ارتجالي توګه نه دي نو باید وویل شي چې پخوانۍ دري ژبه د ساکانو او کوشانیانو تر مهاجرت دمخه هم په تخارستان کښې وه، خو د یونانیانو له تسلط سره یوناني ژبه پر دمخه شوه او د سکندر د اخلافو د دربار، دفتر او سکې ژبه وه، هغه وخت شمالي آریایي نژاده قبیلې تر آمو سیند راپورې وتې او په تخارستان او باختر کښې مېشتې شوې او بیا یې ټوله آریانه تر لاس لاندې کړه، دغه وخت به نودري ژبه د دربار او لیکنې ژبه ګرځېدلې وي، چې همدا ډبرلیک د هغې رسمي ځای او شهرت ثابتوي.

## د کوشانیانو پایڅوړ اود هپتالیانو منځته راتلك

تر کنیشکه پاتې کسانو د ۲۲۵م کال تر شاوخوا پورې حکومت وکړ، بودایي دین هم په دې دوو پېړیو کښې بیخي دود شو او مخ پر خپرېدو و. خو د دغه دین منفي او فنایي روحیي د کوشانیانو له عسکري تابه او هغه قوت سره جوړښت ونه کړ چې د لښکرو پر متو او فتوحاتو یې تکیه درلوده، او همدا روحیه د ساساني قواو په مقابل کښې د کوشانیانو د ماتې سبب شوه، ځکه نو خلك له دغه دین څخه واوښتل او بیرته خپل برهمني دین ته وګرځېدل، ان د "اګني پورانه" په وینا هندو مفکرانو د کوشانیانو له پاره بودایي دین منل د هغو د پاچهۍ د زوال لامل بللی و.

پر ۲۲٦م کال اردشیر بابکان د ساسان لمسی په پارس کښې یو ډېر غښتلی سلطنت جوړ کړ، د ده تر مړینې وروسته یې زوی شاپور پر (۲۴۰م) کال پر ځای کښیناست، داسې معلومېږي چې د ساساني سلطنت ویش تر پېښوره رسېدلی او دا ښار اردشیر د (۲۳۰م) په شاوخوا کښې نیولی و.

د شاپور په ډبرلیك کښې چې د (۲٦۰-۲۷۳م) تر منځ د پارس په نقش رستم کښې کینل شوې ده د پشکی باوره (پېښور) ښار د ساساني پاچهۍ ختیز وېش بلل شوی او هم د ابګان ABGAN کلمه یاده شوې چې بې له همدغه اوسني "افغان" څخه به بل څه نه وي. څنګه چې دواسو د یود د ۲۲٦م کال ډبرلیك هم لاس ته راغلی او دا د هغه پر برهمنیتابه والي دلالت



کوي. نو څرګنده ده چې د کوشانیانو پایڅوړ (بقایا) بېرته برهمني دین ته اوښتي وو، په همدغو وختو کښې ساساني نفوذ تر پېښوره رسېدلی و، چې د دوی په تعبیر هغه وخت یې د افغانستان هغو سیمو ته چې تر ساساني نفوذ لاندې وې "کوشان شهر" وایه او د (۲٦۵ م) په شاوخوا کښې دغه ساساني حکومت تر هغه وخته دوام درلود چې سپینو هونانو له تخارستانه خپل فتوحات د هندوکوش جنوب ته تر زابل، سند او کشمیره خپاره کړل.

مګر هغو شهزادګانو چې د کوشاني نسل پایڅوړ ته منسوب وو، داو سو دیود (۱۴۵ ـ ۱۷٦م) تر عصر وروسته د آریانه په لرې غرو او رغو کښې حکمراني کوله، چې ځینو د اسلامي دورې تر دریو سوو کلو پورې هم په دغه هېواد کښې خپل موجودیت ساتلی و، له دوی څخه یوه خپله لور دویم ساساني هرمزدته (۳۰۱ ـ ۳۰۹م) واده کړې وه، له هندي منابعو سره سم، د یوه پوتره، شاهانو خورا ښکلي کوشاني شاهي، سوغاتونه د هند سمودره ګوپتاته استولی وو (د ۳۲۵ م شاوخوا) د کوشاني پایڅوړ له دغو شهزادګانو څخه یو چې کیداره Kidara نومېد د څلورمې میلادي پیړۍ په منځ کښې پر ګندهاره تر کشمیره حکومت کاوه (وګورئ ۳۴ نومره عکس)، چې په همدغه نامه څو نور کسان هم پېژندل شوي دي د چیني سرچینو په اساس د هغوی پایتخت هم پېښور و، دوی په چینې نامه" کی ـ تو ـ لو" بلل کېدل، او د ژوان له قبیلو سره یې جګړه درلوده او له باختره وتلی په کابل او ګندهاره کښې یې یو سلطنت جوړ کړی و د دوی په وختو کښې دښیښې جوړولو صنعت د آریانه سوداګرو په واسطه په چین کښې وده کړې وه.

د کیداره له سکو څخه داسې څرګندېږي چې په لومړ ی سر کښې تر ساساني اغېزې لاندې و خو وروسته خپلواك شوی دی، د دې سلسلې دویم پاچا "پیرو" نومېد چې د "کیداره" زوی و او د ساساني واکمنۍ تر اغېزې لاندې یې سکه وهله، د ده سکې په برهمي او پهلوي دواړو خطوشته،

له دې څخه معلومېږي چې په همدغو وختو کښې د ساساني مدنيت نفوذ خپور شوی او د ساساني وخت پهلوی ليك دود و.

الماني څېړونکي مار کوارټ درومن د يوه منصبدار په حواله وايي ساساني دويم شاپور د (۳۵۰م) او (۳۵۸م) تر منځ له خيونيانو او کوشانيانو سره چې په کابل، زابل، تخار او باختر کښې اوسېدل، جګړې کړې دي، ددې قبيلو مشرګروميياتس Grumbates و، چې شاپور پر (۳۵۸م) ورسره روغه وکړه، دې قبيلو درومنيانو په جګړه کښې له شاپور سره مرسته کوله او داسې اټکل کېدای شي چې د ۳۵٦م په شاوخوا کښې کابل د شاپور لاس ته ورغلی و، ځکه چې پر همدغه کال د کابل قاضي القضاة "سلوك" په تخت جمشيد کښې يوه ډبرليك ليکلې او په هغې کښې دعا کوي چې شاپور دی کابل ته روغ رمټ راوګرځي. له دې څخه څرګندېږي چې په دغه کال ساساني شاپور له کيداريانو سره د ګندهاره په ولايت کې جنګك کاوه، ښکاري چې دا سيمه يې تر (۳۵٦م) پخوا نيولې وه، کيداره په ګندهاره کښې سکه وهلې ده، چې د کنيشکه د عهد پر ۲۳۹ کال د ۳٦۷م په شاوخوا کښې وه.

د کيداريانو نفوذ تر تالقانه او د مسرو روډ تر ناوې پورې رسېدلی و، چې په دغه ځای کښې يې د بهرام له زوی دويم يزد ګرد سره (۴۳۹ ـ ۴۵۷م) چې ساسانی پاچا و، جګړه وکړه او پرشا يې وشاړه، پاچا د خپل ژوند تر پايه په همدغه جګړه کښې اخته پاته شو، تر ده وروسته يې زوی پيروز (۴۵۹ ـ ۴۸۴) زيار ويوست چې کيداريان د ځان تابع کړي، خو دوی ورته تېنګك شول، پر دغه مهال پاچهي کنګك خاس kungkhas د کيداره زوی ته رسېدلې وه، چې ساساني پاچا د خپلې خور په ورکړې سره هغه ته د روغې وړانديځ وکړ، خو بريالی نه شو کنګخاس هم ګندهاره ته راوګرځېد. د کيداريانو پايتخت په لومړي سر کښې کاپيسا و، چې بيا وروسته د نورو قبيلو د فشار په اغېزه پېښور ته يوورل شو، د دوی د سپينو زرو او مسو



سکې لاس ته راغلې دي چې د کيداره پر خول نوې مياشت ليدل کېږي، وېره نه لري، غوږوالی يې پر غوږ دي، په برهمي ليکدود وړباندې "کيداره کوشان شاه" ليکلي دي او د سکې پر بل مخ يې يو اورتون له دوو ساتندويو سره چې د هر يوه توره په لاس کښې ده ښکارېږي.

بل کيداري پاچا چې (د ۳۷۵م شاوخوا) شاوخوا په پېښور کښې د پاچهی، پر تخت کښيناست همهغه "پيرو" دی چې د ده پر سکه نيم تنه تصوير او د پاچهی د نخښې فيته له دوو ښکرو سره چې ښی. او کينې خواته کاږه دي ليدل کېږي، کوچنې بريتونه لري او د وېرې پر وېښتانو يې مرغلرې ځړېږي، غاړه کی. او غوږوالی لري او پر اوږو يې دوپټه هم شته او په برهمي ليکدود وړباندې "پيروشا" ليکل شوي دي.

د سکې پر شا يو اورتون له دوو توره لرونکيو ساتندو يو سره ليدل کېږي. د کيداريانو له ټولو کشف شويو سکو څخه څرګندېږي چې دوی بودايان نه، بلکه اور نمانځونې وو.

د "پيروشاه" له کلماتو څخه ښکاري چې د دوی ژبه همهغه د بغلان له معبد څخه د کشف شوي ډبرليك پخوانی. دري ژبه وه.

(وګورئ ۳۵ مه نومره عکس)

تر پيروشاه وروسته بل کيداري پاچا ورهران Varahran (بهرام) هم حکومت کړی چې سکې يې کټ مټ د پيرو شاه سکوته ورته، او قوي احتمال دادی چې د باميان شيران او غرجستان شاران چې تر اسلامي عصره پورې يې د افغانستان په زړه کښې حکومت کړی د همدغه کيداري کهاله پايڅوړ وي ـ ناصر خسرو قباداني هم د غزنويانو په عصر کښې ويلي وو.

استاده بد به باميان شيری      بنشسته بعز دربشين شاری

# هپتاليان

د پينځمې ميلادي پېړۍ په پيل کښې د کوشانيانو او کيداريانو پايځوړ خپل ځواک د دوو لويو امپراتور يو تر منځ چې ختيځ ته يې د هندي ګوپتايانو امپراتوري او لوېديځ ته يې د پارس د ساسانيانو شهنشاهي وه - بايلود، خو د خپلې ازادۍ او ملي موقعيت ساتنې له پاره يې د دغو دواړو لويو قوتو تر منځ خپل شتوالى ساته.

د ۴۲۵ م کال په شاوخوا کښې د آريايي نژاد سپين رنګي قبيلې چې چينيانو "يې - تى - لى - دو" يونانيانو او روميانو افتهاليت Ephthalites يا خيونيت Chionites، پارسيانو خيون يا هون Hion يا Hun، په پهلوي، عربي او دري ژبو يې هيتال، هيطل، هيفتال يا هياطله او د سنسکريټ په هندي سرچينو کښې يې شوته هونه (سپين هونان) بللي دي، د منځنۍ آسياله ځمکو د هندوکوش شمالي سيمو تخارا او باختر ته د آمو تر سيند راپورې وتې، چې چينيان دوى له هونان هيونګ - نو څخه بيخي جلا بولي او هم بيزانسي مورخ پرو کوپيوس يې چې د هپتاليانو همهالى دى پر (۵۶۲م مړ)، دوى په دې سبب له ژېړ پوستو وحشيانو څخه بېل بولي، چې د دوى ښه سپينه او هم تر هغوى مهذب وو، آن د چيني مؤرخانو په وينا د دوى ژبه هم مغولي يا ترکي نه وه او ښايي چې د ترکي او آريا نه له لهجو څخه يوه ګډه ژبه وي چې د خان - هون نوم يې له همدې ګډون څخه اخيستی دی او



اصلاً همهغه يو - چې ده.

دغو هپتالي خلکو پر ۳۶۰م کال له شماله د جنوب خوا ته تګ پيل کړی او ځنګه چې کوشاني کيداريان د دوی د يرغل په ګواښ پوه شول، نو له ساسانيانو څخه يې مرسته وغوښته، خو ورته ټينګ نه شول. لکه چې وويل شول د ګندهاره سيمو ته پر شاشول - خو هپتاليانو چې نوم يې د بدخشان په يفتل او د غزنې د جغتو په هفتاله کښې تر اوسه پاتې دی تر ۴۲۵م کال پورې ټول باختر ونيو او له دغه ځايه يې لوېديځ خوا ساساني دولت ته ګواښ پيښ کړ، د جنوب ختيځ پلوته يې د کابل، ګندهاره او زابل سيمې ونيولې او د افغانستان غښتلى هپتالي دولت يې جوړ کړ.

هپتاليان هم لکه کوشانيان، کيداريان او ساکيان د دغه هېواد له نورو آريايي نژادو وګړيو او پښتنو سره ګډ شول دوى چې په خپله هم سپين نژادي آريايان، اريايي ژبې او د آريايي فرهنګ خاوندان وو، نو په افغانستان کښې يې يو غښتلى او واکمن نژاد منځته راوست، چې د دوى د پاچهانو جګى پوزې او ښې کټ مټ د پښتنو قبيلو زلميانو ته ورته وې. د دغه نامه ريښې په تاريخ کښې په لاندې ډولو په بېلابېلو ژبو کښې پاتې دي، چې په دغه ډول اوښتي دي:



او مورِ ګورو چې دا نوم د اودال Odal په شكل د ۱۹ مي پېړۍ تر لومړيو پورې د توريوښو (اوسنی نورستان) په قبايلو كښې تر اوسه شته، دا خلك تر هغه وخته چې په خپل پخواني دين وو او مسلمان شوي نه وو، تر دوی د لاندې ناوونو ټولو خلكو ته اودال ويل. دغه ټكی ميسن انګريز چې د امير دوست محمد خان د پاچاهۍ پر مهال په كابل كې و، د سياه پوش كافرانو (نورستانيانو) نه اورېدلی و او د خپل سياحت په يادښتونو كښې يې ليكلی و.

يفتليان په ټول افغانستان كښې له مروې تر كشميره خپاره شول او دلته يې ډېر ځواك وموند.

د هپتالي لښكرو لومړی جګړه پر ۴۲۷ م د پارس له ساساني پاچا بهرام ګور سره وه. هپتالي خاقان له خپل دوه سوه پنځوس زريز لښكر سره د مرغاب او مرو رود په سيمو كښې له هغه سره وجنګېد چې په دې جګړه كښې مات او ووژل شو. بهرام ګور د هغه مرصع او زرين خول د آذر بايجان اورتون ته ډالۍ كړ او خپل ورور نرسي يې د لوېديځي آريانه د سيمې نايب السلطنه وټاكه.

پر ۴۳۸ كال د بهرام ګور زوی دويم يزد ګرد پر ساساني تخت كښېناست، دې څو ځل له هغو هپتاليانو سره چې د ګرګان د شمال په چول او په تالقان كښې اوسېدل ونښت، خو په پای كښې يې ماته وكړه او پر ۴۵۷م كال مړشو، ترده وروسته چې لومړی فيروز (۴۵۷ ـ ۴۸۴م) پاچا شو، د هياطله مشرتوب هغه پاچا ته رسېدلی و چې اخشونوار (خشنواز) يا اخشوان نومېد، دا وروستۍ كلمه په تخاري ډبرليكونو او سندي متنو كښې د پاچا په مانا ده. هپتالي (يفتلي) او ساساني دولتونه د خراسان په شمال كښې سره ونښتل چې په نتيجه كښې پيروز مات او د تالقان سيمه يې دوی



ته پرېښوده، له اخشوان سره يې تړون وكړ چې د پارس دولت به تر دغه ويش تېری نه كوي، تر دوو كالو پورې به پارس هپتاليانو ته خورا زيات كلنګ(خراج) وركوی او دپارس ديد شاه زوی كواذ (قباد) به هم د يرغمل په توګه وركړي.

خو پيروز د دغه تړون پر خلاف تر څه مودې وروسته پر هپتاليانو يرغل وكړ "په نومړي حركت كښې سپهبد بهرام ورسره موافق نه و، همدا وه چې د پارس سپايان د خراسان د شمال په بيابانو كښې تباه شول، او په خپله پيروز هم ووژل شو (۴۸۴م) لور يې د اخشوان لاس ته ورغله چې هغه يې ماندينه كړه؛ د هپتاليانوا كمني له مرو روده تر هراته خپره شوه او ساساني دولت يې باج ته غاړه كښېښووه.

په دې توګه اخشوان وكړای شول چې د آريا نه خاورې يووالی د هريرود له مجرا څخه د كابل او هلمند تر ناوو پورې ټينګ كړي او داسې يو غښتلی دولت منځته راولي، چې د پارس ساسانيانو يې خراج ته غاړه اېښې وي.

هغه مهال چې د هپتاليانو پاچهي په ټوله آريانه كښې ټينګه شوه، د دوی قبيلې په زابل كښې سره يوځای شوې، نو د زابلي پاچهانو په ډبرليكونو كښې هپتاليانو، ځانته جابوله Jabula يا جيووله Jauvla يعنې زابلي ويلي دي.

د پيروز تر وژلو وروسته يې ورور ولاش (بلاش) پاچا شو، خو تر څلورو كالو وروسته د ده د وزير "زرمهر" په زيار د پاچهۍ له تخته راپرېووت او ړوند كړی شو. پر ۴۸۸ م كال كواذ (قباد) د پيروز زوی چې د شهزادګۍ په دوره كښې له هپتاليانو سره يرغمل پاتې و، او له دوی سره يې دوستانه اړيكي لرل د ساسانيانو پر تخت كښېناست او د ايران دولت هپتالي

دولت ته خراج ورکاوه، لکه چې دولاش، کواذ او لومړي خسرو پر کشف شو طلايي سکو باندې په کوشاني هپتالي ليکدود ليکنې شته، نو د مارکوارټ په وينا (په ايران شهر ۶۲ کښې) دا سکې يوازې هپتاليانو ته د خراج ورکولو له پاره وهل کيدې.

د هپتاليانو اړيکي له کواذ سره دوستانه وو او آن هغه پېغله چې د هپتالي اخشوان له ملا او د پيروز د لور له نسه وه د کواذ ماندينه شوه، همدا چې د کواذ پاچهي د دښمنو له خوا وګواښېده، دی يې د مزدکي دين د منلو له کبله بېواکه کړ او پر ځای يې ورور زمياسپ په پاچهۍ ومانه، نو کواذ د افغانستان هپتالي دولت ته پناه راوړه، او پر ۴۹۹ م کال د هپتالي لښکر په مرسته بيرته د پارس پر تخت کښيناست.

لوی هپتالی اخشوان تر ۴۶۰م وروسته د خپلې پاچهۍ په نيمې پېړۍ کښې چې (۴۰) ايالته يې لرل او د پارس له ځمکو څخه نيولې تر ختن، چين او هند پورې خپره وه، لوېديځ خواته يې د ساسانيانو غښتلې پاچهي تر لاس لاندې کړه او ختيځ پلوته يې د هند ګوپتايان پر سر ټکولي وو، ساساني پاچهان بلاش، کواذ او نور يې د ځان تابع کړی او خراج يې ځنې اخيست. تر اخشوان وروسته هپتالی مشهور پاچا توره منه Turamana نومېد (توره من په پښتو د توري او من د کلمو څخه جوړ شوی چې توره د شمشير په مانا او من د فاعليت توری دی - تورمن يعنی شمشيري) چې د هند نيولو هڅه يې وکړه؛ د هند ګوپتا دولت يې ورېږداوه او خپل هندی پايتخت يې په سکله Sakala (د پنجاب په اوسني سيالکوټ) کښې وټاکه.

په هند کښې دوو ډبرليکونه د دغه هپتالي (زاولي) توره من نوم ياد کړی، يو يې په سکهر او بل يې په کور کښې، چې "مهاراجه توره منه ساه جاوله" يعنې: "توره من شاه زاولي پاچا" يې بللی دی. له دغه ډبرليك څخه



څرګندېږي چې د (۵۰۰م) پر شاوخوا د توره من د پاچهۍ په لومړيو کلو کښې د ده واکمني پر هند خپره شوې ده.

د توره من مړينه د ۵۲۰ م په شاو خوا کښې اټکل شوې چې تر ده وروسته يې زوی ميهيره کوله Mihirakula د زابلي هپتاليانو د شهنشاهۍ پر تخت کښيناست او د ده د پاچهی په پېنځلسم کال (د ۵۱۷ م په شاوخوا کښې) د ده نوم د هند د ګواليا په ډبرليك کښې ياد شوی دی، ده خپل فتوحات د هند تر منځه رسولي او نوم يې سوچه پښتو دی: مير (لمر) - کول - (کهول) کورنۍ يعنې د لمر له کهاله، چې د بدخشان په يوه ليکلې دري تذکره کښې يې نوم په دري مهر پور ترجمه شوی دی، ده د هند سيمه ييز شهزادګان او د ګوپتا کورنۍ پايخوړ د ځان تابع او باج يې ځنې اخيست او کشمير يې هم ونيو. دی هغه پاچا دی چې د کاسماس Cosmas په کتاب کښې (د ۵۴۷ شاوخوا) د ګولاس Golloss په نامه ياد شو دی چې لښکرو يې له دوو زرو جګړنو پيلانو سره پر هند يرغل کړی او بلخ، باميان او باد غيس يې پوځي مرکزونه وو.

د ميهيره کوله پاچهي د(۵۴۲ م) تر شا وخوا پورې له ويرجنو جګړو او وينو بهېدو سره دوام درلود، د هندي او چيني بودايانو او د بيزانتي راهب په آثارو کښې چې هغه مهال يې شمالی هند ليدلي و، دده، د دهشت او وينو بهولو يادونه شوې، تر دې چې د هند شهزادګانو لکه بهانه ګوپتا د بنګال له سيمه يز امير "د ګو په راجه" او نورو اميرانو سره لاس يو او پر (۵۱۰م) کال يې په يوه سخته جګړه کښې "ميهيره کوله" مات کړ او د کشمير خواته يې وشاړه تر هغه وروسته د ۵۲۸م په شاوخوا کښې د مرکزي هند راجه "واسو د هارمن" د نورو راجګانو په ملاتړ هپتالی لښکر له هنده

وویست "مهیره کوله" د(۵۴۲) کال یاد (۵۵۰) کال پر شاوخوا مړ شو خو نکلونه یې تر ډېرې زمانې پورې په کشمیر کښې پاتې وو.

په پېښور موزیم کښې درې هپتالي ډبرلیکونه شته چې د وزیرستان په توچي کښې میندل شوي، پر دغه ډبرلیکونو په یوناني او منګولي لیك دود لیك شوی، خو تر اوسه نه دی لوستل شوی.

د پېښور موزیم ۴۱ مه نومره ډبرلیك سربېره پر یوناني او منګولي لیك، په کوفي لیك د الله او محمد کلمې هم لري؛ همدارنګه دوه هپتالي ډبرلیکونه د کندهار د شمال د روزګان په شالي دره کښې په لویو لویو ډبرو لیدل کېږي چې په یوه ډبره په یوناني لیك د "بګوس شاه زاول مهرزی" یعنې "زاول مهرزی لوی پاچا" لیکل شوی دی، دا پاچا هم باید همدا میهیره کوله = مهرزی = مهرپور وګڼو، د ډبرلیك الفاظ دري او پښتو ریښې لري.

د میهیره تر مړینې وروسته هپتالي دولت کمزوری شو او د "خسروانو - شېروان" (۵۳۱ - ۵۷۹م) پر مهال ساساني لښکرو له لوېدیځ خوا او تورکي قبیلو له شمال پلوه پر هپتالیانو یرغل وکړ او په هغه جګړه کښې چې دغو ملګریو ځواکو په سغد کښې له هپتالیانو سره وکړه پر ۵٦۸م کال یې دوی له پښو وغورځول. فردوسي هم په شاهنامه کښې د هپتال د ماتې یادونه کړې چې موخه یې همدا هپتالیان دي. دا مهال هپتالي دولت رسماً له منځه لاړ او په افغانستان کښې د کوشاني، هپتالي او ترکي کورنیو سیمه ییز امارتونه تراسلامي دور پورې پاتې شول، چې وروسته په وښوول شي.

د هپتالیانو د ژبې او فرهنګ آثار په افغاني ژبو (پښتو-دري) او نورو کښې پاتې دي چې یوه نښه یې د {"خان"} لقب تر اوسه پورې د هر افغان له نامه سره تړلی ښکاري. په هند کښې هم هر افغان په دغه نامه



یادېږي او تور خان او مهر ګل هم په پښتو کښې ډېر مروج نومونه دي. همدارنګه د اولس (ملت)، جرګه (د شورا مجلس)، یرغل (ایلغار) لغتونه په پښتو او دري کښې او د سهاك (ساکه)، خلجي (غلجي) او ابدالي (هپتالي)، کشاڼي (کوشاني) او میروس (مهرویسه = مهره کوله - د لمر له کهاله) او نور نومونه په افغانستان کښې د ساکیانو، کوشانیانانو او هپتالیانو له مهاله را پاتې دي.

داسې ښکاري چې هپتالیان بودایان نه وو او د خپلو فتوحاتو په وخت کښې یې ډېر بودایي معبدونه وران کړل او د هغه دین پیروان یې ووژل.

هغه وخت چې هیون تسنګ پر ۹هـ کال افغانستان ته راغی، د ګندهاره په ولایت کښې یې ډېر خلك او شهزادګان ولیدل چې د خپلو معبدو په ترمیم اخته وو، چې دا بودایي معبدونه د دد تر راتګ دمخه وران شوي وو، همدا چې پر (۵۲۰م) سانګ - یون چیني ګرځندوی ماوراء النهرته ورسېد، هلته یې ولیدل چې هپتالي پاچا د کراستی تر کېږدۍ لاندې د سرو زرو پر تخت ناست او له خپلو ځلوېښتو هېوادو راوړلی شوي سوغاتونه یې منل، د هندوکوش په جنوب کښې د بودا د دین دښمن او ورانوونکی همدا "مهره کوله" و.

د هپتالیانو پر سکو چې له هډې - کابل غوربند او نورو ځایو څخه موندل شوي د دوی د پاچهانو څېرې له جګوپوزو، غاړګیو او د مرغلرو د غوږوالیو او تاجو سره ښکاري چې د کوچیانو ښو ته ورته دي او هم یوناني، پهلوي، سنسکریت لیکنې ورباندې شته، د سکې پر بل مخ د اورتون شکل له دوو غشیو لرونکیو ساتندویانو سره لیدل کېږي، له دې څخه په خپله ځرګندېږي چې دوی اتشکدې او رڼاته درناوی درلود، او څنګه چې ددغه مهال د سوریا (لمر) د معابدو آثار د خیر خانې په کوتل کښې هم موندل

شوي دي او د زور (سور) او زون لوی معبد د هلمند ها خواته په زمینداو رکښې د اسلامي فتوحاتو تر عصره پورې هم و، نو ویل کېدای شي چې هپتالیانو د اور او لمر رڼا نمانځله او بودایت یې له منځه وړی.

(وګورئ ۱۱ مه نومره عکس)

# افغانستان د اسلام د پیدايښت په وخت کښې

د میلادي اوومې پېړۍ په لومړۍ نیمايي کښې چې د اسلام لمر د بطحا له خنډې څخه راخوت، د افغانستان هېواد د محلي حکمرانانو تر اداري او د ختیز او لوېدیز ادیانو تر اغېزې لاندې و. د هېواد لوېدیزه سیمه سیستان، هرات او د هغه شاوخوا د ساسانیانو د دورې تر سیاسي، ادبي او دیني نفوذ لاندې وه، چې ژبه یې پهلوي او دین یې زردشتي و. خو په منځنۍ غرېزه سیمه، زابلستان او د کابل سیند د ناوې په ګندهارا، دارغنداو ترنك په ناوو کښې د هندوکوش د غرو تر لمنو، د هغه شمال ته او د سند تر غاړو پورې د کوشانیانو او یفتلیانو د پایڅوړ د داخلي حکمرانانو کورنیو او د دغه هېواد نوروَ خلکو حکومت کاوه، چې بودایي او برهمني دینونه یې لرل، د دوی ثقافت، دین او ائین ښځي محلي بڼه موندلې وه، داسې ښکاري چې د میلادي پېړیو له پیله په دغه هېواد کښې د عقیدې او نمانځنې خپلواکي وه، هرې خواته د راز راز دیانتو معبدونه ودان وو، او په میلادي لومړنیو پینځو پېړیو کښې د ګریکو بودیك صنعت، مدنیت، ګډ تمدن او ادیان د خپل تقاطع او نښتون په ځای کښې یعنې د ټکسیلا او د هلمند د ناوې د سیمو تر منځ او شمالاً تر بلخ او تخارستان پورې موجود وو، د

افغانستان خلکو د دغه ګډ مدنیت په موندلو کښې لاس درلود، تر اوومې پېړۍ او د اسلام د دین تر راتلو پورې په هېواد کښې بودايي - زردشتي - لمر پرستي - شیوایي - مسیحي - نسطوري دیانتو او د ځینو ارباب انو اعواو محلي معبودانو نمانځلو دود لاره.

د هغه مهال لیکدودونه خر و شتهی - پهلوی - سره دا ناګري سنسکریټ، یوناني منګولي وو، چې د دغه هر یوه لیکدود نخښې له ځمکې څخه موندل شوې دي.

د همدغه عصر له ژبو څخه دری (تخاری) پښتو، پهلوی او پراکریت ژبې وې چې د هغوی د تاریخي روایاتو او آثارو د کتنې له مخې یې په افغانسان کښې څرك موندلای شو.

چیني او بودايي ګرځندوی هیون تسنګ چې پر ۹هـ کال افغانستان ته راغلی و، د دغه هېواد د ختیز او شمالي سیمو د خلکو ټولنیز سیاسي او فکري اوضاع په تفصیل سره لیکي، او وایي: په دې سیمو کښې د بودايي لوی او کوچني مذهب دواړو پیروان خورا ډېر وو او په زیاتو ښارو کښې د دغو دواړو مذهبو معبدونه ودان وو، هرې سیمې یو حکمران درلود، چې د مرکزیت د نشتوالي له امله او د ملوك الطوايفی د اغېزې له کبله ددې سیمو ټولنیز، سیاسي، اقتصادي او فکري اوضاع دومره ښه نه وه، اوپه دیني چارو کښې او هام او خرافات ګډ شوي وو.

هیون تسنګ د پېښور، هډې، لغمان، کاپیسا، بامیان، غزني، بلخ او د هندوکوش د نورو شمالي ښارو د بودايي معبدونو په تفصیل سره نوم اخلي او چې پر ۲۴ هـ کال چې له هنده بېرته را ګرځېد د کاپیسا د جنوب په ۲۳ میلی کښې یې د ارونا په غره کښې د اسماني روح (سونا) معبد لیدلی او وایي چې دا معبد د زابلستان سونا ګیر ته ورلږ شوی و او دا همغه د



زمینداور د زرو (زون) غره بودتون (پرستشګاه) وه، چې د البلاذري په وینا پر ۳۰ هـ کال د اسلامي فاتح عبدالرحمن بن سمره له خوا تسخیر او د سرو زرو یاقوت سترګی بت یې مات کړی شو.

د دې دورې بل مشهور بودتون د کابل شاهي بهار بودتون و، چې هیون تسنګ د کابل د شمال د یو څو شاهي معبدو یادونه کړې ده او د کابلستان یو لوی بودتون غالباً د هندوکوش د اوسني شیبر په شاوخوا کښې و (شیبر هم د شابهار لنډیځ دی) چې عرب مورخ یعقوبي هغه د غوربند او د بامیان د سرخ بد (سارخود) په سلسله کښې یاد کړی او وایي چې پر ۱۷۶هـ کال د فضل بن یحیی برمکي له خوا تسخیر او بت یې وسیزل شو.

د دې دورې د معلوماتو مهمه سرچینه د چیني بودايي زایرانو لیکنې دي چې د بودايي بودتونو (معابدو) د زیارت له پاره راتلل، او له هغې جملې څخه پر ۳۹۹ م کال شي فاهیان، پر ۵۱۷ - ۵۱۸م سونګ ین، (له ۶۲۹ څخه تر ۶۴۵ هیون تسنګ پر ٦٦۰م وانك هیون - تسو - سفیر، پر ٦٦۴م هیون تچاو او پر ۷۵۱ م وو کنګ د افغانسان ځمکه لیدلې ده او ښه معلومات یې را ټول کړي او لیکلي دي.

هیون تسنګ چې د هجري لومړنۍ پېړۍ په لومړۍ نیمایي کښې د افغانستان د ښارو اوضاع په خیر او بصیرت سره لیکلې، په هر ولایت کښې یې له ملوك طوایف څخه د یوه پاچا اود کشتریانو له طبقې څخه یو لښکر ښوولی دی، تر هغه وروسته د عربو مورخان او جغرافیا لیکونکي هم وایي چې په هره سیمه کښې په بیل نامه حکمرانان وو، چې له هغې جملې څخه: سجستان شاه، مروشاه - ققص شاه، مکران شاه - کابلان شاه - قیقان شاه - داوران شاه - قشمیران شاه نخشبان شاه - کنار نشاپور - مرو ماهویه - د سرخس راذویه - دا بیور دبهمنه - د نسا ابراز - د غرجستان برزاینده - د

مرورو د کیلان - د زابلستان فیروز - ترمز شاه - شیرباميان - د سغد فیروز د فرغاني اخشید، دیو شار ګوزګان خذاه، ختلان شاه یاشیرختلان، بخارا خداه د سمرقند طرخال، د سیستان اور خج او د اور رتبیل - د هرات او پوشنګ او د باغیس برازان - دماوراء النهر کوشانشاه - د غرجستان شار د بادغیس او تخار نیزك - د تخاریبغو - د سور او غور جهان پهلوان - د غز يې او ګردیز لویك دی - چې فردوسي د مهراب کابلي او سام او زال زابلی د کهاله خواږه نکلونه لري.

د غزني لویکان لرغونی کهول و، چې د یوه نیکه نوم یې د بغلان په ډبرینه لیکنه کښې لویك بوسر راغلی دی او د ۱٦۰م په شاوخوا کښې د کوشانیانو فریستار آب (د اوبو رسولو وزیر) و، د دغه کهاله پایځوړ په ګردیز او د غزني په دربار کښې د یعقوب لیث او سلطان مسعود تر وختو موجود و.(۱)

بل مشهور کهول د زابلی رتبیلانو دی، چې له کابل شاهانو سره یې خپلوي او خپښي درلوده او پر زابل يې له غزني څخه تر سیستانه حکومت کاوه، د بیهقي په وینا شهرستان رتبیل د ارغنداو پر غاړه په کوهك کښې و چې د ډبرلیکونو عربو هندی او چیني مورخانو د یادونې له مخې د دغه کهاله ډېر شاهان پیژندلی شوي دي، دوی افغانستان ته د اسلامي لښکرو د راتګ پر وخت له اعرابو سره جګړې او مقاومتونه وکړل، څو چې د ۲۵۸هـ په شاوخوا کښې د یعقوب لیث صفاري له خوا له منځه ولاړل.

بل غښتلی او نامتو کهول د کابل شاهانو، چې پر لومړۍ اسلامي

(*) د تفصیل لپاره وګورئ "افغانستان بعد از اسلام" ۳۱/۱ او "لویکان غزنه"، کابل، ۱۳۴۸هـ.ل.



پیړۍ او د عربو د فتوحاتو په وخت کښې یې له کابله تر پنجابه حکم کاوه، د البیروني په وینا د برهتګین له اولادې څخه دی چې د دغه کهاله د وروستني پاچا لکتورمان د پاچهی په وخت کښې د هغه وزیر کلرد تاج او تخت یې ونیو. سامند، کملو بهیم، جیپال، انندپال، او ترو جنپال د ده له اولادې څخه برهمني پاچهان دي.

د البیروني پر روایت سربېره د کابلشاهانو ځینې نومونه د دوی له هغه سکو څخه چې لاس ته راغلي څرګندیږي لکه خودویه که - سپاله پتي پدمه - ونکه دیوا.

د تاریخ سیستان مؤلف، د ۳٦ هـ په شاوخوا کښې د کابلشاهانو د دوو نورو پاچهانو نومونه یادوي چې لوی کابلشاه د کوچني کابلشاه تر ماتې وروسته د عبدالرحمن ابن سمره په مقابل کښې مقاومت کاوه او ۲۸ زره وسله وال او پیل لرونکی لښکر یې درلود.

عربي مورخ الیعقوبي یو کابلشاه د "خنجل" په نامه یادوي، چې د ۱٦۴هـ په شاوخوا کښې د المهدی بن منصور عباسي همهالی و.

دا کابلشاهان د کابل تر پرېښودو وروسته د اسلامي فتوحاتو په اثر د پېښور - ویهند - ټکسیلا او پنجاب خواته پرشا شول، سلطان محمود دوی د سند د سیند له غاړې ویهند څخه ها خوا وشړل او د (۲۹۰ هـ) په شاو خوا کښې د کشمیر پاچا "ګوپاله ورمن" هم د سوات د پېښور د شمال مردان مځکې له دوی څخه ونیولې، د دوی پایځوړ تر (۴۹۰ هـ) پورې په کشمیر کښې د شاهي پوتره (شهزاده) په نامه اوسېدل(۱).

(۱) راجه ترنګیني ۸ - ۳۳۳۰. او د تفصیل لپاره "افغانستان بعد از اسلام" وګورئ.

په همدې دوره کښې د افغاني محلي اميرانو يوه کورنۍ د نيکی = ملکانپکي شاهانو په نامه هم د هغو سکو له مخې پېژندلې شوې چې له غزني څخه لاس ته راغلي او د يفتلي او کوشاني محلي اميرانو پايڅوړ به وي.

د هندوکوش په شمال کښې هم ځينې پاچهان د تګينانو په نامه وو، چې نيزك، شاد او جبغويه له تخارستانه تر بادغيسه حکومت کاوه، عربي مؤرخان پر (۹۱ هـ) کال د عربي فاتح قتيبه پر وړاندې د نيزك کلك مقاومت په تفصيل سره راوړي.

د باميان شيران هم د دغه عصر واکمنه کورنۍ وه، چې تر ۹هـ وروسته د هيون تسنګ د سفر په وختو کښې او بيا وروسته پر ۱۶۴هـ کال يې هم واکمني درلوده او د منصور عباسي (۱۳٦ - ۱۵۸هـ) په وخت کښې لومړنی شېر باميان مسلمان شوی و چې د ده زوی حسن د ۱۷٦هـ په شاوخوا کښې ژوندی و.

په غور کښې هم د سوريانو کهاله چې د هغې سيمې ځايي خلك وو، حکومت کاوه، چې سوری ماهوي د (۳۵هـ) په شاوخوا کښې د حضرت علی معاصر و او د (۳٦هـ) په شاوخوا کښې شنسب د خرنګ زوی، د (۱۳۰هـ) په شاوخوا کښې امير پولاد، (له ۱۳۹ څخه تر ۱۵۴هـ) پورې جهان پهلوان امير کروړ د امير پولاد زوی، او د (۱٦۰هـ) په شاوخوا کښې امير ناصر د امير کروړ زوی، د (۱۷۰ هـ) په شاوخوا کښې امير بنجي د نهاران زوی، د (۲۵۳هـ) په شاوخوا کښې، امير سوری د محمد زوی د دغه کهاله له قدماوو څخه بلل شوي دي (*) چې د غور پاچهانو کورنۍ هم دغه کهاله ته منسوب ده.

*: د دې کورنۍ تفصيل په "افغانستان بعد از اسلام" کښې تر ۱۰۹/۱ مخ وروسته وګورئ.



په دې توګه د افغانسان خلکو د اسلام د پيدايښت په وخت کښې د دغو پاچهانو تر حکمرانۍ لاندې د ګډو اديانو - افکارو او فرهنګو تر منځ ګډوډ ژوند کاوه، که څه هم د دوی ديني ژوندون وروست او په چټياتو ککړ، خو له خپلې ملي بنې، آزادۍ او فرهنګ سره يې مينه درلوده.

# د افغاني فرهنګ تاريخي بنسټونه
# تر اسلام دمخه او وروسته

دا سرليك د تاريخ له مخې خوندور تحليل او په زړه پورې شرح لري.
په دې ماناچې موږ ټول هغه فکري او مدني خو ځښتونه چې د تاريخ په لمنه کښې د افغانستان په خاوره کښې راغلي دي، "افغاني فرهنګ" بولو، دا فرهنګ د افغانستان د تاريخ له لرغونيو وختو يعنې د ۱۴۰۰ ق، م په شاوخوا کښې له "ويدي" دورې څخه پيل شوی او بيا تر هغه وروسته د" اوېستا" په دوره کښې يعنې د ۱۲۰۰ ق،م په شاوخوا کښې ادامه لري، په دې دوره کښې آريايي خلك په بلخ کښې د بدوي او کوچيتوب له ژونده ښاري ژوند او مدنيت‌ته رسېږي. زره تشتره (زردښت) په همدغه هېواد کښې د مزديسناد دين او د ژوند د دريو بنسټو: "ښه انګېرل، ښه کول، ښه ويل" په تبليغ خوله پرانېزي او د پيشداديانو او کيان شاهي کورنۍ د انساني مدنيت په زانګو "ښکلي بخدي" کښې د خپل سلطنت او شاهی برم (فر) بنسټ ږدي.

تر دې وروسته زموږ د هېواد په لويديزو سيمو کښې د آريايي خلکو هخامنشيانو، اشکانيانو او ساسانيانو مدنيتونه منځته راځي او خپل ځانګړي او فرهنګي بنسټونه په دې سيمو کښې خپروي څو چې د هخامنشي



دورې په پای کښې يوناني اسکندر له ۳۳۱ څخه تر ۳۲۳ ق،م پورې د ايران له لارې پر افغانستان يرغل کوي او دا فتح د يوناني ژبې، ادارې، سياست، هنر، ليکدود او نورو فرهنګي مظاهرو اغېزه افغانستان ته راولي، پر ۲۵۰ق،م کال په باختر کښې د يوناني باختري سلطنت بنسټ ږدي چې د ميلادي عصر تر سره يې دوام وکړ او د افغانستان د يوناني او باختر ځانګړي فرهنګ او مدنيت په جوړښت کښې يې چې لرغونې ويدي او اوېستايي ريښې يې درلودې څرګنده اغېزه وکړه.

د دويمه ميلادي پېړۍ په لومړيو کښې - دافغانستان کوشاني لوی پاچا کنشکا د لويو کوشانيانو د سلسلې بنسټ کښېښوو او د بودايي دين په منلو، خپرولو او تبليغو لوېې د افغانستان مدنيت او فرهنګ ته يوه ځانګړې ښه او مرتبه ورکړه.

د کنيشکا پايتخت په دوبې کښې د کابل په شمال کښې کاپيسا، او په ژمي کښې پېښور و، دد د مهايانه بودايي لوی مذهب په ټول افغانستان، د آموپه شمالي سيمو او هند کښې رواج کړ او لويه کوشاني شهنشاهي يې جوړه کړه.

د کوشانيانو په دوره کښې چې تر څلورمې ميلادي پېړۍ پورې يې دوام درلود د افغانستان د داخلي مدنيت او فرهنګ ځانګړې ښه له يوې خوا د زردښتی له پخوانيو هېوادنيو عناصرو څخه، او له بلې خوا د هند له بودايي آثارو او يونانی مواريثو څخه جوړه شوې وه.

له هغو اسنادو څخه چې په دغو وروستيو وختو کښې د بغلان د سره کوتل د کوشاني معبد له کيندلو څخه لاس ته راغلي داسې څرګنديږي چې کوشانيانو ددغه هېواد د خاصو افکارو او فرهنګ په پيدايښت کښې چې وروسته ورته د "ګريکوبو ديك" په نامه يوه خاصه افغاني دوره ويل

کېدای شي ځرګندې کار نامې سرته رسولې دي.

فرانسوي لرغون پېژاند او څېړونکي "موسيوفوشه" کوشاني صنعت د کوشاني دورې له ابتکاراتو څخه بللی او وايي: د دې دورې د سټوپو ډول د آشوکا د زماني له ودانيو څخه په ډېرې آسانۍ بېلېدای شي. که وغواړو چې دا نوی سبك د اروپا له مذهبي ودانيو سره بيان کړو بنايي وواېو چې د آشوکا سبك (په فرانسه کښې له ۱۰ پېړۍ څخه تر ۱۲ پورې) د سټوپو رومي سبك او د کنيشکا سبك د ګوتيك سبك دی چې په فرانسه کښې له ۱۲ پېړۍ څخه تر ۱۵ ميلادي پېړۍ پورې موجودو.

د آشوکا سټوپې هېڅکله د ايران فلات ته نه دي راغلي، خو د کنيشکا او د هغه د ځای ناستو پاچهانو سټوپې په ډېرې آسانۍ سره هند ته لار موندلې ده. آن د کوشان امپراتور د نوي پايتخت پورو شاپوره (اوسني پېښور) جنوب ختيځ خواته خورا لوی بودتون (معبد) ودان کړی دی.

دغه بودتون ځو واره اور اخيستی و او اوس يوه کنډواله ده، خو موږ د چيني مسافرانو د يادښتونو د لوستلو په نتيجه کښې وکړای شول چې اصلي خطونه يې وپېژنو، چې د دې کنډوالې په آثارو کښې د معجزې په توګه د بودايي له سپېڅليو شيانو څخه يو شی چې د کنيشکا تصوير او لاسليك ورباندې شته راپاتې او موندل شوی دی.

آلماني ډاکټر هرمان ګويتز چې د هند په اړه د څېړنو استاد دی د کوشاني دورې د هنر په باب وايي: يوناني هنر د هندي هنرو د ډول په بدلون پيل وکړ او د ګندهارا بنه يې وموندله، خو ډېر څېړونکي په دې عقيده دي چې نوموړی سبك بايد د يوناني او بودايي طرز پراخوالي ته لږ منسوب وبلل شيء بلکه دا د آريانا "ختيځ افغانستان" د هغه طرز پراختيا ده چې د جنوب ختيځ د سکايانو او کوشان د قبيلو تر واکمنۍ لاندې خپور شوی دی، په دې



ډول په کشمير کې د ګويتا تر دورې (۳ - ۴ ميلادي پېړۍ) پورې لکه چې د هروان د بودايي بودتونو (معبدو) له کنډوالو څخه ځرګندېږي يو بېخي سوچه هنر پرځای پاتې شو او د دغو خلکو يرغل د يونان او بلخ او د يونان او هند دولتونه له منځه يوړل او هند ته يې تازه عناصر راوستل چې نور يې نو په لويديځ ايران او د هخامنشي په نفوذ اړه نه درلوده او د ايران د فلات په شمال پورې تړلي وو. (ميراث ايران ۱۵۳)

د کوشاني دورې کلتور، تمدن او هنر د خپل بشپړتابه او انحطاط مرتبې تېرې کړې او د اسلامي دورې تر پيل او د عربو د لښکرو تر نفوذ پورې راورسېدل چې بيا يې په اسلامي لومړۍ پېړۍ او د ٦۵۰م په شاوخوا کښې خپل ځای يو بل ګډ مدنيت او فرهنګ ته پرېښوو، چې هغه ته د افغانستان د لومړۍ اسلامي دورې فرهنګ وايو.

اسلامي او عربي عناصر چې په تر اسلام دمخه پخواني مدنيت او فرهنګ کښې ورګډ شول، هغو ته يې بېخي يوه نوې تازه بڼه ورکړه چې وروسته بيا دوی د همدغه خراسان او افغانستان له خاورې د شمال او ختيځ خواته تر چين او هند پورې خپاره شول.

په همدې سبب د افغانستان خاوره د جغرافيايي اقليم او وضع له مخې بايد په پخوانيو پېړيو او وختو کښې د ګډو شويو فرهنګو د پيدايښت ځای وبلل شي او له همدې اړخه پروفيسور تاينبي د تاريخ انګريز فيلسوف په خپل نوي کتاب کښې چې "د اکسوس او جمنا تر منځ" نومېږي دې نتيجې ته رسېدلی چې د افغانستان خاوره يو Round - About يعنې د فرهنګو د انشعاب ټکی او د خلا مرکز او څلور لارې و، چې د څو زرو کالو په تېرېدو يې چې څه په خپله درلوده او څه چې له باندې ورته رارسېدلي و، خپل شاوخوا هند، ايران، ماوراءالنهر او مرکزي آسيا ته خپاره کړي دي.

د لومړۍ اسلامي پيړۍ پر لومړۍ څلورمه (د ۲۴هـ) په شاوخوا کښې د عربي برياليو لښکرو فتوحات د خراسان او مرو تر منځ او له سيستانه د ارغنداو تر ناوې پورې رارسيدلي وو او همدا وخت دی چې افغانستان په تېره بيا په جنوبي جبهه کښې د اسلامي برياليو عسکرو د عربي نوي دين، افکارو، ثقافت او ژبې د تېرېدو لار وګرځېده او دا ټول فرهنګي مهم توکي په افغانستان کښې دوې پيړۍ له پخوانۍ تهذيبي او ثقافتي بڼې سره ګډ شول او بيا په ګډه د "سند" د مهران تر څنډو پورې پر مخ ولاړل، دا مطلب له هغې ليکنې څخه زباتېږي چې په عربي او سنسکريټ ژبو پر يوه ډبره ليکل شوي او دا ډبره د شمالي وزيرستان په توچي کښې لاس ته راغلې چې د ليکنې نېټه يې (۲۴۳هـ ۸۵۷م) د جمادي الاولی مياشت ده.

توچي ناوه له غزني او ګرديز څخه د هند خواته د فاتحانو او د تجارتي کاروانو د تېرېدو لار وه او ښکاره ده چې اسلامي ژبه او ثقافت د (۲۰۰هـ ۸۱۵م) په شاوخوا کښې هغه ځای ته رسېدلې و.

اسلامي فرهنګ ځانګړي عربي عناصر درلودل چې د خلفاء راشدينو او امويانو په وختو کښې پر همهغو خالصو عربي بنسټونو باندې ولاړو او مهم اجزاء يې داسې سوچه عربي دودونه او د قران او د اسلام د حضرت پيغمبر ښوونې وې چې توحيد ښه اخلاق د افرادو او ټولنې ټولنيز فرايض يې ځرګندول.

دربيم هغه نوي عناصر چې مسلمانانو د مصر، روم، پارس او خراسان څخه د لښکر کښيو، سوداګريو، ادبي او فرهنګي اړيکو په ترڅ کښې اخيستي وو او په تېره بيا تر ۱۳۲هـ کال وروسته چې د امويانو د واک کمبله ټوله شوه، خراسانيانو په بغداد کښې د عباس کورنۍ خلافت جوړ کړ چې له دغه انقلابي حرکت سره اسلامي فرهنګ ځانته نوې ښه ومونده او د



عباسيانو د دورې په مدنيت او فرهنګ کښې ډېر خراساني عناصر ننوتل ډېر ژر يې په ډېر ځواك د خراسان ټولو فرهنګي، فکري او عقلي بنسټونو ته په عربي ثقافت کښې ځای ورکړ.

دا وخت په افغانستان کښې يو ځانګړی اسلامي افغاني فرهنګ رامنځته شو، يعنې تر اسلام دمخه دورو، د فرهنګ پر پخوانيو بنسټونو اوس يوه نوې مبدا زياته شوه او هغه د قرآن او اسلام اغېزه وه چې د افغانستان له هېواده د مدنيتونو د يوې لارې په توګه د هند، ماوراءالنهر او چين خواته هم تېره شوه.

اوس خراساني اسلامي فرهنګ يوه بيله ښه موندلې وه په دې مانا چې خراسانيانو له خپلو فرهنګي پخوانيو دودونو سره سره د اسلامي مدنيت بنسټونه هم منلي وو، دغو خراسانيانو د خراسان او د عباسي خلافت سياسي، ټولنيز، اداري او علمي مرکزو په تيره بيا بغداد ته مخه وکړه او په ټولو فرهنګي برخو کښې يې ښه څرګند فعاليت وکړ، د بلخ د برمکيانو نامتو کهول چې د خراساني او افغاني فرهنګ په زانګو کښې روزل شوی و، په عباسي هېواد کښې يې د اداري علم او فرهنګ واګې په لاس کښې ونيول. ددغو خلکو په زيار اسلامي نقلي او عقلي علومو وده وکړه. د خراسان مشهور ښارونه له نيشاپور او مرو څخه نيولې تر هرات زرنج، بلخ، بست، بغشور او نورو پورې د اسلامي علومو افکارو او فرهنګ د روزنې ځايونه وګرځېده، ډېر خراساني موالي عربي کورنيوته ننوتل او خپل افکار او ثقافتي روايتونه يې د عربو دنيا ته ولېږدول او د خراساني او عجمي فرهنګ اغېزه د بغداد د عباسيانو په دربار او د عباسي ارت هېواد په نورو ښارو کښې تردې درجې وه چې ځينو خلفاوو خراساني ښځې په نکاح کړې او د بغداد څو تنو غښتليو خلفاوو، ميندې له همدې خلکو څخه وې.

اسلامي خراساني فرهنګ چې په همدغه افغاني ښارو او خراسان کښې روزلی شوی و دومره وده ومونده او دومره لوړ شو چې حتی عربي ژبيو شاعرانو هم خراساني مضامين او افکار او کلمات خپل ژبې ته ورننه ايستل. څنګه چې خراسان د منځنۍ آسيا پر څلور لارې پروت و، نو له لوديځه، ختيځ ته او له ختيځه لوېديځ ته د افکارو د انتقال ځای وګرځېد. مثلاً ابن نديم د سمنيه (بودائيانو) او د هغو لارښود بوذاسف د حالاتو د بيانولو پر مهال له يوه کتابه نقل کوي چې هغه يوه خراساني سړي ليکلی و او له دې څخه هم ښکاري چې خراسانيان د افغانستان او د هغه د ګاونډيو خاورو خلک عربو ته د هندي افکارو د وړولو وسيله وه. ځکه نو ښايي په لنډه توګه وويل شي چې زموږ په دغه هېواد کښې تل افغاني فرهنګ موجود و، که څه هم د زمانې له تېرېدو سره يې بڼې او صبغې بدلون کړی دی خو ددې ګذرګاه افکارو اندېښنو او مدنيت تل خپل افغاني هويت او تشخص ساتلی دی (۳٦مه نومره: وګورئ د دغه مخ اړونده نقشې).

اخځليکونه:

افغانستان بعد از اسلام لمړی توک، آريانا انتيکوا، تاريخ افغانستان لومړی او دويم توک، تاريخ افغانستان (د سرپرسی سايکس)، پټانان (د اولف کيرو)، خروشتي ډبرليکونه (د ستين کونو)، مادر زبان دري.

د اخځونو د بشپړې پېژندنې لپاره د کتاب په پای کښې اخځ لړ وګورئ.

# دويمه برخه

## افغانستان ته د اسلام راتلګ او د خلفاوو دوره

د اسلام له پيدايښت څخه لا د يوې پېړۍ څلورمه برخه نه وه تېره شوې او ستر خليفه حضرت عمرؓ د اسلامي خلافت پر مسند ناست و، چې د عربو زړه ور او جهان نيوونکي لښکر د پارس د ساسانيانو زړه شهنشاهي له پښو وغورځوله او ساساني وروستني پاچا درېيم يزدګرد د جلولا تر جګړې (۱٦هـ کال) او د نهاوند تر جنګ (۲۰ هـ کال) وروسته خراسان ته راغی او د ماوراءالنهر له خاقان څخه يې مرسته وغوښتله؛ خو څه لاس ته ورنه غلل.

د اسلام خليفه حضرت عمر، احنف د قيس زوی په يزدګرد پسې وګماره او احنف د خراسان ځمکه په روغه ونيوله. دا مهال د افغانستان د لوېديزو سيمو او د غور ساتندوی په مرو کښې ماهوي سوري و، چې د فردوسي او طبري په وينا د خراسان حکمران ګڼل کېده. د عربو حکمدار احنف چې په يزدګرد پسې و، يزدګرد په مرو کښې ماهوي سوري ته پناه يوړه ماهوي د ماورای آمويه له واکمنو سره ديزدګرد د اړيکو له ټينګيدو څخه ووېرېد او يزدګرد يې د يوه ژرندګرې په لاس وواژه (۳۱هـ = ٦۵۱م) او خپله واکمني يې د فردوسي په وينا تر بلخ، هرات او بخارا پورې پراخه کړه، د ده د لښکر سپه سالار کرسيون بخارا ونيو.

دا سوري کورنۍ د محلي اميرانو خورا نامتو کهول دی. خو احنف، ماهوي سوري هم له خراسان او مرو څخه د جيحون هغې خواته وشاړه او د ژوند تر پايه د مروالرود په څلور فرسنګۍ کښې يې د خلافت له خوا د خراسان پر يوه برخه حکومت کاوه، خو د ماهوي له ماتې سره د سوري اميرانو کهول له منځه لا نه ړو چې وروسته به يې مفصل ذکر راشي.

د جنوب له خوا هم د عربو برياليو لښکر د البلاذري په وينا د خراسان تر دروازو طبسين (د طبس تر کلا او د کرين تر کلا) پورې رسېدلی و، چې د افغانستان د اوسني ګرمسير په لويديځ برید پورې نښتی دی او د هغه لښکر مشر عبدالله د بديل خزاعی زوی و.

د فاروقي عهد په پای کښې (۲۲ - ۲۳ هـ کال) د عربو د لښکر يوې برخې د عبدالله بن عامر په مشرۍ د کرمان ترنيولو وروسته پرسجستان (سيستان) باندې هم يرغل وکړو، او د سيستان ساتندوی د زرنګ (معرب يې زرنج) په ښار کښې چې د سيستان مرکز و ځان کلا بند کړ، خو دا چې د اسلام لښکر د کندهار او هند (سند) تر شاوخوا پورې پرمخ ولاړ نو ځکه د زرنګ ساتندوی روغه وکړه او زرنګ د مسلمانانو لاس ته ورغی، او هغه لښکر چې له سيستانه ختيځ خواته پرمخ تللی و، د ارغنداو په ناوه کښې د رتبيل له لښکر سره (چې د مخه يې يادونه شوې ده) ونښت، او هغه يې وواژه، چې البلاذري يې د هېواد ارتوالی د "هياطله" په نامه تر هراته يادوي (۲۴ هـ - ٦۳۳ م).

❀❀❀❀❀

# د حضرت عثمان ﷺ خلافت

(۲۵ - ۳۵ هـ)

په عثماني وخت کښې تر (۲۵هـ) کال وروسته اسلامي فتوحات د افغانستان په خاوره کښې پر مخ ولاړل او د عربو د لښکر مشر عبدالله بن عامر تر کابله راورسېد، دا ښار يې کلابند او تر سختې جګړې وروسته يې ونيو، خو د کابل خلکو د عربو د لښکر تر راتګ وروسته بيا د خپلواکۍ بيرغ پورته کړ او تر نورو پينځو کالو پورې يې د محلي پاچهانو تر واکمنۍ لاندې خپلواک ژوند کاوه.

د حضرت عثمان له خوا احنف د قيس زوی په مرو کښې تر هراته، خبيب د قرة اليربوعي زوی په بلخ او تخارستان کښې او عبدالله د عمير ليثي زوی په سيستان کښې حکمرانان وو، چې په ټول افغانستان کښې د عربو د لښکرو پر خلاف بلوا پيل شوه، خو په کابل کښې د سيستان حکمران، ياغيان له منځه يوړل او کابل يې بيا ونيو، مجاشه د مسعود زوی چې د کرمان حکمدار و د قفص (د کوچ - کفچ او اوسنی کوچی) قبيلو او د افغانستان د جنوب د ګرمسير له بلوڅو سره ونښت او تر خونړيو جګړو وروسته يې هغه ايل کړل (د ۲۹هـ - ٦۴۹م شاوخوا) د شمال له خوا هم احنف د قيس زوی او د هغه ملګريو (تر ۳۲هـ - ٦۵۲م) کال پورې ټول بلخ او

تخارستان ترسمنگان پورې له یاغیانو پاك كړ او ډېره موده یې په بلخ، مروالرود، گوزگانان او تالقان (د افغانستان په شمالي ولایاتو) كښې جگړې وكړې او پر همدغه كال یې د مروالرود له محلي شهزاده بازان سره چې د دېرش زرېز لښكر په ملاتړ جنگېده، په قصر احنف كښې جگړه وكړه هغه یې له منځه یووړ، خالد د عبد الله زوی هم هرات، بادغیس، غور او خراسان ونیول او د سرخس سیمه بیز ساتندوی راذویه پناه وغوښته او د هرات او بادغیس او فوشنج له اسلامي حكمدار سره یې تر جزیې او یو ملیون درهمو منلو وروسته روغه وكړه. پر (۳۲هـ) كال هراتي قارن له څلوېښتو زروتنو سره د عربو پر خلاف پورته شو، خو دا سړی هم د نیشاپور د عربي حكمران عبدالله د خازم د زوی له خوا تر سختو جگړو وروسته وځپل شو.

د (۳۰هـ، ۶۵۰م) كال په شاوخوا كښې د خلیفه له خوا ربیعه د زیاد زوی سیستان ته راغی او د پهره (فهرج) زالق (جالق) تر نیولو وروسته تر هیلمند پورېوت او د زرنج درې میلی ته یې په (زوشت) كښې سخته جگړه وكړه او د سیستان ساتندوی یادهقان اپرویز (یاایران د رستم زوی) د روغې له لارې ور وړاندې شو، زرنج یې مسلمانانو ته وسپاره، خو ربیع پر مخ ولاړاو تر سنارود او قرینن پورې یې چې د رستم دآس اخور و، ونیول او همداسې تر خواش (خاشرود) او بست پورې ورسېد، مگر سیستانیان تر هغه وخته تابع وو، چې ربیعه هلته و او چې دوه كاله وروسته له هغه ځایه ووت، د سیستان خلك بیا وښورېدل او د ربیع نایب یې چې په زرنج كښې و له هغه ځایه وشاړه، ځكه نو د خلافت له خوا دا وار د پیغمبرﷺ له نامتو اصحابو څخه یو تن چې عبدالرحمن ؓ د سمره زوی نومېد حسن بصري او ډېرو فقهاو سره زرنج ته واستول شو، ده پر (۳۳ هـ ۶۵۳م) كال هغه ښار بند كړ او د



سره زرنج ته واستول شو، ده پر (۳۳ هـ ۶۵۳م) كال هغه ښار بند كړ او د هغه ځای ساتندوی اپرویز (ایران) اطاعت ته غاړه كښېښوه، دوه ملیونه درهمه او دوه زره نابالغه مریان یې ومنل، عبدالرحمن د اسلامي فقهاوو په مرسته د اسلام په خپرولو پیل وكړ، خو پر دغه وخت د حضرت عثمان د شهادت خبر سیستان ته ورسېد، نو عبدالرحمن له خپلې خوا امیر د احمر زوی په زرنج كښې پرېښوو او په خپله د بصرې خواته ولاړ، دا مهال د سیستان خلكو بیا د عبدالرحمن له غیابه گټه واخیسته او پر امیر یې بلوا وكړه، دی یې له هغه ځایه وشاړه او په دې توگه سیستانیانو بیا وكړای شو چې د عربي حاكمانو د اطاعت له كړۍ څخه خپلې غاړې وباسي.

ماهوي کوفې ته ولاړ او د اطاعت غاړه يې کېښېښووه، حضرت علي ده ته فرمان ورکړ چې: د خراسان بزګران او سالاران دې ده ته جزيه ورکړي. خو خراسانيانو بلوا وکړه، څو چې جعده د هبيره مخزومي زوی (چې مور يې هانی د ابو طالب لور وه) د دوی د خپلو له پاره راغی، مګر دغه سړي هم خراسان ونه نېولی شو.

# د علي‌رضي‌الله‌عنه خلافت

(۳۵ـ۴۰ هـ)

حضرت علي‌رضي‌الله‌عنه په خپل خلافت کښې عبدالرحمن د جروالطايي زوی د سيستان حاکم وټاکه او پر (۳٦هـ - ٦۵٦م) کال يې سيستان ته راواستاوه، دا سړی په يوه جګړه کښې چې د حسکه د عتاب زوی سره يې وکړه ووژل شو، عبدالله د عباس زوی چې د بصري والي و، څلور زريز لښکر د ربعي بن کاس په مشر تابه د ابن عتاب د سرکوبۍ له پاره راولېږه.

ربعي ابن عتاب يې وواژه او سيستان يې ونيو، د ثاغر بن دعور او حارث بن مره په مشرتابه تر قيقان (د بلوخو اوسنی کلات) پورې پرمخ ولاړ.

شلو زرو قيقانانو سخته جګړه وکړه او تر خونړيو جګړو او کلابنديو وروسته په داسې حال کښې چې په زرو تنه يې د مسلمانانو په لاس کښې بنديان وو، نور تيت او پرک شول (۳۸هـ - ٦۵۸م کال).

پر ۳٦م کال د عربو يو لښکر د عبدالرحمن بن سمره په مشرتابه د سيستان او ارغنداو د ناوې له لارې پرمخ ولاړ او کابل يې ونيو، په دې جګړه کښې په خپله کابلشاه ګډون درلود، خو په پای کښې يې د عربو لښکر ته ځان وسپاره.

همدا راز د حضرت علي‌رضي‌الله‌عنه د خلافت په وخت کښې د مرو ساتندوی

# اموي دوره

(۴۱ -۲۳۱ هـ)

پر (۴۰هـ ٦٦۰م) کال چې حضرت معاویه د ابو سفیان زوی د حجاز له بني امیه څخه واك ونیو او پر اسلامي هېواد یې برې وموند نو ده اسلامي لښکر د خراسان شمالي او جنوبي خواو ته پر دوو جبهو وخوځاوه، په شمالي جبهه کښې د هرات خواته قیس بن الهیثم سلمی، بادغیس او فوشنج ونیول بلخ ته ورسېد او د هغه ځای د نوبهار بودتون (معبد) یې وران کړ. د ده ترلاس لاندې حاکم "عطاخشك" د بلخ پر درو سیندو درې پلونه جوړ کړل، چې د عطا په پلو مشهور وو، تر هغه وروسته تر (۴۵هـ - ٦٦۵م) کال پورې د بلخ په شاوخوا کښې عبدالله د خازم زوی په هرات، بادغیس، فوشنج او قادس کښې نافع د خالد زوی او په تالقان، فاریاب او مروالرود کښې قیس د الهیثم زوی، په مرو کښې امیر د احمرزوی او د خراسان په نورو برخو کښې حکم د عمرالغفاري زوی د اموي دربار له خوا امیران وو، او پر (۵۱هـ - ٦۷۱م) کال چې ربیع د زیاد حارثي زوی د خراسان والي شو، پنځوس زره عرب یې د آمو پردې غاړه میشت کړل او تر هغه وروسته سعید د عثمان﷜ زوی د خراسان والي وټاکل شو، چې د عربو لښکر یې د لومړي ځل له پاره



د آمو پورې غاړې ته وخوځول. تر سعید وروسته عبدالرحمن د زیاد زوی د خراسان حکمران شو، چې د معاویه تر مړینې پورې همدلته و.

د معاویه تر مړینې وروسته د یزید له خوا اسلم د زیاد زوی د خراسان په امیرۍ وټاکل شو، ده د یزید تر مړینې وروسته مهلب د خراسان امیر کړ، خو چې دی له هغه ځایه ووت خلکو پر مهلب بلوا وکړ، ځکه نو سلیمان د یزید زوی پر مرو، تالقان او ګوزګان او عبدالله د خازم زوی د خراسان پر نورو برخو امیري وموندله. پر دغه مهال د عربي مشرانو تر منځ شخړه پېښه شوه او عبدالله خپل زوی موسی پر خپل ځای کښېناوه او په خپله یې په هرات کښې بني ربیعه او بني تمیم کلابند کړل، تر یوه کال جګړې وروسته چې اته زره تنه ووژل شول هرات یې په زور ونیو او خپل زوی ته یې وسپاره (تر ٦۴هـ - ٦۸۳م وروسته).

عبدالله د خازم زوی د عبدالملك اموي تر وختو پورې په خراسان کښې پاته شو او پر (۷۲هـ - ٦۹۱م) کال وکیع د عمیره زوی د خلیفه له خوا وټاکل شو، چې عبدالله ووژني، ده هم د عبدالله سر پرې کړ او پر خراسان واکمن شو، خو پر (۷۸ هـ - ٦۹۷م) کال خراسان د عراق د والي حجاج له خوا مهلب ته وسپارل شو، مهلب تر مروالرود راتېر او تر بلخ پر مخ ولاړ، او له هغه ځایه تر آمو پورې ووت، تر دوو کالو پورې په ماوراء النهر کښې په جګړه بوخت و بیا بېرته بلخ ته راوګرځېد.

پر ۸۲هـ کال چې مهلب د مروالرود په زاغول کښې مړ شو حجاج ده زوی یزید بن مهلب د خراسان په حکمرانۍ وګماره او تر هغه وروسته یې ورور مفضل د ابي صفره زوی د خراسان امیر شو، ده پر (۸۵هـ - ۷۰۳م) کال بادغیس ونیو او پر (٦۸هـ - ۷۰۵م) کال د عربو نامتو بریالی قتیبه د مسلم زوی له سیستانه راوګرځېد او حجاج خلیفه عبدالملك ته منځګړی شو څو

چې قتيبه يې د خراسان حکمران وټاکه، قتيبه مرو ته راغی او له هغه ځایه يې بلخ، تالقان او تخارستان فتح کړل، په بلخ کښې يې ډېر مريان ونيول، او تر هغه وروسته يې په ماوراءالنهر کښې په خپلو فتوحاتو لاس پورې کئ، قتيبه خراسان، تخارستان او بلخ د خپلو لويو لښکرې سوقياتو مرکز وټاکه او هر وخت چې د ماوراءالنهر له پر له پسې يرغلو څخه را ګرځېد په بلخ، مرو او خراسان کښې يې خپل ځواك نوی کاوه (۸٦ تر ۹٦ھ پورې) قتيبه کلك او کروړ سړی و، چې د خراسان په ولايت کښې يې د تخارستان تر پايه پورې ټول مخالف عناصر د ۵۳ زرو تنو لښکر په واسطه له پښنو وغور ځول او و يې ځپل، د افغانستان د شمالي سيمو له مدافعينو څخه يو هم بادغيسی نيزك دی، چې د تخارستان د يبغو امير له خوا حکمران و (۸۴ھ) دی څه وخت د آمو د دواړو غاړو په فتوحاتو کښې د قتيبه ملګری و، خو چې د بلخ نو بهار ته ورسېد د خپلواکۍ بيرغ يې پورته کړ، د بلخ مروالرود تالقان، پارياب (اوسنی ميمنه) او ګوزګانان (اوسنی سرپل) خلك يې د قتيبه پر خلاف له ځان سره کړل او له کابلشاه څخه يې هم د مرستې ژمنه واخيسته.

قتيبه د راتلونکي کال (۹۱ھ) په پسرلي کې له بلخ څخه پر تخارستان يرغل او په تالقان کښې يې د نيزك له لښکر سره جګړه وکړه، نيزك ماته وکړه، قتيبه دده لښکر پوپنا کئ د نيزك ملګري يې تر ځلورو فرسخو پورې په دار وځړول، د نيزك دوه زامن يې ووژل؛ په خپله نيزك په بغلان کښې خپل مرکز ته راستون شو، او قتيبه سمنګان ونيو، نيزك يې تر دوو مياشتو په "دژکزر" کښې کلابند کړ، خو ويې نه نيولای شو، په پای کښې يې سليم نومی د روغې له پاره نيزك ته ولېږه او نيزك يې په بې ځايه وعدو قتيبه ته بوت خو هغه نيزك او د ده دوه ورېرونه شول او عثمان له ۱۲ زرو ملګرو سره ووژل او په دې توګه يې د افغانستان په ټولو شمالي ولاياتو



کښې سرغړونې له منځه يوړې (۹۱ھ - ۷۰۹م) خو قتيبه د اموي سلطنت د مرکز او وليد بن عبدالملك مخالف شو او په خراسان کې يې په بغاوت لاس پورې کړ، اموي دربار تر ډېر زيار وروسته دی د خپل لښکر د يوه مشر و کيع نومي په لاس وواژه (۹٦ هـ - ۷۱۴م) تر قتيبه وروسته تر ډېرې مودې پورې څه مهمه پېښه ونه شوه، خو خلك تل د بني اميه مخالف وو او غوښتل يې چې خلافت بېرته آل رسالت ته په لاس ورشي، څنګه چې بني اميه د بني هاشم او د امامت له کورنيو سره دښمني درلوده نو ځکه حضرت يحيی د زيد زوی (د علیؓ له اولادې) له کوفې څخه د بلخ په نيت راوخوځېده، د بلخ امير چې د اموي دربار ګمارلی سړی او نوم يې عقيل د مفضل زوی و، دی ونيو او بندي يې کئ، خو په دغه وخت کښې (۱۰۵ھ-۷۲۳ع) اموي هشام مړ شو او وليد د يزيد زوی د خراسان امير نصر سيار ته ليك واستاوه چې يحيی خوشې کړي، خو يحيی تر خوشې کېدو وروسته په ګوزګان کښې له اويا تنو سره د اموي لاسپوڅيو ګوتو ته ورغی او تر يوې سختې جګړې وروسته شهيد شو (د ۱۲۵ھ د برات مياشت) د ده مړی د ابو مسلم تر منځته راتګ پورې پر دار و.

د (۱۰۷ھ - ۷۲۵م) تر شاوخوا پورې پر نورو پېښنو سربېره په غور او غرجستان کښې د خراسان د عربي حکمران اسد د عبدالله د زوی پرمختګ او د غرجستان د محلي حکمدار "نمرون" او د غور له خلکو سره د ده جګړه وه، چې په دې جګړه کښې د دې سيمې شورېښت آرام او په نمرون يې اسلام ومانه.

## خو په جنوبي جبهه کښې:

پر (۴۳ هـ ۶۶۳م) کال معاويه بيا عبدالرحمن بن سمره د دويم ځل له پاره د سيستان د حکمدار په توګه راواستاوه، نوموړي تر ۴۴هـ کال پورې ددې سيمې ټولې ناآرامۍ آرامې کړې او تر هغې وروسته د بست او کش (د کندهار کشک نخود) او د داور (د هلمند پر غاړو زميندوار) او رخج (اراخوزيا، د ارغنداو د ناوې) خواته پر مخ ولاړ او د زور غره ته (د زميندوار او غور تر منځ) او د هغه ځای لوی بودتون ته ورسېد او هغه لوی د سرو زرو بت چې سترګې يې د ياقوت وې د عبدالرحمن په لاس مات کړی شو، تر هغه وروسته عبدالرحمن د زابل او ترنك ناوې ته تر غزني او کابل پورې ولاړ، دا ښار يې تر کلابندۍ وروسته د منجنيق د ډبرو په ويشتو ونيو او تر څه مودې هلته پاته شو. په دغو جګړو کښې پر ۴۴ هـ کال يو فاضل صحابي ابو رفاعه عبدالله عدوي تميم د اسيد زوی (او په بل روايت ابوقتاده العدوی) په کابل کښې شهيد شو، چې قبر يې په کابل کښې مشهور دی. پر همدغه کال ابن سمره يو لښکر د فارس الفرسان مهلب د ابي صفره د زوی په مشرتابه ختيزو ولاياتو ته ولېږه، مهلب له کابله تر پېښوره پر مخ ولاړ، او کابلشاه يې چې په لار کښې يې د او وژنده پيلانو په قوت (چې له هر پيل سره څلور زره سپاره وو) په خپله دفاع کوله مات کړ، اوبنه او لاهور يې د سند د سيند ښې غاړې ته د مردان په ناوه کښې ونيول، بيا نو عبدالرحمن، مهلب د سپه سالارۍ په منصب سرلوړی کړ او ده د سند ها غاړې ته ګام واخيست او تر ملتان تېر شو، قندابيل (ګندها بهيل د بلوچستان د کلات په شاوخوا کښې د قصدار په پينځه فرسخۍ کښې پروت دی) او قيقان (کلات) يې ونيول چې دا د خيبر ها خواته د کابل له لارې د عربو لومړی لښکر کشي وه.



پر (۴۶هـ) کال ربيع الحارثي د سيستان والي شو او پر (۴۷هـ) کښې يې پر بست او رخج (رخذ) يرغل وکړ، د رتبيل (د زابلستان د پاچا) سره ونښت او هغه يې مات کړ. ربيع په زابلستان او د ارغنداو په ناوه او سيستان کښې د خراج او محاسبې ديوان پرانيست، او دا هېواد يې د حسن بصري په مرسته تر اسلامي ادارې او قوانينو لاندې راووست، تر هغه وروسته پر (۵۱هـ - ۶۷۱م) عبدالله د ابي بکره زوی سيستان ته راغئ، د هغه ځای د ګبرګانو (زردشتيانو) سره ونښت او بيا تر بست رخج او کابل پورې پرمخ ولاړ، له رتبيل سره يې جګړه وکړه خو په دوو مليونو درهمو يې ورسره روغه وکړه په دې توګه رتبيل غاړه کښېښووه او دی بېرته سيستان ته ولاړ.

پر (۵۹هـ-۶۷۹م) کال د معاويه له خوا عباد د زياد زوی د سيستان حکمران وټاکل شو، دی هم له هيلمنده تېر، تر کندهار او کابله ورسېد، همد عباد د معاويه د وختو تر پايه د سيستان حکمدار و، هغه وخت چې يزيد د شاهۍ پرتخت کښېناست، عباد له (۲۰) مليونو درهمو او نورو مالو سره چې د کابل له غنايمو څخه يې د سيستان په خزانه کې راټول کړي و، بصرې ته ولاړ، او د (۶۲ هـ - ۶۸۱م) کال په لومړيو مياشتو کښې يې يزيد د زياد زوی د سيستان په اميرۍ او ابو عبيده د زياد زوی يې په سپاه سالارۍ وګمارل شول او سيستان ته راغلل، دا مهال بيا د افغانستان خلکو د کابل د پاچا په مشرۍ پر عربي ګمارل شويو بلوا وکړه، او د خپلواکۍ د ګټلو له پاره پاڅېدل، يزيد او ابوعبيده پر کابل يرغل وکړ، خو له ډېر سخت مقاومت سره مخامخ او په خپله يزيد له ډېرو مسلمانانو سره ووژل شو، سپه سالار ابوعبيده په کابل کښې بندي شو، نو ځکه د اموي له درباره طلحة الطلحات او ورور يې عمر د سيستان د تنظيم له پاره راغلل، او د عربو هر يو سردار د افغانستان د يوې يوې غربي ناحيې واګې په لاس کښې

واخیستلې او هغه وخت چې مروان الحکم په شام کښې د اموي پاچهۍ پرتخت کښېناست عبدالعزیز د عبدالله عامر زوی یې چې له پلار او نیکه څخه یې د سیستان په چارو کښې تجربه درلوده د سیستان حکمران کئ، تر (۶۴هـ) وروسته په سیستان کښې د طلحه لښکر را غونډ کړ او څنګه چې د افغانستان خلکو د عربي حکمرانانو اطاعت نه مانه، نو د بست او کابل خواته یې مخه کړه او د زابل له پاچا رتبل سره بیا ونښت، هغه یې مات کړ. د کابل او زابل تر نیولو وروسته له ډېرو ولجو او ګڼ شمېر مریانو سره سیستان ته راوګرځېد، دی تر (۷۲هـ ۶۹۲م) کال د اموي عبدالملك تر وختو پورې په سیستان کښې امیر پاته شو، عبدالملك په همدغه کال حجاج د سیستان امیر وټاکه او حجاج له خپلې خوا امیه د عبدالله زوی سیستان ته واستاوه، ده پر (۷۴هـ) کال پر بست یرغل وکئ او د زابل له پاچا رتبیل سره یې جګړه وکړه، دی یې په یو خروار زرو او دوه ملیونو درهمو مجبور کئ، هم یې له هغه څخه د خان له پاره درې سوه زره درهمه واخیستل، پر (۷۵هـ ۶۹۴م) کال عبدالملك اموی، عبدالله د سیستان له امیری څخه لرې کئ، او د ده پر ځای یې موسی د طلحه زوی واستاوه خو په سیستان کښې د کړکېچ له امله بیا همهغه عبدالله د ابي بکره زوی (عبیده بن بکره) چې د سیستان په چارو ښه خبر و، د نیمروز چارو ته وګمارل شو. ده پر (۷۸هـ) کال یو لوی لښکر د حریش بن بسطام په مشری سیستان ته راوست، زرنج ښار یې ونیو، او د بکوا دښتې له لارې یې پر بست زابل یرغل وکئ، خو رتبیل د ا لښکر له منځه یوړ چې د جیش الفنا په نامه یاد شو، عبدالله یې د (۷۰۰) زرو درهمو په ورکولو اروپست او روغه یې ورسره وکړه (۷۹هـ). څنګه چې عبدالله د دې ماتې له ویرې په بست کښې مړ شو، نو د ده زوی بوبردعه له رتبیل سره ونښت، له هغه څخه یې (۷۰۰) زره درهمه واخیستل سیستان ته ولاړ



او له هغې خوا حجاج لس زره مجهز سپاره (جیش الطواویس) د عبدالرحمن بن اشعث په مشری پر (۸۰ هـ-۷۰۰ م) کال سیستان ته راولیږل.

عبدالرحمن چې سیستان ته راغی، د خوارجو ستر سالار همیان د عدي زوی له غښتلي لښکر سره په سیستان کښې له ده سره جګړه وکړه، خو همیان مات شو، عبدالرحمن د خوارجو ډېر مشران ووژل بیا یې پر بست یرغل وکړ او تر هغه وروسته یې د زابل له رتبیل سره سخت جنګ وکئ او له زیاتو ولجو سره سیستان ته ولاړ، همدا چې عبدالرحمن ته په سیستان، زابل، کابل او سند کښې لوی ځواك په لاس ورغی نو یاغي شو، له حجاج سره د جنګ له پاره عراق ته ولاړ (۸۲ هـ)، خو ماته یې وکړه او بیرته د سیستان زرنج ته راغئ، په دغه وخت کښې حجاج د شمالي خراسان امیر مهلب ته لیك واستاوه، او هغه مفضل یې له لوی لښکر سره د عبدالرحمن د ځپلو له پاره وګماره، عبدالرحمن له سیستان څخه د بست خوا ته پرشا شو، د مفضل لښکر ورپسې ولاړ، د بست او رخد تر منځ یې سخته جګړه وکړه، دلته عبدالرحمن مات شو او د زابلستان رتبیل ته یې پناه یوړه، خو حجاج، عماره بن تمیم رتبیل ته استازی واستاوه، تول مالي تکلیفونه یې هغه ته وبخښل، د تل له پاره یې د دوستۍ ژمنه ورسره وکړه. رتبیل عبدالرحمن او د هغه ملګری ابوالعنبر ونیول او غوښتل یې چې د حجاج استازي ته یې وسپاري، خو هغو دواړو ځانونه له بامه واچول او مړه شول. دا پېښې د کندهار د ارغنداو د ناوې په رخج (رخد) کښې تر (۸۴-۸۵ هـ) کال پورې منځته راغلې دي.

تر دې وروسته پر (۸۶هـ - ۷۰۵م) کال مسمع د مالك زوی سیستان ته ولېږل شو، له ابوخلده خارجي سره یې جګړې وکړې او هغه یې ونیو، خو څنګه چې مسمع پر همدغه کال مړ شو، د ده پر ځای قتیبه د مسلم زوی

راغی ده چې شمالي خراسان ته مخه وکړه، اشعث د بشر زوی یې په سیستان کښې پرېښوو، پر (۸۸هـ - ۷۰٦م) کال یې په بست کښې له رتبیل سره جګړه وکړه او تر ده وروسته عمرو د مسلم زوی (دقتیبه ورور) همدغه کار تکرار کړ او په اتو سوو زرو درهمو یې روغه وکړه، څو کاله وروسته پر (۹۴هـ) کال قتیبه د مسلم زوی له خراسانه سیستان ته لاړ، رتبیل له ده څخه ویرېده او پر کال یې یو ملیون درهمه خراج ومانه.

تر دې وروسته تر (۱۰۸ هـ - ۷۲٦ ع) کال پورې یو شمیر کسان د سیستان په امیرۍ وټاکل شول، خو تر سیستان پرمخ نه ولاړ، د هشام اموي په وخت کښې اصفح د عبدالله زوی د محمد بن جحش په سپه سالارۍ دلته راغئ، دی پر (۱۰۹ هـ) کال له سیستانه ووت او له زابلي رتبیل سره یې سختې جګړې وکړې، چې په هغو کښې په خپله اصفح او نور ډېر مسلمانان ووژل شول، تر هغه وروسته په سیستان کښې د عربي قبیلو تر منځ بیلتون راغی چې تر (۱۳۰ هـ -۷۴۷ ع) پورې یې دوام وکئ، د اموي دولت له پلازمینې هم ډېر سرې د دغه ځای د امیرانو په توګه راغلل چې دا دوره په سیستان کښې د اموي دولت تر سقوطه په کورنیو جګړو کښې تېره شوه، خو اسلامي لښکرو د درياب له لارې د سند پر ځمکه یرغل وکئ او په اموي عصر کښې یې تر (۹٦ هـ - ۷۱۴ ع) کال پورې د هغه ځای لوی ښارونه لکه ارمابیل، دیبل، نیرون، سیوستان، اشیهار، برهمن آباد، ارور(روهری) بابیه، ملتان او نور د لوی فاتح محمد بن قاسم په مشرۍ ونیول او تر هغو وروسته هم د سند ځمکه د ملتان تر پایه او د پېښور تر شاوخوا پورې د اسلامي سالارانو تر امیرۍ لاندې پاتې شوه، په دې توګه مسلمانانو د افغانستان د جبهې شاته هم خپل فتوحات پرمخ بوتلل، خو لکه چې ولیدل شول د افغانستان خلکو له مرو او سیستان څخه نیولې تر کابل او پېښور پورې څه



د پاسه یو سل کاله د عربو د بریالیو لښکرو په مقابل کښې مقاومت وکئ، دا غرونه تل د خونړیو جګړو ډګر و او هغه وخت چې رتابله او کابلشاهانو په زابل او کابل کښې د عربي بریالیو په لاس ماته کوله، د جبهې شاته یعنې ګردیز، پېښور او ویهند ته یې پناه وړه، د خپل ځواك تر پیاوړولو وروسته یې بیرته پر کابل او زابل یرغل کاوه، او د عربو ساخلوګان یې پوپنا کول، په دې توګه یوه پیړۍ په دغو جګړو کې تېره شوه او د افغانستان خلکو په دې مقاومتو کښې په ډېره میړانه خپلواکي ساتله، دوی د اسلام دین هم ورو ورو ومانه، په دې وختو کښې د ګندهارا ولایت له کابله تر پېښوره او ویهند، کندر، سند او ټکسیلا پورې د ګریکو بودیك د مدنیت او صنعت مرکز و، او په دغه هېواد کښې بودايي او بر همني لوی بود تونونه (معابد) موجود و.

اخځ: د البلاذری فتوح البلدان، طبری، چچ نامه، تاریخ سیستان. الاصابه، افغانستان بیك نظر، جغرافیای تاریخی ایران، دائره المعارف اسلامي، فتوحات عرب در آسیای میانه، خلافت د میور په قلم، معجم الانساب زمباور، تاریخ یعقوبی، د ابن اثیرالکامل، د یعقوبي البلدان، د ګردیزی زین الاخبار، مجمل فصیحی، سي.یو.کي د هیون تسنګ، راجه ترنګیني د کلهنه، د ایلیت د هند تاریخ، د افغانستان تاریخ ۱ - ۲، کتاب الهند، مروج الذهب، مادر زبان دری، طبقات ناصری، د ندوی د سند تاریخ.

# د عباسيانو واکمني

(۱۳۲ - ۲۰۵هـ)

په افغانستان کښې د راشده خلافت او اموي امارت يوسل و دېرش کلنه اسلامي دوره په کړکېچ او جګړو تېره شوه، د دغه هېواد خلکو لومړی د عربي دولت سياسي او لښکري واك نه مانه، دويم دا چې د بني هاشم او بني اميه تر منځ په اختلاف کښې د آل هاشم پرخواوو، وروسته ترهغو چې اسلام يې ومانه او له وسلې يې لاس واخيست، تل يې داهڅه وه چې خلافت دې بېرته بني هاشم ته ورکړل شي او د دغه انقلاب په ترڅ کښې يې زياريوست چې خپله واکمني او خپلواکي بيا ټينګه کړي.

د همدغه مقصد له پاره د خراسان يو نوميالی عبدالرحمن مشهور په ابومسلم مروزی (چې پر ۱۰۰هـ زيږېدلی) د بنداد هرمو د زوی له مروڅخه دري فرسخه ليری دماخان له خلکو څخه ددې بلنې مخکښ (پيشوا) شو. اوپه (۱۲۴هـ - ۷۴۱ ع) کال پر ۲۳ کلنۍ کښې کوفې ته لاړ او په مکه کښې يې له امام ابراهيم عباسي سره وکتل، خلك يې د عباس کورنۍ د بلنې تايدولو ته راوبلل ، چې له هغه سفره بېرته هېواد ته راغی پر (۱۲۹هـ - ۷۴۹ ع) کال يې د افغانستان په شمالي سيمو کښې له مرو څخه نيولې ترتخارستان پورې خلك له ځان سره کړل، او د عباس کورنۍ خلافت يې اعلان کړ، تور بيرغ يې



چې د دې بلنې نخښه وه، ورپاوه او په خپله لښکري چوڼۍ کښې يې لوی اور بل کړ، ځان يې د (شهنشاه) په لقب ونوماوه. د خراسان د اموي حکمران نصر د سيار د زوی او ابومسلم ترمنځ سخته دښمني پيښه شوه، او مروان اموي پر (۱۳۱هـ - ۷۴۸م) کال د امام ابراهيم سر د آهکو په بنۍ کښې ويپچه او ويې واژه ورور يې عبدالله سفاح کوفې ته و تښتيد، خو ابومسلم ترخراسان پرمخ ولاړ او له خراساني لښکرو سره پر کوفه ورننووت، پر (۱۳۲هـ) کال يې د کوفې په لوی جومات کښې د عباسی عبدالله سفاح په نامه خطبه وويله، او د امويانو د دولت نسکورېدل يې اعلان کړل ، ددغه مهم کار او د عباس کورنۍ د خلافت ترينست اينبوولو وروسته بيرته مروته راغی .ده تر (۱۳۵هـ ۷۵۲ع) کال پورې خراسان منظم کئ، او ماوراء النهر يې هم ونيو، پر (۱۳۶هـ) کال په ډېر شاهانه برم و پرتم مکې ته لاړ ، خو دسفاح ورور خليفه منصور دوانيقی د ابومسلم له ستر شخصيت څخه ووېرېد، دی يې پر (۱۳۷هـ - ۷۵۵م) کال پر۳۷ کلنۍ وواژه او خراسان يې د عباسيانو په امپراتورۍ کښې دننه وساته. خو پر همدغه کال د ابو مسلم له سکروټو ډك نغري څخه بيا لمبې پورته شوې، او د هرات لوېديځ خواته د اهروا نه له کلي څخه زردشتی فيروز سنباد له سلو زرو تنو لښکر سره د ابومسلم د غچ او د خپلې خپلواکۍ د اخيستلو له پاره د عباسيانو پرضد پورته شو، د تاري د غرب او تبرستان خواته پر مخ ولاړ، عباسي خليفه منصور، جهور د مرارعجلی زوی د ده جنګ ته له لوی لښکري ځواك سره راواستاوه، چې سنباد په دې جګړه کښې له خپلو شپېتوزرو پيروانو سره ووژل شو. د خراسانيانو بله هڅه پر (۱۴۱ هـ) کال د برازبنده په مشرۍ تر سپين بيرغ لاندې وه چې خليفه منصور خپل زوی‌المهدي د هغه مخنيوي ته وګماره، د براز بنده قواوې يې له منځه يووړې او په خپله يې هغه د جګړې په ډګر کښې

وواژه. دا ماته د ۱۴۲هـ کال د بیع الاول پر ٦ مه د دوشنبې پر ورځ وه.

پر (۱۴۴هـ - ۷٦۱م) کال د بست او کندهار خلك هم د منصور پر خلاف وښورېدل او د سیستان د حکمران زهیر د محمد ازدی د زوی سره یې سخته جګړه وکړه او بیاپر (۱۵۰ هـ - ۷٦۷ ع) کال استادسیس هروي له بادغیسه د حریش سیستاني په ملاتړ پاڅېد، خلیفه ۲۴ زره تنه لښکر له خازم بن خزیمه سره د دوی مقابلې ته راواستول، عمرو، او ابی عون د قتیبه زامنو هم د خلیفه په امرله تخارستانه پردوی یرغل وکړ او د (۷۰ زرو) په شاوخوا کښې د سیس پیروان یې ووژل او په خپله دی یې بندي کړ چې په بغداد کښې ووژل شو،د ده لور "مرجیله" هارون وکړه چې د مامون موروه، پر (۱۵۱هـ) کال د زرنج ښار هم بلواوکړه او دسیستان خلك د خپلو محلي مشرانو محمد د شداد د زوی او آذروبه د مرزبان زردشتي د زوی په مشرتابه د خلیفه منصور پرضد وجنګیدل، او د سیستان والي یزید د منصور خلیفه زوی یې مغلوب کړ، ترهغه وروسته پر (۱٦۱هـ - ۷۷۷م) کال یو بل سړی د هاشم بن حکیم په نامه په مقنع مشهور د مرو له دیه کازه راپورته شو، او په هرات بادغیس او مرو کښې یې د سپین کالیو (سپید جامه ها) په نامه یوه ډله له ځان سره کړه ترآمو هاخواته پورې وتل، همهلته له خپلو (۳۰ زرو) تنو سره د عباسیانو د لښکرو له خوا له منځه یو وړل شول (۱٦۳هـ) او هم د (۱٦۰هـ - ۷۷٦ م) په شاوخوا کښې په خراسان کښې یوسف البرم پورته شو، چې په میمنه، مرغاب او پوشنج کښې یې د بلوا بیرغ ورپاوه، خویه یوه جګړه کښې د خراسان د حکمدار یزید بن مزید له خوا بندي او په بغداد کښې ووژل شو.

د سیستان په جبهه کښې د سفاح په وختو کښې یوه بستي سړي چې بوعاصم نومید د سیستان امیرشو، داوخت د عباسي دربار له خوا



سلیمان کندي له خراسانه راغی او بوعاصم یې له منځه یوړ او په بست کښې یې هم له رتبیل سره جګړه وکړه او هغه یې مات کړ (۱۳۸هـ - ۷۷۵م) خو بیا د سیستان خلك د حضین بن رقاد په مشرۍ پر (۱۴۱ هـ - ۷۵۸م) کال بلوا وکړه، چې لومړی د عباس منصورله خواهنادي السري او تر هغه وروسته پر (۱۴٦هـ - ۷٦۳م) د المهدي ماما یزید د منصور زوی د سیستان د حکمران په حیث راغئ ، خو څه موده وروسته بیرته ولاړ، او د ده پرځای پر (۱۵۱ هـ - ۷٦۸م) کال معن د زایده زوی سیستان ته راغئ او تررخج (د ارغنداو تر ناوې) پرمخ ولاړ او په هغه جګړه کښې چې له رتبیل سره یې وکړه، د هغه زوم یې چې (ماوند- یاماوید) نومېد له دیرشوزرو تنو لښکر سره بندي ونیو او بغداد ته یې واستاوه، خو پر (۱۵۲هـ) کال د سیستان خلکو د معن نس څیرې کړ په دې وخت کښې په سیستان کښې د خوارجو ښورښت ډېر ګړندی و، پر (۱۵۹هـ - ۷۷۵م) کال حمزه د مالك زوی د مهدی خلیفه له خوا سیستان ته راغئ ،او سیستاني خارجي نوح یې وځاپه د سیستان له نورو مهمو پېښو څخه د تمیم د سعید د زوی واکمني وه چې د مهدي له درباره پر (۱٦۹هـ - ۷۸۵م) کال سیستان ته راغئ ، د بست او رخج خواته یې لښکر ویوست، له رتبیل سره یې جګړه وکړه او دهغه ورور یې بندي او عراق ته یې واستاوه.

خو د هارون الرشید په وختو کښې له (۱۷۱هـ - ۷۸۷ع) کال څخه جعفر د محمد طوسي زوی او ترهغه وروسته عباس د جعفر زوی پر (۱۷۳هـ) کال د خراسان حکمرانان و، او بیا پر (۱۷۴هـ) کال خالدالغطریف، پر (۱۷٦هـ) کال حمزه د مالك زوی د خراسان په امیرۍ وټاکل شول ، پر (۱۷۷هـ) کال فضل د یحیی برمکي بلخي زوی د بغداد د دربار له خوا د خراسان حکمران شو او په دغه ځای کښې یې یو غښتلی لښکر د خراسان د

لښکر په نامه جوړ کړ، چې شمېر يې نيم مليون تنو ته رسېده، چې ډېر نفوذ يې ومونده او پر (۱۷۹هـ - ۷۹۵م) کال له خراسانه بغداد ته وګرځېد، دی د خراسان د خلکو په مرسته د عباسي دربار يو سپين روبی نوميالی شو او همدا د بلخي برمکيانو نامتو کورنۍ د يحيی بن خالد برمکي له اولادې څخه وه، چې د هارون الرشيد په وختو کښې يې دوه زامن فضل او جعفر په عباسي دربار کښې وزيران شول، خو په پای کښې د خلافت دربار د دوی له ډېر نفوذ څخه ووېرېد خراسانيانو چې تل د خپلواکۍ د اخيستلو له پاره هڅې کولې، ځکه نو هارون الرشيد دا ستره کورنۍ چې د عباسي دولت ټول واك يې په لاس کښې اخيستی و، د قتل عام په واسطه پوپناه کړه (۱۸۷هـ -۸۰۳م).

د فضل برمکي ترامارت وروسته علي د عيسی زوی د ماهان لمسی پر (۱۸۰هـ) کال او بيا هرثمه د اعين زوی پر (۱۹۱هـ) کال او عباس د جعفر زوی پر (۱۹۳هـ) کال د خراسان اميران وو، خو په سيستان کښې د هارون د جلوس پر کال بلوا وشوه، چې کثير د سالم زوی د هغه ځای عربي حکمران بغداد ته وتښتيد، تر هغه وروسته عثمان د عماره زوی سيستان د ځان تابع کړ او له رتبيل سره يې په رخج کښې جګړه وکړه، او د بشر له فرقد د زوی او سيستاني حصين سره چې له خپلو سپرو سره په بست او سيستان کښې ياغي شوی و، سختې جګړې وکړې او تر هغه وروسته پر (۱۷٦هـ ـ ۷۹۲م) کال داؤد د بشر سيستاني زوی د سيستان امير شو او د خلافت دربار اړ شو چې د سيستان د ښورښتو د ځپلو له پاره په خپله له سيستاني وړتيا څخه کار واخلي، داؤد لومړی حصين له منځه يوړ او سيستان يې آرام کړ، خو د دې له پاره چې داؤد په نيمروز کښې پښې ټينګې نه کړي، ژر يې لرې کړ، او د ده پر ځای پر (۱۷۸ هـ) کال يزيد د جرير زوی د سيستان په حکمرانۍ



وګمارل شو، دغه سړي پر زابل او کابل يرغل وکړ، او تر هغو وروسته پر (۱۸۲هـ) کال د سيستان حکمران عيسی نومی تر کابله پر مخ ولاړ.

د دغه مهال له خورا مهمو پېښو څخه يوه هم داده چې پر (۱۸۲هـ) کال په سيستان کښې يو نامتو پهلوان چې امير حمزه د عبدالله سيستاني زوی {د زوطهماسپ له کوله و} ميدان ته راووت، دغه نابغ او اتل شخصيت د خراسان د پخوانيو ازادۍ غوښتونکيو او خپلواکپالو نوميالیو په پيروۍ په سيمه کښې دازادۍ ولوله توده کړه او عيسی د علي زوی د هارون الرشيد حکمران يې وشاړه، پر زرنج يې بری ومونده او په عيسی پسې تر هرات او پوشنج پورې پرمخ ولاړ، خو عيسی بېرته دی د سيستان خواته پرشا وتمباوه حمزه په نيمروز کښې نوی ځواك راغونډ او بيايې پر نشاپور يرغل وکړ، کلکې جګړې يې وکړې او پر (۱۸۸هـ) کال بيرته سيستان ته وګرځېد. له دې کبله چې د دغه نيمروزي پهلوان ميدان ته راتګ د عباسيانو د واکمنۍ بنسټ رېږدولی و او خراسانيانو او نيمروزيانو بيا د خپلواکۍ غوښتلو آسمان لړزوونکې نارې پورته کړې وې، ځکه نو پر (۱۹۳هـ - ۸۰۸م) کال خليفه هارون الرشيد په خپله خراسان ته راغی او حمزه له ديرش زريز تکړه لښکر سره د نشاپور خواته وخوځيد خو څنګه چې د (۱۹۳ هـ) کال د دويمې خور پر مياشت خليفه د خراسان په طوس کښې مړ شو، حمزه د عباسيانو له پاتيو ويرجنو سره جګړه ونه کړه، بيرته سيستان ته ولاړ، د بلوچستان او سند خواته يې بريد پيل کړ، په ډېرو فتوحاتو بريالی شو، او پر (۱۹۹هـ ـ ۸۱۴م) کال له دغه سفر نه بيرته راغی او پر (۲۱۳هـ) کال ووژل شو. خو د ده د ميړانې او پهلوانۍ نکلونه تر ډېرو پېړيو پورې د خلکو پر ژبو وو، او د ملي پهلوان په توګه ګڼل کيده، دده په پيروۍ حرب د عميده زوی له بسته پاڅېد دی د سيستان د خاش له خلکو څخه و او تر (۱۹۹هـ) پورې

يې له عباسي حکمرانانو سره جګړې وکړې، د آزادۍ غوښتلو نغرې يې تود وساته، تر هغه وروسته هم عباسي حاکمان سيستان ته راتلل، خو ريښتينې واک د طاهر د کورنۍ په لاس کښې و.

د افغانستان له هغو واکمنو کورنيو څخه چې د عباس کورنۍ د خلافت په جوړښت کښې يې له ابومسلم خراساني سره ملګري وکړه.يوه د غور د سوريانو کورنۍ وه، چې د ماهوي د همهغه کهاله پايخوړ و چې د مخه يې يادونه وشوه، له دې کهاله څخه د امويانو د دورې په پای کښې شنسب د خرنګ زوی د غور په غرو کښې امارت لاره، او زوی يې امير پولاد د (١٣٠ هـ -٧٤٧م) په شاوخوا کښې د خراسان په هڅو کښې د ابو مسلم ملاتړی و، چې تفصيل به يې د غوريانو د حالاتو په شرح کښې راوړل شي.

اخځ: طبري - البلاذري - تاريخ سيستان - طبقات ناصري - پټه خزانه - يعقوبي - تاريخ برامکه - البرامکه - انسيکلوپيډي اسلامي - ابن اثير - مروج الذهب معجم الانساب - زين الاخبار ګرديزي - افغانستان بعد از اسلام لومړی ټوک - الکامل ابن اثير - مجمل فصيحي - ابن خلدون.

# په اموي او عباسي دوره کښې
# د افغانستان
# ټولنيز او مدني احوال

لکه په تېرو څپرکيو کښې چې مو وويل د راشده خليفه ګانو او امويانو په وختو کښې څو څو واره د خراسان خلک له هرات، مرو او سيستان څخه تر زابل، کابل او تخارستان پورې د عربو د سياسي واک د خپريدو پر خلاف وشوريدل، برهمني کابلشاهانو او رتبيلانو ان تر هجرت وروسته د (١٨٠) کالو په شاوخواکښې هم په کابل او زابل کښې مقاومت کاوه، او د بودايي او برهمني مدنيت اغيزه په کابل، زابل، تخارستان او بلخ کښې پاتې وه، د افغانستان په لوېديزو سيمو لکه: سيستان، هرات، ګوزګانان او مرو کښې هم د زردشتي ثقافت نخښې ليدل کېدې.

خو د خلکو مقاومت که بودايي وو او که زردشتي ډېر کلک او سخت و او د دغه هېواد خلکو نه غوښتل چې د نورو د اطاعت رسۍ په غاړه کښې پرېږدي، د امويانو په وخت کښې د خراسان مشرانو دغه مقاومت ته اسلامي بڼه ورکړه په دې مانا چې د امويانو د امپراتورۍ پر خلاف يې د هاشم کورنۍ په طرفدارۍ وسلې ته لاس واچاوه، او خراسان د هاشم کورنۍ د پناه غوښتونکيو ټاټوبی شو. خو ښايي دا ټکی هېر نه شي چې دغه

مقاومت که څه هم د هاشميانو د طرفدارۍ بڼه پيدا کړې وه، خو له اره د دغو خلکو د خپلواکۍ غوښتلو پر پټ حس ولاړو. او دليل يې دا دی چې همدغو خلکو د امويانو د امپراتورۍ بنسټ له بيخه ويوست، د عباسيانو د امپراتورۍ بنسټ هم د خراسانيانو په لاس کېښنول شو، ابومسلم خراساني، ابراهيم امام او سفاح يې د بغداد منبر او تخت ته ورسول، خو لکه ومو چې ليدل په خراسان کښې پرله پسې ښورښتونه او اضطرابونه غلي نه شول، او خراسانيان لکه چې له امويانو سره جنګېدلي وو له عباس کورنۍ سره يې هم جګړه وکړه، د خپلواکۍ د ګټلو له پاره په دغه هېواد کښې ملي پهلوانان پيدا شوي وو او که له امويانو سره د خراسانيانو جګړې يوازې د هاشم کورنۍ په طرفدارۍ پورې تړلې وای، نو په بغداد کښې د هاشم کورنۍ او عباسيانو تر ټينګښت وروسته بايد په دغه هېواد کښې جګړه دريدلې وای.

خو خراسانيانو او د افغانستان خلکو يو وخت له پخوانيو اديانو څخه د دفاع په نامه، بل وخت د شعوبيه په نامه، کله د آل هاشم د دوستۍ په نامه او بيا د خوارجو او نورو په نامه يوازې يو مقصد پر مخ بيوه، چې هغه د پردي واکمنۍ له منځه وړل او د خپلواکۍ ګټل وو، چې وروسته يې د آل طاهر او آل سامان او نورو محلي واکمنانو په واسطه هغه ستر مقصد لاس ته راوست.*

د افغانستان د خلکو له پاره دا دوه سوه کلنه جګړه ګټوره وه، په دې مانا چې د اسلام دين يې د هغه له نوي ترقي خوښوونکي روح سره ومانه، خو د پرله پسې جهاد په نتيجه کښې د محلي حکومتو خاوندان هم شول، خراساني ثقافت يې له اسلامي او عربي رواياتو سره ګډ کړ او په راتلونکي کښې د اسلام د خپرولو او دفاع له پاره غښتلي عناصر شول، حال دا چې پخواني دينونه يې زاړه شوي او له خرافاتو او اوهامو ډک وو چې په



هغه عصر کښې د ګټې اخيستو وړ نه وو.

په لومړيو دوو سوو هجري کلو کښې په افغانستان کښې د اسلام ديانت د زردشتي، بودايي او برهمني اديانو ځای ونيو، عربي ژبه او ليکدود په ټول افغانستان کښې خپاره شول خو تر دوو نيمو سوو کالو پورې هم د افغانستان په ختيزو سيمو کښې سنسکريټ ژبه او ليکدود له عربي کوفي ليک سره يو ځای موجود وو، لکه چې هغه ډېر پخوانی ډبرليک چې په توچي (ختيز افغانستان) کښې (٢٤٣هـ - ٨٥٧م - جمادی‌الاولی) پر يوه ډبره لاس ته راغلی په عربي او سنسکريټ دواړو ژبو دی، چې اوس د پېښور په موزيم کښې خوندي دی.

په خراسان، هرات او سيستان کښې هم پهلوي ژبې خپل ځای په همدغه وخت کښې دري ژبې ته پرېښوو، اسلامي علومو تفسير، حديث، رجال او سير هم په افغانستان کښې رواج وموند، او په زرنج، بلخ، هرات، مرو او نورو کښې لوېې اسلامي مدرسې منځ ته راغلې، او هم لوی اسلامي پوهان او نامتو زاهدان لکه امام اعظم ابوحنيفه د ثابت زوی او د زوطي لمسی (د کابل د شمال)، ابن المبارك مروزي محمد د کرام سيستاني زوی (د کرامي مذهب مؤسس)، ابراهيم بن طهمان باشاني (هراتي) محدث، ابو اسحق ابراهيم بن يعقوب جوزجاني محدث، ابراهيم ادهم بلخي صوفي، ابو سليمان موسي جوزجاني حنفي فقيه، او ابراهيم بن رستم مروي د بوحنيفه له ملګريو څخه، ابو داؤد سجستاني د مشهور سنن خاوند، ابو حاتم سهل بن محمد سيستاني محدث، ابو جعفر بلخي منجم، ابو قتيبه مروزي مؤرخ، بشار بن برد تخارستاني عربي شاعر، علي بن الجهم خراساني عربي شاعر او نور له دې هېواده پاڅېدل او د عباسي خلافت دربار ته عجمي مدنيت، آداب او د اداري اصول هم د خراسان خلکو لکه برمکيانو او نورو يوړل، د

عربي ژبې کلمات پر دري ژبه ګډ او اوسنۍ پارسي ځنې جوړه شوه،چې پر دې ځمکه يې عربي او خراساني ګډ مدنيت منځته راوست، يو زيات شمېر بريالي عربان د دې ځمکې په لويو ښارو لکه هرات، زرنج، بلخ، مرو او نورو کښې مېشت شول، په دې توګه د افغانستان له آريايي نژاد سره د عربي (سامي) نسل ګډون او په دغه هېواد کښې د عربي آدابو، دود او دستور خپريدل پيل شول، ددغه ځای پر اوسيدونکيو عربانو سربيره خورا ډېر عربي وسله وال عسکر هم په خراسان کښې په جګړه اخته وو، چې د ابن اثير په وينا د امويانو په وختو کښې د قتيبه په مشرۍ نهه زره د بصرې خلك، لس زره د بکر له ټبره، لس زره د تميم له قبيلې څخه، څلور زره له عبد قيسه، لس زره له ازد څخه، او اووه زره د کوفې له خلکو وو، چې ټول (۴۷) زره خالص عربي نژاده لښکر او اوه زره هم موالي د حيان بنطي تر مشرۍ لاندې وو، قتيبه له سيمه يزو خلکو څخه هم لښکر جوړاوه، لکه چې د خراسان له خلکو څخه يې هم له لسو څخه نيولې تر شلو زرو تنو پورې لښکر راغونډ کړی وو، چې له عربي لښکرو سره يې خدمت کاوه، او له دې څخه څرګندېږي چې په خراسان کښې د عربي دولت وسله وال عسکر تر سلو زرو زيات نه وو، همدغه شمېر لښکر اسلامي فتوحات په ماوراءالنهر کښې د چين تر حدودو پورې رسولي وو.

په اموي او عباسي عصر کښې اسلامي فتوحات د سند او لوېديز هند ګڼ شمېر ښارو ته رسېدلي وو، ځکه نو د هند زياتره پيداوار لکه دارو، عقاقير او بدلي شيان او هندي مصنوعات د ملتان د بيل منصوره ، ويهند ، ارور (رهري)، قندابيل (ګنداوي)، قزدار (اوسنی خضدار)، د توران او د سند د ناوې د نورو ودانو ښارو له تجارتي مرکزو څخه له کشميره نيولې د سند د مهران د سيند تر مجری پورې د زابل سيستان او هرات له لارې ايران،



عراق او عربي متمدنو ښارو ته لکه بغداد، دمشق او نورو ته د تجارت له پاره وړل کېدل. د اصطخري او ابن حوقل په وينا د قزدار، مکران او توران (اوسنی بلوچستان) د فانيذ (سپينې شکرې) تجارت په ټول خراسان او عراق کښې کېده او لکه البشاري مقدسي چې وايي په توران کښې د دانه دارې سپينې شکرې د اوچت ډول لويې کارخانې وې همدا راز د پنجاب تجارتي کاروانونه د اوسني پښتونستان له لارې کابل، غزنه، خراسان بخارا او ماوراءالنهر ته هم تلل او له هغې خوا يې چيني مالونه هند ته وړل، د خراسان او مرو وريښمين ټوکران د سوداګرۍ غوره مالونه وو، چې کاروانونه به يې چين ته هم تلل او د صمد په وينا دغه تجارت په عباسي عصر کښې بشپړه پراختيا موندلې وه چې هندي لوښي، د خراسان وسپنه، د هند او سند عود، قرنفل، نارګيل، د سپنسيو کالي او پيلان د افغانستان له لارې د عربي هېواد لوېديزو سيمو ته وړل کېدل، څنګه چې په خراسان کښې د اسلامي حکومت د ټينګښت له امله امنيت ټينګ و، نو ځکه د سامانيانو په ښارو کښې د چين تجارت هم زيات شو او هم له بلې خوا څرنګه چې د سلطان محمود فتوحاتو د هند ارت هېواد له عربي هېوادو سره ونښلاوه نو د منځنۍ آسيا د هېوادو او ټول خراسان تجارتي بنې هم څرګند پرمختګ وکئ.

ابو زيد سيرافي وايي چې: له هندستانه پرله پسې کاروانونه خراسان ته او له هغه ځايه هند ته ځي او راځي، د دغو لويو کاروانو لار پر زابلستان ده چې له همدغه ځايه قزدار، کيزکان (قلات) او مکران ته تلل او د شال (کويت) او بولان د درې او سيبی (سيوی) له لارې يې له سند سره تجارت کاوه، د ابن اثير په وينا د هرات اوبدليو شيانو ډېر شهرت درلود، چې له همدې کبله يې په عربي ژبه د هراتي کاليو سوداګر ته "هراء" ويل او هغه

وخت چې مقریزي د مصر د مشهورو منسوجاتو د ډولو نومونه اخلي یوه ټوټه د خراساني ټوټې په نامه هم د هغو ښکلیو زربفتو او مخملو او نورو ټوټو په کتار کښې یادوي.له دې ځخه ځرګندېږي چې په مصرکښې عربي صنعتګرانو هم په همغه خراساني نامه او جنسیت د خراساني ټوکرو تقلید کاوه.

د جوزجاني په وینا: بلهاري هم د هند له تجارتي مرکزو ځخه و، چې هلته د هند او خراسان سوداګر استوګن وو او د مشکو سوداګري یې مشهوره وه، همدا راز جلوت، بلوت، لمغان، دینور، ویهند د هند او خراسان تجارتي مرکزونه وو، چې د لومړي یاد شوي ښار تجارتي مالونه ګني (نیشکر)، غوایي اوپسونه، اود وروستي مشك، مرغلرې اوګران بیه کالي وو.

خو د حدودالعالم د مؤلف جوزجاني په وینا خراسان یو ودان او له نعمتو ډك ملك و، چې د سرو، سپینو زرو او غمیو کانونه پکښې وو او د اسونو، کالیو، پیروزو، داروګانو، وریښمنو او مالوچو د پیدا کېدو ځای او تجارتي لوی مرکز یې نشاپور و، د خراسان د ښارو نامتو پیداوار دا وو: له هراته خمتا، شیرخشت او دوښا، له مالن ځخه طایفي وچکې (مویز)، له کروخه کشمش، له مرو ځخه ښه مالوچ (پنبه) قزین جامونه او سرکه، له ګوزګانان ځخه ښه آسان، کراستې، د آس تانګونه، زیلو او پلاس، له تالقانه وچکې او کراسته، له کندرم کراسته، له بلخه ترنج، نارنج، ګني (نیشکر) او نیلوفر، له تخارستانه پسونه، غله او راز راز میوې، له سمنګانه (اوسنی ایبکه) وچکې او میوه، له بنجهیره (اوسني پنجشیره) سره او سپین زر، له غوره پرده، زغره، ډال او ښه وسله، له سیستانه فرشونه، زیلو، خرما او انکوزه، له بسته (د هند لوی تجارتي مرکز) وچې میوې، خمتا (کرباس)، سابون، له درغشه (زمیندارو) زعفران، له بدخشانه سپین او سره زر، بیجاده او لاجورد.



الماني فون کریمر وایي چې: د شبرقان (اوسني شبورغان) ټوري د عباسیانو په هېواد کښې ډېرې مشهورې وې او د هندي ټورو (مهند) تجارت هم له دې لارې کېده، د تالقان کراستې او نور دا واریدو ورین شیانو او قالینو شهرت درلود او د هغه ځای تاوده اوبدلي شیان په تیره بیا چوخه او پټو ډېر کارېدل.

هغه لوی ښارونه چې په خراسان، سیستان او زابل کښې د تجارت مرکزونه وو ددغه هېواد د کرهنې، تجارت او صنعت پر پرمختګ دلالت کوي.

تر کومه ځایه چې د تاریخ له پاڼو ځرګندېږي د بغداد اموي او د آل عباس دولت له دې سیمو ځخه دا لاندې عایدات د خراج، جزیې، زکاة، د غنایمو د خمس او د دولتي ځمکو د عایداتو او عشر په نامه درلودل.

د جهشیاري او ابن خلدون په وینا:

له خراسانه: (۲۸,۰۰۰,۰۰۰) درهمه، (۲,۰۰۰) د زرو ټوټې، (۴,۰۰۰) غاترې، (۱,۰۰۰) مریان، (۲۰,۰۰۰) کالي، (۳۰,۰۰۰) رطله هرېړه.

له سیستانه: (۴,۰۰۰,۰۰۰) درهمه،(۳۰۰) کالي، (۲۰) زره رطله فانید (سپینه شکره).

له توران او مکران ځخه: (۴۰۰,۰۰۰) درهمه.

خو د قدامه بن جعفر په وینا د روغې په وخت کښې د عباسي دولت عایدات په دې توګه وو:

له خراسانه: (۳۷,۰۰۰,۰۰۰) درهمه

له سیستانه: (۱,۰۰۰,۰۰۰) درهمه

له توران او مکران: (۱,۰۰۰,۰۰۰) درهمه، خو د سیستان د تاریخ

مؤلف تر اسلام وروسته د سیستان عمل د پخوانۍ روغې په اساس داسې لیکي:

د سیستان ګورتانو: بست، رخد، کابل، زابل، نوزاد، زمینداور، اسفزار، خجستان، زر زر درهمه (یو ملیون).

د خراسان عمل د اسلام د حد تر پایه د ۲۰۰ هـ په شاوخوا کښې: اته دېرش ملیونه درهمه.

بیا همدا مؤلف د سیستان د خراج په شرح کښې وایي: چې د سیستان ټوله مالیه (۵،۳۹۷،۰۰۰) درهمه دي، چې له هغې جملې څخه (۸۵،۰۰۰) درهمه خالص عایدات او جزیه، او پاته (۵،۳۱۲،۰۰۰) درهمه د خراج ډولونه دي. خوابن خرداذبه د (۲۳۲هـ) په شاوخوا کښې له معتبرو رسمي اسنادو څخه مهم معلومات راټول کړي دي، چې د خلافت اداري او مالیاتي نظام همهغه و چې په خراسان کښې یې تراسلام د مخه رواج درلود. د طلا پیسې دینار وې، چې ۴،۲۵ طلایې درلوده او د سپینو زرو پیسې درهم وې چې ۲،۹۷ سپین زرېې درلودل، په جنسي مالیاتو کښې کیلي رواج و، چې کر(د لومړي توري په پېښن) یې ورته ویل او له ٦ خروارو سره برابر و.

ابن خردا به د خلافت د ختیزو ځمکو حاصلات داسې لیکي:

سیستان : (٦،۷۷٦،۰۰۰) درهمه.

رخج،زابلستان او زمینداور تر تخارستان پورې:(۱۴۷،۰۰۰) درهمه.

سرخس: (۳۰۷،۴۰۰) درهمه.

مروشاهجان: (۱،۱۴۷،۰۰۰) درهمه.

مرورود:(۴۲۰،۴۰۰)درهمه.

بادغیس: (۴۴۰،۰۰۰) درهمه.

هرات او اسفزار او کنج رستاق: (۱،۱۵۹،۰۰۰) درهمه.



پوشنګ: (۵۵۹،۳۵۰) درهمه.

تالقان د مروالرود او بلخ ترمنځ (۳۰۰، ۲۱) درهمه.

غرجستان د هرات او مرو رود او غزنه ترمنځ: (۱۰۰،۰۰۰) درهمه او دوه زره پسونه .

د تخارستان سیمې د بلخ او جیحون ترمنځ :زم(۱۰٦،٦۰۰) درهمه.

فاریاب : (۵۵،۰۰۰) درهمه .

قبروغن (قته غن؟) ۴،۰۰۰ درهمه.

ګوزګانان: (۱۵۴،۰۰۰)درهمه.

بونده: (۲۰۰۰ درهمه)

برمخان او بنجار: (۵۰۰، ۲۰٦) درهمه.

ختلان او بلخ او غرونه یې: (۳۰۰، ۱۹۳) درهمه.

مند جان: (۲۰۰۰) درهمه .

خلم: (۱۲،۳۰۰)درهمه .

روب او سمنګان: (۱۲،٦۰۰) درهمه .

بامیان: (۵،۰۰۰) درهمه.

کابل: (۲،۰۰۰،۵۰۰) درهمه نغد او دوه زره وینځې د شپږ سوو زرو درهمو په بیه.

ریوشاران: (۱۰،۰۰۰) درهمه.

مکران (۱،۰۰۰،۰۰۰) درهمه.

شغنان: (۴۰،۰۰۰) درهمه.

وخان: (۲۰،۰۰۰) درهمه.

کست (خوست): (۱۰،۰۰۰) درهمه.

اخرون: (۳۲،۰۰۰) درهمه.

په دغو عایداتو کښې هغه پیسې چې له جزیې څخه لاس ته ورتلې، له هندوانو او نورو آسماني دین پلویو نامسلمانو څخه اخیستل کېدې، د امام ابو یوسف په وینا په خراسان کښې د هر یوه سړي پر سر درې دیناره ټاکل شوي وو، چې بې وزلي او غریبان په کښې شامل نه وو، دا پیسې د اموي عبدالملك په وختو کښې ټاکل شوي وې. خو د خراج په ډول کښې د مقریزي په وینا په اموي عصر کښې د تاکستانې یو جریب پر سر لس درهمه، له نخلستان څخه اته درهمه او د ګنیو له کښت څخه شپږ درهمه، له مېوه لرونکي ځمکې څخه پینځه درهمه ، د غنمو د کښت له ځمکو څخه څلور درهمه او د اوربشو له ځمکې څخه دوه درهمه اخیستل کېدل.

اوس موږ له پورتنیو تاریخي کتنو څخه دې پایلې ته رسېږو چې د خراسان له ځمکو څخه له نیشاپوره نیولې د سند ترسینده او له جیحو نه تربحیره عرب پورې د عربي دولت ټول مالي عواید د قدامه او د سیستان د تاریخ د ناڅرګند لیکوال په وینا د ۴۴ ملیونو درهمو په شاوخوا کښې، د ابن خرداد به په وینا د ۴۵ ملیونو درهمو په شاوخواکښې وو او که د مقریزي د وینا په اساس د هرو لسو درهمو وزن له ٦ څخه تر ۷ مثقالو پورې سپین زروګنو او هر مثقال پینځه افغانۍ بیه ولرو، نو ټول به د ۲۲۵ ملیونو افغانیو په شاوخواکښې و ګڼل شي.

د عربي دولتو د مالي درامد په اړه راز راز معلومات شته ، خو له لګښتونو یې خبر نه یو. یوازې د سیستان د تاریخ ناڅرګند لیکوال په سیستان کښې د دولت د مصارفو یو دقیق فهرست لیکلی دی چې له هغه څخه په هغه وخت کښې د حکومت لګښتونو ډولونه او اندازه څرګندېدای شي او موږ هغه راوړو، چې د عربي حکومت د ولایاتو په یوه ولایت کښې د دولتي عوایدو او مصارفو څه نا څه یوه کوچنۍ موازنه د اوسني عصر د



مروجو بودجو پراساس لاس ته راشي:

نوموړي مؤلف د سیستان د خراج عمل د: (۵،۳۹۷،۰۰۰) درهمو په شاوخواکښې لیکي او لګښتونه یې داسې بیانوي:

خاص د سلطان لپاره (۲،۰۰۰،۰۰۰) درهمه.

د تیموق ؟جوړول: (۲،۰۰۰،۰۰۰) درهمه (ښایي چې د هیلمند د رود بند وي).

د کوره جوړول (۴،۰۰۰) درهمه (موخه یې سېلاب وړې ځمکې دي).

د باړې جوړول (۱۲،۰۰۰) درهمه (د ښار د کلا جوړول مقصد دی).

د نورو کلاو جوړول (۵۰،۰۰۰) درهمه.

د بندیانو له پاره: (۳۰،۰۰۰) درهمه.

په جامع جومات کښې د روژې لګښتونه (۳۰،۰۰۰) درهمه (هرقاري او د مسجد خادم ته د روژې پر میاشت ۲۰ درهمه)

د موذنانو له پاره: (۲۰ ،۰۰۰) درهمه.

په هرکال کښې د سلو مریانو ازادول: (۵۰۰) درهمه.

دروغتون له پاره: (۱۰،۰۰۰) درهمه.

د بندونو ترل: (۲۵،۰۰۰) درهمه.

د شرط (پولیس) له پاره: (۲۵ ،۰۰۰) درهمه.

د خراج د بندار (د مالیې رییس) او دهغه د منشیانو له پاره: (۵۰،۰۰۰) درهمه.

د صاحب مظالم (عدلیه) له پاره: (۲۰،۰۰۰) درهمه.

د ریګو او شګود ترلو له پاره: (۳۰ ،۰۰۰) درهمه.

پرت (د رودو د خاورین بند له پاره):(۵۰ ،۰۰۰) درهمه.

د هیلمند د پلو ، لارو او کښتو د ویالو له پاره: (۳۰ ،۰۰۰)

درهمه.

پر پورتنيو ټاکل شويو لګښتونو سربېره د سيستان د تاريخ ليکوال دا اشاره هم کوي چې نور پاتې عايدات يې د ابناء سبيل او ضعيفانو او غريبانو د کاليو او نفقې او نورو هغو مصارفو له پاره سپمول او ساتل چې د والي په اختيار کښې وو. سربېره پر هغو سکو چې په اموي او عباسي دولتو کښې د خلفاو په نامه په ټولو اسلامي ولاياتو کښې وهل کيدې په خراسان کښې د سند ترسينده د پخوانيو نامسلمانو دولتو ځينې سکې هم دود وې، او کله هم دګندهارا، پنجاب او باختر د ساساني پاچهانو يا بودايي شاهانو پرپخوانيو سکو د خليفه نوم او کلمه طيبه هم وهل کيدل.

د خلافت واليان چې خراسان ته راتلل دوی حق درلود چې په خپل نامه سکه ووهي. لکه حميد د قحطبه زوي (د ١٥١هـ پر شاوخوا) او عبدالملك د يزيد زوی. (د ١٥٩هـ پر شاوخوا)، جعفر د محمد زوی. (د ١٧١هـ په شاوخوا کښې) علي د عيسی زوی. (د ١٨٠هـ پر شاوخوا) او هرثمه داعين زوی. (د ١٩١هـ پر شاوخوا) او غسان د عباد زوی (د ٢٠٢هـ پر شاوخوا) د بغداد د عباسيانو د وخت هغه واليان وو چې په نيشاپور کښې يې په خپلو نومو سکې وهلې دي، چې نمونې يې شته، او هم ابو مسلم خراساني د (١٣٣هـ په شاوخوا کښې) د ابو مسلم عبدالرحمن بن مسلم په نامه په مروکښې سکه وهلې ده چې تراوسه شته .

د اسلامي لښکرو له فتوحاتو سره سم طبعاً د عربي دولت سکې په ټولو مفتوحه هېوادو کښې رواج شوې او لکه مقريزي چې ليکي: په اسلامي عصر کښې حضرت عمرفاروق د لومړي ځل له پاره د (ساساني) کسروي درهمو په وزن او شکل سکې خپرې کړې او پرهغو باندې يې "لااله الاالله وحده و محمدرسول الله" وليکل، د دغو درهمو وزن هر لس درهمه شپږ



مثقاله سپين زر وو، حضرت عثمان پر هغو باندې الله‌اکبر وليکه، د امير معاويه په وخت کښې زياد د ابوسفيان زوی په بصره او کوفه کښې داسې درهمونه رواج کړل چې هرو لسو درهمو يې اووه مثقاله سپين زر وزن درلود، او پرهغه سکه چې په دمشق کښې د امير معاويه له خوا وهل شوې، د داسې انسان بڼه ليدل کېږي چې توره يې پر غاړه ده په اموي عصر کښې مصعب د زبير زوی هم په عراق کښې د اموي درهمو پر بنسټ سکه ووهله او عبدالملك اموي هم په عراق کښې د حجاج په ذريعه مصورو درهمونو دود لاره شپږ دانګ(دوانيق)وو او پرهغو باندې يې "قل هوالله احد" هم ليکلي وو.

تر (٢٠٠هـ) وروسته په خراسان کښې د دغه ځای د داخلي پاچهانو سلسله منځته راغله او د خراسان پاچاهانو لکه طاهريانو، سامانيانو، صفاريانو او غزنويانو چې د عباسي خليفه ګانو هم مهالي وو، يوه په نشاپور، طوس، هرات، زرنج، بست، غزنه، بخارا، سمرقند، مرو، بلخ، ری او د خپلو هېوادو په نورو ښارو کښې دارالضرب درلود او د سپينو او سروزرو سکې يې په کوفي ليکدود، دود کړې وې چې د پاچاو خليفه دواړه نومونه ورباندې ليکل کيدل، د سلطان محمود ځينې سکې د سنسکريت په ليکدود هم وهل شوې دي، او ښايي چې داسکې د هند په هغو ښارو کښې وهلې شوې وې چې سلطان محمود فتح کړې وو.

د اصطخري او ابن حوقل په وينا د افغانستان په ختيزو سيمو کښې تر سنده پورې يوه سکه د قنهري قنهريات (ګندهاري) په نامه وه چې د کابل او راولپنډۍ ترمنځ (ګندهارا) ته منسوبه وه او اسماعيليه او لوديه حکمرانانو په ملتان کښې وهلې وه، دا سکه له عراقي پينځو درهمو سره برابره وه او همداشان د خالصو سرو زرو سکه له هندي دريو درهمو سره انډول وه.

لکه مقدسي چې اشاره کوي، په منصوره، ملتان، ګندهارا او توران

کښې د "من" تول د مکې له منه سره یو، و. او بلې پیمانې ته یې "کیجی" ویل، چې په کیج او توران کښې یې تول له څلوېښتو منو سره برابرو.

خو د اموي هېواد سیاسي ویش داسې و چې: د خراسان او ماوراء النهر ټولو مفتو..ه ځمکو تر کابل، پنجاب او سنده په عراق عجم پورې اړه درلوده دعراق د والي له خوادوه تنه عاملان رااستول کېده چې دیوه مرکز د خراسان له پاره مرو او دبل مرکز د کابل، پنجاب او سند لپاره و، خو دغه ویش په عباسي دوره کښې چې په افغانستان کښې اسلامي فتوحات پراخ شول، تغییر وموند او پر څو نورو مهمو او اساسي ولایتو وویشل شو: لومړی دخراسان ولایت چې له مرو او هرات څخه تربلخ او تخارستان پورې پروت و.

(د خراسان نقشه دې وکتل شي - ۳۹).

دوهم د سجستان ولایت چې ترکابله پورې رسیده.

درېیم توران ولایت چې ترمکران او سند پورې رسېده او په دغو ولایتو کښې مالي نظام او د مالیو د اخیستلو دفترونه د هغه له وخت ځانګړیو اداري اصطلاحاتو سره موجودو، خوارزمي په دې اړه یوه ګټوره شرح لیکلې ده، او د ځمکو خراج یې هم پردرې ډوله:

لومړی محاسبه (نغدي یاجنسي)

دویم مقاسمه (پر پیداوار مالیه)

درېیم مقاطعه (هغه مالیه چې د حکومت او جاګیر دار ترمنځ ټاکله) حکومت ته ورکاوه، او په ټولو ولایاتو کښې د خراج (مالیاتو) او برید (پوسته) او جیوش (لښکرو) نفقاتو د یوانونه، رسایل (مکاتبات)، صدقات، مصادرات، اوقاف، رواتب (تنخواه) شرطه (پولیس) قضا (عدلیه) او نور موجود و، د ابن خلدون په وینا لیکونکي (کاتب) مهمه عهده درلوده چې د عربي حکمدارانو ځانګړې باورې سړي او صاحب السرو، څو تنه یې په یوه



وخت کښې دغه کارته ګمارل، رسمي فرمانونه اواسناد ټول د کاتبانوله خوا لیکل کېدل او استول کېدل او هغه کار چې نن یې وزیر او سکرټر کوي هغه وخت کاتبانو ته سپارل کېده، ترکاتب وروسته حاجب د وزیر د دربار وظیفه درلوده، چې زیاتې چارې د حاجب په واسطه اجراکېدې او عساکر چې د دیوانالجند یادیوان الجیش له خوا اداره کېدل عموماً د الفرسان (سپاره) او الرجاله (پلي) پر ټولګیو وېشل شوي او وسله یې توري، زغره، خول، نېزه، غشی، لیندی، منجنیق، د بابه او ضبور (یو ډول ټانک) وو: د عسکرو کالي څټ، لنډ پرتوګ او څپلۍ (لکه د غرو د پښتنو کالي) وو، د لښکر کتارونه پر پېنځه ډوله وو:

لومړی قلب (منځ ) چې په هغه کښې لوی مشر او قاید و.

دویم میمنه (ښی خوا).

درېیم میسره (کینه خوا).

څلورم ډبرلیك یا مقدمه (د مخه خوا) له بریالیو سره.

پېنځم ساقه ترلښکر وروسته. اود لښکرو مشران هم غالباً عربان وو.

خود قضا نظام په اموی عصر کښې داسې و چې:

د صحابه وو او تابعینو، عالمان او صالحان د خلیفه له حضوره او یاد ولایت د حکمرانانو له خوا په مهمو ښارو او مرکزوکښې د قاضیانو په توګه ټاکل کېدل او دغو قاضیانو د قران، سنت، اجماع او قیاس یعنی له څلور ګونو ادله وو سره سم د خلکو تر منځ شخړې حلولې، په خپل اجتهاد کښې آزاد، خو د شریعت د احکامو په پلي کولو کښې د امیرانو د سیاست له اغېزې څخه خپلواك وو او د خلیفه عمر بن عبدالعزیز په وینا یې دا پېنځه صفات (پوهه، بې تمه والی، زغم (حلم)، په ائمه پسې اقتدا او د پوهې او رایې له خاوند سره ګډون) درلود، پرمدونو مجلو یې د قضا فیصلې لیکلې،

خینو قاضیانو د حکومت تنخانه اخیستله، هغه چاچې اخیستله د کال تر زرو دینارو او د میاشتې تر لسو دینارو پورې رسېده، همدا راز د امر معروف او نهی منکر، د تول او وزن، د بازار د معاملو د څارنې او د دیني احکامو د تبلیغ له پاره محتسبان مقرر وو او په تیره بیا عربي پوهان او دامت صالحان د اسلام ددین د تبلیغ له پاره د خراسان مفتوحه هېوادو او په هغو پورې تړلیو سیموته راتلل، لکه چې د (۴۷هـ) په شاوخوا کښې ربیع الحارثی عربي حکمران په سیستان او زابلستان کښې د حسن بصري (د خپل وخت د لوی عالم) په مرسته اسلامی قوانین پلي کړي وو.

اخځونه:

حدودالعالم، د السیاسي تاریخ الاسلام - عربي - ۳ټوکه، البشاری اصطخری، د البلاذری‌فتوح، کتاب الوزرا والکتاب، د ابن خلدون مقدمه، د سیرافی سفرنامه، د اموی عصرد تجارت تاریخ، ابن حوقل حضارة الاسلام کتاب الخراج ابن قدامه، کتاب الهندو اسند، د امیر علی مختصر تاریخ عرب، فتوحات عرب در آسیای میانه، الکامل ابن اثیر، تاریخ ادبیات فارسی د صفا، د ابن ندیم الفهرست، د پېښور د موزیم دبرلیکونه، تاریخ سیستان، تاریخ تمدن ایران ساساني د نفیسي، د امام ابویوسف کتاب الخراج، د خلفاؤ په عصر کښې د مشرق تهذیب (اردو)، معجم الانساب زمباور، طبقات ناصری، مفاتیح العلوم، تاریخ التمدن الاسلامی د جرجی زیدان، تهذیب و تمدن اسلامي درې ټوکه اردو، نقودالاسلامیه د مقریزی، شرق د رتحت ادارهٔ خلافت، تاریخ عرب د هتي، د ګوستاو لوبون تاریخ تمدن عرب.

# دریمه برخه

## خپلواکه اسلامي دوره

## طاهریان

(۲۰۵ - ۲۵۹ هـ)

د دغه کهاله لومړی سړی طاهر د حسین زوی، د مصعب لمسی، د رزیق کړوسی او د ماهان کوسی و چې د پوشنګ (د هرات لوېدیز خوا ته نني زنده جان) له ځواکمنو کهولو څخه و. مصعب د رزیق زوی د بلاغت او ادب نومیالی پوه و چې د عباسیانو په وخت کښې د پوشنګ حاکم، او تر هغه وروسته یې زوی حسین ته د (۱۸۰ هـ - ۷۹۶ ع) په شاوخوا کښې د پوشنج حکومت لاس ته ورغی، حسین چې پر (۱۵۹هـ) کال په پوشنج کښې زیږېدلی و او د عباس کورنۍ له درباره د شام او بغداد حکمراني هم ورسپارل شوې وه، پر (۱۹۹هـ) کال مړشو. د ده زوی طاهر د خراسان د آزادي پالیو په چاپېریال کښې وده وکړه او په اسلامي خراسان کښې یې د لومړني

ملي حکومت بنسټ کېښېښوو. د خپلواکۍ د لارې د هغو تېرو فداکارانو ستر آرمان د همدغه ننګیالي په مېړانه لاس ته راغی چې دوه سوه کاله یې د دغه ستر مقصد له پاره زیاریوست، په دې تفصیل:

د هارون الرشید تر مړینې وروسته یې د دوو زامنو "امین او مامون" ترمنځ اختلاف پیداشو، امین چې په بغداد کښې خلیفه شوی و، علي د ماهان زوی یې له (٦٠) زریز لښکر سره د خپل ورور جنګ ته واستاوه (۱۹۸هـ) خو مامون چې په خراسان کښې و، څلور خراساني لښکر یې د همدغه طاهر پوشنجي په مشرۍ ولېږل، او د بغداد د لښکر مشر علي د طاهر په لاس ووژل شو، د امین لښکر ماته وکړه، طاهر پر بغداد یرغل او د امین سر یې پرې کړ، مامون یې د بغداد پرتخت کښیناوه، چې ستر برم یې وموند، د دغو خدمتو په بدل کښې لومړی د شام حکومت او د بغداد کوتوالي وروسپارل شوه او بیا د خراسان حکمراني د ذوالیمینین له لقب سره ورکړل شوه. (۱۹۹ هـ - ۸۱۴ م).

طاهر چې خراسان ته راورسېد لومړی یې د خراسان د مرکزیت په ټینګښت او د ادارې په یووالي زور واچاوه، او په دوو دریو کالو کښې یې کرمان، سیستان، هرات، نشاپور، مرو، جوزجان، بلخ او تخارستان په خپل مرکز پورې وتړل له دغو مهمو فتوحاتو څخه تر (۲۰۵ هـ - ۸۲۰ هـ) پورې فارغ شو، د خپلواکۍ نقشه یې طرح کړه خراسانیانو ته یې پخوانی برم ور په زړه کړ او وروسته تر هغه چې د ولایاتو له مرکز څخه ډاډه شو، او خراسانیان یې د ځان مله کړل د (۲۰۷ هـ - ۸۲۲ ع) کال د څلورمې خور پر ۲۴ مه د جمعې پر ورځ یې د خراسان د خپلواکۍ اعلان وکړ او د جمعې په خطبه کښې یې د مامون نوم یاد نه کړ.

دا تاریخي ورځ د خراسان په تاریخ کښې لومړۍ هغه ده چې د



آزادۍ په لار کښې د دې سیمې د خلکو تر دوو پېړیو زیار وروسته یې هیله پوره شوه او په خراسان کښې د ملي حکومت لومړی بنسټ د طاهر پوشنجي په لاس کېښېښوول شو خو له بده مرغه دا زړور او ازادي پال طاهر پر همدې شپه وفات شو او د ده زوی طلحه چې یو پوه سړی او د پلار له خوا د سیستان امارت ورسپارل شوی و، د پلار پر خپلواک مسند کښیناست، شپږ کاله یې په عدالت حکومت وکړ، خلک یې وروزل، د بغداد د خلافت دربار هم د ده حکومت په رسمیت و پیژاند او د خراسان د خپلواکۍ غوښتونکیو خلکو له هیجان څخه وبېرېد.

طلحه پر (۲۱۳ هـ - ۸۲۸م) کال په سیستان کښې له خارجي حمزه سره ونښت خو پر همدغه کال دافاضل، متدین او عادل امیر مړ شو، ورور یې عبدالله د طاهر زوی (پر ۱۸۲هـ زیږېدلی) چې څه موده په شام او مصر کښې حکمران و، تر هغه وروسته یې د بغداد د دربار له خوا په پارس کښې د بابك خرمي پر خلاف جګړې کولې؛ امیر شو؛ د بغداد دربار دی رسماً د خراسان امیر وپیژاند. د عبدالله رویه د بغداد له دربار سره ډېره صمیمانه وه، او تل د خلافت له دښمنانو سره جنګېده، د عربي دولت دښمنان یې له منځه یوورل. لکه پر (۲۱۹هـ - ۸۳۴م) کال چې یې په تالقان کښې امام زاده محمد د قاسم زوی بندي کړ او خلیفه ته یې واستاوه او پر (۲۲۴هـ - ۸۳۸م) یې مازیار د قارن زوی د طبرستان حکمران د خلافت په ګټه مات کړ، د ده حکمدارانو په سیستان کښې څو واره د هغه ولایت ښورښتونه آرام کړل. عبدالله اووه لس کاله پر ټول خراسان او د افغانستان پرلوېدیزو سیمو حکومت وکړ، او پر (۲۳۰هـ - ۸۴۴م) کال مړشو، دی ادیب، عالم او عمران خوښوونکی پاچا و، د ده په وختو کښې پر (۲۲۴هـ - ۸۳۸م) کال په خراسان کښې خورا زړه بوږنوونکې زلزله وشوه، پر (۲۲۰ هـ - ۸۳۵م) کال په

سیستان کښې سخته وچ کالي راغله او د هیلمند اوبه وچې شوې وې.

تر عبدالله وروسته یې زوی دویم طاهر تر ۱۸ کالو پورې حکومت وکړ د ده په وخت کښې د سیستان خلك د صالح د نصر زوی او یعقوب لیث په مشرۍ پورته شول او د صفار کورنۍ د امارت بنسټ کښېښوو شو، په دې مانا چې د طاهر له خوا ابراهیم د حضین زوی د سیستان حکمران و، ابراهیم خپل نااهله زوی احمد نومی د بست والي وټاکه، احمد له عثمان بن نصر او احمد بستي او بشاربستي سره چې د هغه ولایت نامتو کسان وو ونښت، د بست او سیستان خلکو له طاهریانو څخه مخ وګرځاوه،او پر (۲۳۸هـ) کال یې په بست کښې له صالح سره بیعت وکړ، په دغه بحران او فتور کښې یعقوب لیث صفاري قوت ومونډ او پر (۲۴۶ هـ - ۸۶۰ ع) یې سیستان د طاهر له واکمنۍ څخه ویوست او په خپله طاهر پر (۲۴۸ هـ - ۸۶۲ ع) کال مړشو.

محمد د دویم طاهر زوی او دده ځای ناستی بې کفایته عیاش او تنبل سړی و، یعقوب لیث صفاري له سیستانه پرده بری ومونډ او هغه یې پر (۲۵۹ هـ - ۸۷۲ ع ) کال بندي کړ، له دې کورنۍ څخه ابراهیم د محمد زوی، د طلحه لمسی، د عبدالله کړوسی او د طاهر کوسی تر ۲٦۸ هـ پورې په مرو کښې و، چې پر ۲۷۸ هـ کال خجستاني هغه مات کړ او پر ۲٦۷ هـ کال احمد د محمد زوی په خوارزم کښې او له ۲۵۹ هـ څخه تر ۲۸۲ هـ پورې دریم طاهر د محمد زوی په نشاپور کښې حکمرانان وو، خو د دغه کهاله پېنځو پاچهانو پر لوېدیز او شمالي افغانستان واکمني درلوده، د افغانستان په جنوبي او ختیزو ولایاتو کښې رتبیلانو او کابلشاهانو پاچهي کوله.

د طاهریانو کهاله د بغداد خلافت له مرکز سره دوستانه اړیکې ساتل، د دوی درباري او ادبي ژبه عربي وه او په افغانستان کښې یې د زردشتي دین د پایخوړ پر خلاف زیار ویوست لکه پر (۲۱۳هـ - ۸۲۸ ع) کال



چې عبدالله زردشتی کتابونه وسېزل.

دافغانستان د طاهریانو نومونه دادي:

*۱ - طاهر د حسین پوشنجي زوی (۲۰۵ - ۲۰۷ هـ).

*۲ - طلحه د طاهر زوی ( ۲۰۷ - ۲۱۳ هـ).

*۳ - عبدالله د طاهر زوی (۲۱۳ - ۲۳۰ هـ).

*۴ - دویم طاهر د عبدالله زوی (۲۳۰ - ۲۴۸ هـ).

۵ - محمد د دویم طاهر زوی (۲۴۸ - ۲۵۹ هـ).

٦ - دریم طاهر محمد ( ۲۹۵ هـ).

یادښت:

الف: د طاهریانو د ټول کهاله شجره د دغه مخ مخامخ ته په ۴۰ مه نومره لیکل شوې ده.

ب: دا (*) نخښه د هغو پاچهانو له نومو سره اېښولې شوې ده چې سکې یې شته.

اخځونه: طبري، زین الاخبار، تاریخ سیستان، روضه الصفا - ابن اثیر طبقات ناصري - تاریخ ایران دورهٔ طاهریان - طبقات سلاطین اسلام، معجم الانساب زمباور - تاریخ ادبیات ایران د دکتور صفا - تاریخ اجتماعی ایران تاریخ ادبیات فارسي د سعید نفیسي.

# صفاریان

## (۲۴۷ - ۳۹۳هـ)

د امویانو او عباسیانو په وختو کښې سیستان تل د سیاسي هیجانونو مرکز و، په تیره بیا د خوارجو فرقې په دغه ولایت کښې ځای نیولی و او د عیارانو (د فتوت د خاوندانو) ډلې چې د دننیو سیاسي او ټولنیزو ګوندونو په شان یوه ډله وه، هم په سیستان کښې ځواکمن شول، له دې ډلې څخه یو سیستانی میړه چې د لیث زوی یعقوب و، او د سیستان د قرنین په کلي کښې زیږېدلی سر ته را ووت، او له خپل ورور عمرولیث سره د سیستان د حکمران صالح د نضر د زوی په خدمت کښې داخل شو، له درهم بن نضر سره (د ابن خلکان په وینا درهم د حسین زوی د مطوعه زعیم) چې د صالح له خوا د سیستان حکمدارو، سپهسالارۍ ته ورسېد؛ یعقوب زړور او داعیه غوښتونی سړی و او غوښته یې چې په خراسان او سیستان کښې یو غښتلی حکومت جوړ کړي، ځکه چې په دغه وخت کښې طاهریان کمزوري شوي وو او د بغداد له ځواکمن خلافت سره یې د مقاومت توان نه درلود. هغه و، چې یعقوب د (۲۴۷هـ - ۸۶۱م) کال د محرمې پر ۲۵ د دوشنبې پر ورځ د خپلو وسلوالو عیارانو په مرسته درهم بن نضر او خوارج مات کړل او د سیستان له خلکو یې بیعت واخیست، صالح له زاول شاه رتبیل څخه مرسته و غوښته، خو یعقوب رتبیل وواژه او بست یې ونیو، په



دې جګړه کښې شپږ زره تنه ووژل شول، درېش زره بندیان، زښت ډېر پیلان او زیات غنیمت د یعقوب لاس ته ورغلل.

صالح د نضر زوی د والشتان (د کندهار د شمال) خوا ته پرشا شو، او زابل ته یې پناه یووړه، خو په پای کښې د یعقوب لاس ته ورغی او په زندان کښې ووژل شو. په دې جګړه کښې د رتبیل ورور او خپلوان د بندیانو په توګه سیستان ته بوتلل شول (۲۵۱ هـ - ۸۶۵ ع) او پر همدغه کال یې عمار خارجي د سیستان په نیشك کښې له منځه یووړ، پر (۲۵۲ هـ) صالح بن حجر د رتبیل د تره زوی د رخج په کوهژ (کوهك) کښې یاغي شو، یعقوب هغه تر (۲۵۳هـ) پورې وواژه او پر همدغه کال یې والشتان، زمینداور او بست هم تصفیه کړل او د تګین آباد (اوسنی کندهار ته نژدې) امیر یې وځاپه، او ترهغه وروسته په هرات کښې د طاهریانو له حکمران سره و نښت او هرات یې هم ونیو، د (۲۵۴ هـ) په شاوخوا کښې یې کرمان هم لاس ته راوست او پر (۲۵۷ هـ) کال یې د رتبیل له زوی سره چې له زندانه تښتېدلی و، په رخج کښې جګړه وکړه، خو د رتبیل زوی کابل ته وتښتېد، چې پر (۲۵۸ هـ) کال یعقوب رخج زابل، (د کندهار) پنجوایي، غزنه او کابل ونیول او د ګردیز پر کلا یې چې د ابومنصورافلح د محمد د زوی او لویکی خاقان د لمسي په لاس کښې وه یرغل وکئ، افلح د کال لس زره درهمه خراج ومانه او یعقوب له هغه ځایه بامیان، تخارستان او بلخ لاس ته راوړل، پر کابلشاه په قهرشو او پیرو زوند (د کندهار په شاوخواکښې) او بست یې، ونیول سیستان ته ولاړ، له هغې سکې څخه چې پر (۶۲۰هـ - ۸۷۲م) یې په بنج هیر (د کابل په شمال کښې اوسنی پنجشیر) کښې وهلې وه څرګندېږي چې ټول کابلستان یې نیولی و.

پر (۲۵۹ هـ) کال یعقوب د خارجي عبدالرحمن د ځپلو له پاره د

هرات کروخ ته ولاړ او هغه ولایت یې ونیو، پر همدغه کال عبدالله د محمد زوی او د صالح سګزی لمسی (اوس هم د سیستان په شاوخوا کښې د پښتنو یوه پښنه ساکزی نومېږي) د یعقوب پرخلاف په سیستان کښې پورته شو، خو یعقوب مات کړ نیشاپور ته وتښتېد او آل طاهر ته ورغئ، یعقوب ورپسې شو، آل طاهر او سګزي یې له منځه یووړل (۲۵۹ هـ تر ۲۶۳ هـ پورې) او لکه ابن خلکان چې وایي" د شاوخوا ټول ملکان لکه د ملتان ملك، د رخج ملك، د طبسین ملك، د زابلستان ملك، د سند او منکران ملکان یې د ځان تابع کړل".

تر هغو وروسته یعقوب په پارس کښې جګړې وکړې او د ۲۶۵ هـ ۸۷۸م) کال د شوال پر ۱۴ د دوشنبې پر ورځ تر ۱۷ کالو پاچهۍ وروسته د قولنج په ناروغۍ مړ شو.

په اسلامي دوره کښې یعقوب لومړنۍ عادل، واکمن او بخښونکی حکمران و، چې د افغانستان ټول هېواد یې د آمو له سینده ترسیستان او مکرانه او له بادغیسه، مرو او هراته تر کابل ګردیز، زابلستانه ونیو، د عسکرو او وسلو په تنظیم او د خزانو پر ډکولو یې زیار ویوست، ځکه نو مسعودي دی د نړۍ له سترو پاچهانو څخه ګڼلی او یو لوی فصل یې د ده د ښه سیاست او ښه تدبیر په ستاینه کښې لیکلی دی او وایي چې: د ده په لښکرو کښې پېنځه زره بختي اوښان اولس زره صفاري غاترې وې د ده تر مړینې وروسته د سیستان په خزانه کښې پنځوس ملیونه درهمه او اتیاملیونه دیناره وو، ده پخپل عجمی نژاد ویارل او په هغه منظوم لیك کښې چې د بغداد خلیفه المعتمد ته یې ولېږه، د عباسیانو کهاله ته یې اخطار ورکړ چې له دغه هېواده ووځي که نه د توري او قلم په زور به وایستل شي.

لنډه داچې د یعقوب ترمړینې وروسته عمرولیث د ده ورور یې پرځای



کښېناست، د خلافت دربار هم هغه د خراسان، سیستان، فارس، کرمان، هند، سند او ماوراءالنهر په پاچهۍ ومانه، په لومړیو وختو کښې د ده سیاسي اړیکي له عباسیانو سره دوستانه وو، خو ترلږې مودې وروسته المعتمد خلیفه دده عزل اعلان او دده قلع او العن یې د خراسان د یوې ډلې حاجیانو په مخ کښې بیان کړ.

د (۲۶۶هـ - ۸۷۹ ع) کال په شاوخوا کښې د طاهري پاچهانو د امیرانو له پایڅوړ څخه یوه سرې په خراسان کښې پاڅون وکړ داسې احمد د خجستانی عبدالله زوی و، د هرات او سیستان تربریدونو پورې پرمخ ولاړ، خو عمرولیث هغه مات کړ (۲۶۷ هـ - ۸۸۰م) او تردې وروسته رافع د هرثمه زوی چې د ابن خلکان په وینا د معتمد خلیفه له خوا لمسیده په خراسان کښې د عمرو پر خلاف پورته شو، هرات او فراه یې ونیول، او د عمرو له لیرې والي څخه یې چې په فارس او عراق کښې جنګېده ګټه واخیسته، خوبیاهم عمرو پرهغه برى و موند، رافع ماوراءالنهر ته ولاړ او له ساماني پاچا نصربن احمد څخه یې مرسته وغوښتله او د خراسانیانو زیات یاغیان د ده ملګری شول، خو عمرو دی له خراسانه ترخورازم پورې پرشا وشاړه او هلته پر (۲۸۳ هـ - ۸۹۶م) کال د عمرولیث د حکمران محمد بن عمرو خوارزمي په لاس ووژل شو. د خراسان تر تصفیې وروسته محمد بن حمدان د عمرولیث له خوا د زابلستان والي شو، او بردعالی د غزني عامل و، په دغه وخت کښې د ګندهارا دوو تنو پاچهانو ناسد او الماٰن (په تاریخ سیستان کښې همدارنګه راغلي) پر غزني یرغل وکړ، پر داسې مهال چې عمرولیث په بلخ کښې د (۷۰) زرو نیزه والو سپرو په مرسته د ساماني اسماعیل بن احمد له لښکر سره په مقابله بوخت و، تر هغې چې پر (۲۸۷هـ - ۹۰۰م) کال په یوه جګړه کښې لاس تړلی بغداد ته واستول شو، او هلته د (۲۸۹هـ -

۹۰۱م) په شاوخوا کښې ووژل شو، عمرو هم عادل او عمران خوښی پاچاو، چې زر رباطه (د مېلمنو او بې وسو خلکو لپاره دمه ځایونه)، پینځه سوه لوی جوماتونه او یو زیات شمېر پلونه او لارې یې جوړې کړې، د ابن خلکان په وینا د هېواد د چارو په ښه تدبیر او ښه سیاست کښې یې ساری نه درلود او لکه ابن اثیر چې یې څرګندوي د خپل هېواد او د خپل لښکر او د لښکر د افسرانو په احوال ډېر ښه خبر و، هېڅا نه شوای کولای چې د عمرو له اجازې پرته چاته سزا ورکړي.

تر عمرولیث وروسته د صفاریانو دولت کمزوری شو او بلخي سامانیانو په شمالي افغانستان او هرات باندې د سیستان تر بریدونو برې وموند، د صفاریانو پاتې کسان ترڅه مودې پورې په سیستان کښې حکمرانان وو، لکه په (۲۸۹هـ - ۹۰۱م) کال چې د عمرو لمسیانو طاهر د محمد زوی او د هغه ورور یعقوب د امارت خاوندان وو، دوی یوڅه موده په پارس کښې په جګړه اخته وو او په (۲۹۱هـ - ۹۰۳م) کال تربست او رخج پورې پرمخ ولاړل تر هغې چې په (۲۹۶هـ - ۹۰۸م) کال لیث د علی زوی د لیث لمسی له دې کهوله میدان ته راووت او طاهر او یعقوب یې د عمرولیث د مریي سبکري په مرسته ونیول او بغداد ته یې واستول، دی په خپله د (شیرلباده) په نامه پرسیستان امیر شو، تربست، کش او فراه پورې د ده په نامه خطبه وویل شوه، لیث خپل ورور معدل زابلستان ته واستاوه او پر (۲۹۷ هـ - ۹۰۹م) کال یې تر بست رخج (رخد) او کابل پورې مال واخیست او پر (۲۹۸هـ) کال یې په بست کښې په خپل نامه سکه هم ووهله.

خو په پای کښې لیث پر ( ۲۹۸ هـ - ۹۱۰م) کال په یوه جګړه کښې د سبکري په لاس چې د المقتدر خلیفه له خوا یې ملاتړ شوی و ورغئ، او په بغداد کښې بندي شو او د سیستان خلکو له دې کورنۍ څخه د علی یا



ابوعلی محمد د محمد د زوی او د لومړی لیث له لمسي سره پر (۲۹۸ هـ) کال بیعت وکئ، او تربست، غزني او کابل پورې یې هم د ده په نامه خطبه وویله، خو محمد د سیستان ساماني حکمران مات کئ، او بست ته ولاړ څو چې د ساماني احمد د اسمعیل د زوی جنګیالیو دی پر (۲۹۸ هـ) کال په رخج کښې ونیو، او بست ته یې راوست له نومورې سبکري سره یې بغداد ته واستاوه، د همدغه کال په پای کښې د سیستان خطبه د سامان پر کورنۍ وویل شوه او د صفاریانو هغه پای ته ورسېده. خو پر (۲۹۹ هـ) کال د سیستان خلکو د ساماني حکمران منصور اسحق پر وړاندې بلوا وکړه او ابو حفص عمرو د یعقوب زوی د محمد لمسی او د عمرولیث کړوسی د صفاري کورنۍ لس کلن هلك یې میدان ته راویوست او د مولی سندلی په مشرۍ یې چې د صفاریانو له موالیو څخه و، ساماني حکمران ونیواو د سیستان د عیارانو په مرسته یې د نومړی ابوحفص په نامه خطبه وویله. خو ساماني دربار حسین د علي مروزي زوی سیستان ته ولېږه او ابومنصور جیهانی د سامانیانو وزیر بیا سیستان تر زمینداوز او زابلستان پورې تر واك لاندې راوست (۳۰۳ هـ - ۹۱۵م) په دې توګه د ساماني دربار امیرانو تر رخج ارغنداو او ناوې پورې سیمې و نیولې او د طرابیل (ښایي چې د رتابیل مصحف وی) د پخوانیو زمامدارانو پایځوړ یې په زابلستان کښې له پېنو وغورځاوه، پر (۳۱۰ هـ - ۹۲۲م) کال احمد د قدام زوی او عزیز د عبدالله زوی د سیستان امیران وو، چې پر (۳۱۱ هـ) کال بیا د سیستان خلك و پاریدل او امیر ابو جعفر احمد د محمد زوی، د خلف لمسی او د لیث کړوسی یې د صفاریانو له کورنۍ څخه راویوست او د سیستان د امیرۍ واګې یې ور وسپارلې او په رخه کښې خطبه هم د ده په نامه وویله شوه، د ده له خوا بیا حمك د رخج او محمد د بست حکمرانان و ټاکل شول، او

هېواد يې تر رخج او د هرات تر شاوخوا پورې ونيو، او تر (۳۵۲ هـ - ۹٦۳م) کال پورې يې خپلواك حكومت كاوه، د ښو اخلاقو خاوند او مدبر سړی و د ده د حكومت ورځې ترخلوېښتو كالو پورې په سيستان كښې ډېرې ښې تيرې شوې خو په پای كښې پر (۳۵۲ هـ) كال په سيستان كښې ووژل شو: تر ده وروسته يې زوی امير خلف بانو پرځای كښيناست، خو د ده او د اميرطاهر بوعلي تر منځ چې د يعقوب ليث د نيكه د ورورله اولادې څخه و، د سيستان پر امارت اختلاف راوپېښ‌کېد. چې نوموړی طاهر پر (۳۵۹ هـ - ۹٦۹م) مړشو نو زوی يې امير حسين له امير خلف بانو سره جنګېده او پر (۳۷۳ هـ) كال يې له امير سبكتګين څخه چې غزني يې تربست پورې نيولی و، مرسته و غوښته امير سبكتګين مرسته وركړه او پر همدغه كال يې په منځ كښې روغه وشوه، حسين چې مړ شو د سيستان امارت اميرخلف ته پاتې شو، ده تر (۳۹۰هـ ۹۹۹م) پورې ښه خپلواك حكومت وكئ، څنكه چې دا مهال سلطان محمود له غزني څخه د سيستان امارت ګواښه، څكه نو خلف د هغه اطاعت و مانه چې هر كال به د غزني خزانې ته سل زره ديناره وركوي.

خو سلطان محمود سيستان له خپله هېواده جلا پرې نه ښوو او پر (۳۹۳ هـ ۱۰۰۲م) كال يې پر هغه ځمكه يرغل وكئ او خلف يې د سپهبد په طاق كښې كلابند كئ دی سلطان ته ورغی، خو سلطان د خراسان ګوزګانان ته تبعيد كئ او سيستان د سبكتګين كورنۍ د پاچهۍ برخه شوه، د همدغه خلف بانو له نسله د (۸۸۵هـ - ۱۴۸۰م) تر شاوخوا او حتی د صفويانو تر وختو پورې په سيستان كښې محلي اميران د ملوكو په نامه موجود وو چې په سيستان كښې يې د غزنويانو او نورو تر اطاعت لاندې حكمداري كوله.

په افغانستان كښې صفاري ملوك د اسلامي دورې لومړني علم



دوسته، عمران خوښوونكي او عادل پاچهان وو، چې په هېواد كښې يې سياسي او ديني يووالي راووست، د همدغو صفاريانو په وختو كښې دري ژبه درباري او ادبي ژبه شوه او محمد بن وصيف سكزی لومړې دري قصيده د صفاري پاچا په ستاينه كښې وويله؛ په دې زمانه كښې د افغانستان ختيځې سيمې، لكه كابل او ګرديز د كابل شاهانو له لاسه ووتې او له افغانستانه د رتبيلانو او كابلشاهانو كمبله ټوله شوه.

(د صفاريانو او د سيستان د ملوكو بشپړه شجره ددې مخ مخامخ ده- ۴۱ نومره).

*۱ - يعقوب د ليث زوی (۲۴۷ - ۲٦۵ هـ)

*۲ - عمرو د ليث زوی (۲٦۵ - ۲۸۷ هـ) وژل يې په بغداد كښې ۲۸۹ هـ.

*۳ - طاهر د محمد زوی د عمروليث لمسی او ورور يې يعقوب د (۲۸۹ - ۲۹٦هـ).

*۴ - ليث د علی زوی د لومړي ليث لمسی (مشهور په شيرلباده) ۲۹٦ - ۲۹۸هـ).

۵ - ابوعلي معدل د علي زوی د لومړی ليث لمسی (۲۹۹هـ).

٦ - ابوحفص عمرو د يعقوب زوی د محمد لمسی او د عمروليث كړوسی (۳۰۰هـ).

*۷ - امير ابو جعفر احمد د محمد زوی د خلف لمسی د ليث كړوسی (۳۱۱ - ۳۵۲ هـ).

*۸ - ابواحمد خلف بن احمد (د ۳۴۴ هـ شاوخوا - مړ په ۳۹۹ هـ) ابن بانو.

۹ - امير طاهر بوعلی د محمد زوی د طاهر لمسی (د مور له

خواصفاری) (۳۵۲ - ۳۵۹ هـ).

۱۰ - امیر حسین د طاهر زوی (۳۵۹ - ۳۷۳ هـ).

۱۱ - بهاءالدین طاهر د نصر زوی د احمد لمسی (۴۸۰ هـ).

* ۱۲ - تاج الدین نصر د طاهر زوی د محمد لمسی (د ۴۸۲ هـ په شاو خواکښې مړ پر ۵۵۹ هـ).

۱۳ - شمس الدین ابوالفتح احمد د نصر زوی (۵۵۹ هـ).

۱۴ - عزالملوك محمد د نصر زوی؟

* ۱۵ - تاج الدین حرب د محمد زوی (۵٦۲ هـ - مړ ٦۱۲ هـ).

۱٦ - شمس الدین یمین الدوله بهرامشاه د عثمان زوی (٦۱۲هـ).

*۱۷ - تاج الدین نصر د بهرامشاه زوی (٦۱۸ هـ).

*۱۸ - رکن الدین ابو منصور د بهرامشاه زوی (٦۱۸ هـ).

۱۹ - شهاب الدین محمود د عثمان زوی (٦۱۹ هـ).

۲۰ - علي د عثمان زوی (٦۲۲ هـ).

۲۱ - شمس الدین علی د مسعود زوی د خلف لمسی د مهربان کړوسی د طاهر کوسی (٦۲٦ هـ).

*۲۲ - نصرالدین د ابوافتح زوی د مسعود لمسی (٦۵۲ هـ).

۲۳ - شاه نصرت د نصرالدین زوی (۷۲۸هـ).

*۲۴ - قطب الدین محمد درکن الدین محمود زوی (۷۳۱ هـ).

۲۵ - تاج الدین د محمدزوی (۷۴۷هـ).

۲٦ - سلطان محمود د شاه علی زوی (۷۵۱ هـ).

*۲۷ - عزالدین د رکن الدین محمود زوی (۷۳۳هـ).

۲۸ - قطب الدین د عزالدین زوی (۷۸۴ هـ).

۲۹ - شاه شاهان تاج الدین د قطب الدین زوی (۷۸۸ هـ).



*۳۰ - قطب الدین د تاج الدین زوی (۸۰۵ هـ).

*۳۱ - شاه شاهان شمس الدین د قطب زوی (۸۲۲ هـ).

۳۲ - نظام الدین یحي د شمسَ الدین زوی (۸۴۲ هـ).

۳۳ - شمس الدین محمد د یحي زوی (۸۸۵ هـ).

۳۴ - سلطان محمود؟

۳۵ - امیر محمد مبارزالدین - (د ۸۴۵ هـ شاوخوا)

۳٦ - قطب الدین علی (۸۲۲ - ۸۴۲ هـ).

۳۷ - شاه حسین د ملك غیاث الدین محمد زوی د احیاء الملوك مؤ لف پر (۱۰۲۷ هـ) کښې.

اخځلیك:

گردیزی، تاریخ سیستان، تاریخ ادبیات د براون - طبقات سلاطین اسلام - ابن اثیر، طبري، طبقات ناصری و ابن خلکان، تاریخ الاسلام السیاسی، مروج الذهب، تاریخ عرب، روضة الصفا، لب التواریخ، گزیده، معجم البلدان، معجم الادبا، تاریخ تمدن اسلام جرجی زیدان، احیاء الملوك د تهران چاپ، تاریخ ادبیات د دکتور صفا - تاریخ ادبیات فارسی د سعید نفیسی.

په سیستان کښې د صفاریانو د ماڼیو د کنډوالو انځور - (۴۲ نومره عکس).

# سامانیان

(۲۷۹- ۳۸۹هـ)

د سامانیانو کورنۍ د (سامان خداه) له اولادې څخه وه، چې یو نجیب سړی و، دی د بلخ په کلیوالي سیمو کښې حکمران او دین یې زردشتي و؛ د ګردیزی په وینا دی د (۱۹۷ هـ - ۸۱۲م) په شاوخوا کښې د مامون الرشید په هڅه مسلمان شو، اسد د سامان زوی د مامون حضور ته لار پیدا کړه، دغه اسد څلور زامن لرل: نوح - احمد - یحیی - الیاس - چې د خراسان د حکمران غسان د عباد د زوی له خوا سمر قند او سغد نوح ته، فرغانه احمد ته، چاچ او اسرو شنه یحیی ته او هرات الیاس ته وسپارل شول.

د احمد بن سامان زوی چې امیر نصر نومېد پر (۲٦۱ هـ - ۸۷۴م) کال د معتمد خلیفه له خوا د ماوراءالنهر په امارت وپېژاند شو، ده د بخارا حکومت خپل ورور اسماعیل داحمد زوی ته پرېښوو، خو پر (۲۷۵هـ-۸۸۸م) کال په بخارا کښې د دوو ورونو تر منځ سخته جګړه پېښه شوه، نصر د اسماعیل لاس ته ورغی او سمر قند ته واستول شو، پر (۲۷۹هـ-۸۹۲م) کال مړ شو، ټول ماوراءالنهر او خراسان د اسمعیل په لاس کښېووت او د معتضد او مکتفی خلیفه ګانو دربار هم دی رسماً په پاچهۍ و پېژاند، هغه د آل سامان د سلسلې بنسټ اېښودونکی دی چې پر (۲۸۷هـ - ۹۰۰م) کال یې ځواك و موند او د بغداد د خلافت دربار هم دی د سیستان د آل صفار په



مقابل کښې چې د خپلواکۍ غږ یې تر خولې ویوست پیاوړی کړ، پر همدغه کال یې په بلخ کښې صفاري عمرولیث بندي کړ او شمالي او لویدیز افغانستان یې له تخارستانه ترمرو هراته ونیول او د ایران شمال او ماوراءالنهر هېوادونه یې د ساماني هېواد برخه کړل. د مجمل فصیحي په وینا د هند پرځینو لویدیزو سیمو هم د اسمعیل لاس برشوی و، چې بنایي د فصیحی مقصد ګندهارا وي، محمد د محمد زوی د عبدالله بلعمی لمسی د دري ژبې د تاریخ طبری مترجم د دغه پاچا فاضل وزیر و، اسمعیل پر (۲۵۹هـ - ۹۰۷م) کال وفات شو (د اسمعیل ساماني د قبر عکس - ۴۳ نومره).

د اسماعیل تر مړینې وروسته یې زوی احمد پر ځای کښېناست، دی پر (۲۹۷هـ - ۹۰۹م) کال هرات ته راغی او حسین د علي مروزی زوی یې سیستان ته ولېږه، څو چې صفاري حکمرانانو معدل اوبو علي چې تر بست او رخجه پورې واکمن وو له منځه یو وړل، سیستان یې د ساماني اسحاق زوی منصور ته ورکړ، خو لکه د مخه چې وویل شول د سیستان خلکو د سندلي په مشرۍ هغه ونیو (۳۰۰هـ - ۹۱۲م).

احمد پر (۳۰۱ هـ) کال د خپلو مریانو په لاس ووژل شو، خلکو د هغه اته کلن زوی نصربن احمد پر تخت کښېناوه ، خو د هیواد چارې د هغه پوه وزیر ابو عبدالله محمد د احمد الجیهاني زوی اداره کولې .

پر (۳۰۲ هـ - ۹۱۴م) کال په خراسان کښې منصور د ساماني اسحاق زوی یاغي او له سیستان او هراته حسین علي مروزی هم ورسره یوځای شو.

خو له ساماني درباره سپه سالار احمد د سهل زوی هرات ته راغی، همدا چې منصور په نیشاپور کښې مړشو، حسین پر (۳۰٦ هـ - ۹۱۸م) کال

تر سختو جګړو وروسته غاړه کېښېښووه او و بخښل شو. د نصر په وخت کښې لکه چې د مخه ولیکل شول د سیستان ولایت د ساماني محلي حکمرانانو او امیرانو ترمنځ لاس په لاس ګرځېده. د دغه پېر نورې پېښې د افغانستان په تاریخ پورې اړه نه لري.

نصر پر (۳۳۱ هـ - ۹۴۲م) کال تر دېرشو کالو پاچهۍ وروسته مړشو، او لومړی نوح دده زوی پرساماني تخت کېښناست.

د ده د وخت له مهمو پېښو څخه د افغانستان په شمالي سیمو او خراسان کښې د بوعلي چغاني د محتاج زوی چې د هغو سیمو حکمران و، سرغړاوی و چې د ختلان د امیر په مرسته یې په بلخ، ګوزګانان، سمنګان او تخارستان کښې لښکر راغونډ کړ، خو د امیر نوح لښکر هغه مات کړ، پر (۳۴۱ هـ - ۹۵۲م) کال بیا د ساماني دربار له خوا د خراسان په امارت وپېژاند شو. نوح پر (۳۴۳ هـ - ۹۵۴م) کال مړ شو او زوی یې لومړی عبدالملك پر تخت کښیناست. دده په وخت کښې پر (۳۴۵ هـ - ۹۵۶م) کال ابوالحسن سیمجور د خراسان په سپه سالارۍ وټاکل شو، خو له هغه څخه خلکو شکایت وکړ او پر ځای یې ابومنصور عبدالرزاق خراسان ته راغی (۳۴۹هـ - ۹۶۰م)، تر هغه وروسته هم الپتګین حاجب الحجاب د خراسان په سپه سالارۍ و ګمارل شو، او ابوعلي محمد بلعمی د هغه ځای حکمران و.

د ابن مسکویه په وینا د ابوعلی محتاج د له منځه وړلو له پاره د مالك زوی بکر وټاکل شو، چې هغه له خراسانه ورك کړي، بکر هم هغه د خراسان تر پایه وځغلاوه، خو چې لومړی عبدالملك پر (۳۵۰ هـ - ۹۶۱م) کال مړ شو او ورور یې منصور د لومړي نوح زوی دده پر ځای کښیناست، دده ابو منصور عبدالرزاق د خراسان په حکمدار او د الپتګین د مخنیوي له پاره وګماره دا سړی پر (۳۵۰هـ - ۹۶۱م کال) له نیشاپوره پر شاشو، بلخ، خلم،



تخارستان او غزني ته راغی او د غزنوي دولت بنسټ یې کېښېښوو.

پر (۳۵۳هـ - ۹۶۴م) کال سرهنګ ابو علي محمد د عباس زوی د هرات د تولك په حصار کښې یاغي شو، د ابوالحسن سیمجور له خوا چې د خراسان حکمران و، بوجعفر نومي د هغه د مخنیوي له پاره پازمن شو چې د تولك ترحصارنیولو وروسته یې د غور ځینې کلاوې هم ونیولې. د منصور په عصر کښې د سیستان حکران خلف د احمد زوی د ساماني دولت له خوا تقویه شو، خو تر هغه وروسته نوموړي خلف په سیستان کښې د سامانیانو له اطاعته سر وغړاوه، منصور له هغه سره اووه کاله جګړه وکړه، چې په پای کښې یې روغه سره وکړه (۳۷۳ هـ). خو همدا پېښې د ابن اثیر په وینا د ساماني دولت د کمزورتیا سبب شوې او شاوخوا حکمرانانو ته د مرکز په اړه خامه هیله پیدا شوه.

منصور پر (۳٦٦هـ - ۹۷٦م) کال مړ شو او پر ځای یې دویم نوح د منصور زوی کېښناست، د ده په عصر کښې یې تر مړینې (۳۷۸هـ - ۹۸۸م) د خراسان حکمراني په ابوالحسن سیمجور پورې اړه درلوده. دا وخت الپتګین له دنیا تلی او پر ځای یې زوم سبکتګین د غزني د چارو واګې په لاس کښې نیولې وې او ابو علي سیمجور چې د خپل پلار ابوالحسن تر مړینې وروسته یې خراسان تر لاس لاندې و، له بلخ د حکمران فایق خاصه سره یې لاس یو کړ او په خپل سر شو، نوح د دوی د ځپلو او د خراسان د چارو د سمولو له پاره د خپل دربار یوسړی چې ابوالعباس تاش نومید خراسان ته واستاوه او له سبکتګینه یې مرسته وغوښتله، سبکتګین له خپل زوی محمود سره د دویم نوح ملاتړ ته ورغی، پر (۳۸۴ هـ - ۹۹۴م) کال یې د هرات ښارته نژدې ابوعلي مات کړ او هغه د دیلمیانو دربار ته پناه یووړه، دویم امیر نوح سبکتګین ته د "ناصرالدین" لقب ورکړ او د خراسان حکمدار په توګه یې تر

تر سختو جګړو وروسته غاړه کېښېښووه او و بخښل شو. د نصر په وخت کښې لکه چې د مخه ولیکل شول د سیستان ولایت د ساماني محلي حکمرانانو او امیرانو ترمنځ لاس په لاس ګرځېده. د دغه پېر نورې پېښې د افغانستان په تاریخ پورې اړه نه لري.

نصر پر (۳۳۱ هـ - ۹۴۲م) کال تر دېرشو کالو پاچهۍ وروسته مړشو، او لومړی نوح دده زوی پرساماني تخت کښېناست.

د ده د وخت له مهمو پېښو څخه د افغانستان په شمالي سیمو او خراسان کښې د بوعلي چغاني د محتاج زوی چې د هغو سیمو حکمران و، سرغړاوی و چې د ختلان د امیر په مرسته یې په بلخ، ګوزګانان، سمنګان او تخارستان کښې لښکر راغونډ کړ، خو د امیر نوح لښکر هغه مات کړ، پر (۳۴۱ هـ - ۹۵۲م) کال بیا د ساماني دربار له خوا د خراسان په امارت وپېژاند شو. نوح پر (۳۴۳ هـ - ۹۵۴م) کال مړ شو او زوی یې لومړی عبدالملك پر تخت کښیناست. دده په وخت کښې پر (۳۴۵ هـ - ۹۵۶م) کال ابوالحسن سیمجور د خراسان په سپه سالارۍ وټاکل شو، خو له هغه څخه خلکو شکایت وکړ او پر ځای یې ابومنصور عبدالرزاق خراسان ته راغی (۳۴۹هـ - ۹۶۰م)، تر هغه وروسته هم الپتکین حاجب الحجاب د خراسان په سپه سالارۍ و ګمارل شـو، او ابـوعلي محمد بلعمی د هغه ځای حکمران و.

د ابن مسکویه په وینا د ابوعلی محتاج د له منځه وړلو له پاره د مالك زوی بکر وټاکل شو، چې هغه له خراسانه ورك کړي، بکر هم هغه د خراسان تر پایه وخغلاوه، خو چې لومړی عبدالملك پر (۳۵۰ هـ - ۹۶۱م) کال مړ شو او ورور یې منصور د لومړي نوح زوی دده پر ځای کښیناست، دده ابو منصور عبدالرزاق د خراسان په حکمدار او د الپتکین د مخنیوي له پاره وګماره دا سړی پر (۳۵۰هـ - ۹۶۱م کال) له نیشاپوره پر شاشو، بلخ، خلم،



تخارستان او غزني ته راغی او د غزنوي دولت بنسټ یې کېښېښوو.

پر (۳۵۳هـ - ۹۶۴م) کال سرهنګ ابو علي محمد د عباس زوی د هرات د تولك په حصار کښې یاغي شو، د ابوالحسن سیمجور له خوا چې د خراسان حکمران و، بوجعفر نومي د هغه د مخنیوي له پاره پازمن شو چې د تولك ترحصارنیولو وروسته یې د غور ځینې کلاوې هم ونیولې. د منصور په عصر کښې د سیستان حکران خلف د احمد زوی د ساماني دولت له خوا تقویه شو، خو تر هغه وروسته نوموړي خلف په سیستان کښې د سامانیانو له اطاعته سر وغړاوه، منصور له هغه سره اووه کاله جګړه وکړه، چې په پای کښې یې روغه سره وکړه (۳۷۳ هـ). خو همدا پېښې د ابن اثیر په وینا د ساماني دولت د کمزورتیا سبب شوې او شاوخوا حکمرانانو ته د مرکز په اړه خامه هیله پیدا شوه.

منصور پر (۳٦٦هـ - ۹۷٦م) کال مړ شو او پر ځای یې دویم نوح د منصور زوی کښېناست، د ده په عصر کښې یې تر مړینې (۳۷۸هـ - ۹۸۸م) د خراسان حکمراني په ابوالحسن سیمجور پورې اړه درلوده. دا وخت الپتګین له دنیا تلی او پر ځای یې زوم سبکتګین د غزني د چارو واګې په لاس کښې نیولې وې او ابو علي سیمجور چې د خپل پلار ابوالحسن تر مړینې وروسته یې خراسان تر لاس لاندې و، له بلخ د حکمران فایق خاصه سره یې لاس یو کړ او په خپل سر شو، نوح د دوی د ځپلو او د خراسان د چارو د سمولو له پاره د خپل دربار یوسړی چې ابوالعباس تاش نومید خراسان ته واستاوه او له سبکتګینه یې مرسته وغوښتله، سبکتګین له خپل زوی محمود سره د دویم نوح ملاتړ ته ورغی، پر (۳۸۴ هـ - ۹۹۴م) کال یې د هرات ښارته نژدې ابوعلي مات کړ او هغه د دیلمیانو دربار ته پناه یووړه، دویم امیر نوح سبکتګین ته د "ناصرالدین" لقب ورکړ او د خراسان حکمدار په توګه یې تر

غزني، کابل او بلخ پورې ویپژاند، د هغه زوی محمود یې د "سیف الدوله" په لقب د نشاپور حکمدار وټاکه. دویم امیر نوح او سبکتگین دواړه پر (۳۸۷هـ) کال مړه شول او دویم منصور د دویم نوح سپین زنی زوی پر ساماني تخت کښېنول شو، خو د سامان د کهاله د نظام رسۍ وشلېده، ایلك خان بخارا ونیوه او بکتوزن دویم منصور ړوند کړ (۳۸۹ هـ - ۹۹۸م). وروړ یې دویم عبدالملك د دویم نوح زوی پر تخت کښېناوه، خو سلطان محمود د هغه ړانده پاچا د کسات اخیستلو له پاره مرو ته لاړ او په پای کښې یې له بکتوز او فایق سره داسې وکړل چې: هرات او بلخ (یعنې د افغانستان تر کابله) دې د محمود وي او نیشاپور او مرو دې د دوی.

محمود پر (۳۸۹ هـ) کال له دې جګړې راوګرځید، او پر همدغه کال ایلك خان بخارا ونیوله، دویم ساماني عبدالملك یې په اوزګند کښې بندي کئ او همهلته یې ووژه. ابونصر ابراهیم منتصر د دویم نوح زوی د سامانیانو وروستني شهزاده په ډېره زړورتیا دمحمود له ورور نصر او ایلك سره جګړه کوله، خو په پای کښې د محمود په لمسانه پر (۳۹۵ هـ -۱۰۰۱ ع) کال ووژل شو، چې همدا د سامانیانو د سلسلې پای و.

د دغه مهال له علمي او اداري نومیالیو څخه دوه نامتو وزیران یو محمد د احمد جیهاني زوی (د ورکې جغرافیا تولوونکی) او بل محمد د محمد بلعمي زوی (په دري ژبه د طبری تاریخ مترجم) او د دري له پخوانیو شاعرانو څخه هم ابو شکور بلخي، رودکي. دقیقی بلخي، او ابو محمد هاشم (په بست کښې د پښتو شاعر چې پر ۲۹۷هـ مړ دی) او نور وو.

د سامانیانو پر مهال، اسلام دین د اسلامي مدنیت له عربي ژبې او ادب سره تر کابله رارسیدلی و، خو د هېواد د ختیزو سرحدو لکه: ننګرهار، لغمان، کونړ او د خوست او منګل د غرونو اوسیدونکي پر خپلو پخوانیو



ادیانو، ژبو او مدنیت پاتې وو او دري ادبیاتو ښه وده کړې وه (۴۴ نومره د سامان د کورنۍ شجره.)

۱ - لومړی نصر د احمد ساماني زوی (۲۶۱ - ۲۷۹ هـ).

۲* - اسمعیل د احمد زوی (۲۷۹ - ۲۹۵ هـ).

۳* - احمد د اسمعیل زوی (۲۹۵ - ۳۰۱ هـ)

۴* - دویم نصر د احمد زوی (۳۰۱ هـ - ۳۳۱)

۵* - لومړی نوح د نصر زوی (۳۳۱ - ۳۴۳ هـ).

٦*- لومړی عبدالملك د نوح زوی (۳۴۲ - ۳۵۰ هـ).

۷* - لومړی منصور د نوح زوی (۳۵۰ - ۳٦٦ هـ).

۸* - دویم نوح د منصور زوی (۳۸۷ - ۳۸۹ هـ).

۹* - دویم منصور د دوهم نوح زوی (۳۸۷ - ۳۸۹ هـ).

۱۰* - دویم عبدالملك د دوهم نوح زوی (۳۸۹ هـ).

۱۱ - ابوابراهیم منتصر د دویم نوح زوی (۳۹۰ هـ) د ده تروژلو پورې پر (۳۹۵ هـ).

اخځونه:

ګردیزی - ابن اثیر - طبقات ناصری - دایرة المعارف اسلامی - تاریخ سیستان - تجارب الامم - تاریخ الاسلام السیاسی - مختصر تاریخ ایران د پاول هورن - روضةالصفا، طبقات سلاطین اسلام، معجم الانساب زمباور - تاریخ بخارا - لب التواریخ - تاریخ یمینی - دبارتولد ترکستان - حبیب السیر.

# پښتانه واکمنان

## (د ۳۰۰ هـ شاوخوا)

له هغه ډېر پخواني کهاله چې د کسي (سليمان) پر غره، د غور په غرو او د هغو سيمو په شاوخوا کښې يې د پښتنو واکمني او لاربښوونه کوله د کيس عبدالرشيد پښتون (پټان) درې زامن مشهور دي چې غرغښت، بيټني او سړبن نوميدل. د دغه پښتانه کهاله په اړه ډېرې سيمه ييزې افسانې شته، خو هغه څه چې د پښتنو پخواني مورخ سليمان ماکو د (٦١٢ هـ -١٢١٥م) په شاوخوا کښې په خپله تذکره کښې ليکلي او تر هغه وروسته نورو مورخانو لکه ابوالفضل علامی په ايين اکبري کښې (١٠٠٦ هـ -١٥٩٧م)، اخون درويزه (چې پر ١٠٤٨هـ - ١٦٢٨م مړ دی) په تذکرة الابرار او مخزن اسلام کښې، نعمت الله هروي په مخزن افغاني کښې (١٠١٨ هـ - ١٦٠٩م) شيخ امام الدين خليل (چې پر ١٠٦٠ هـ مړ دی) په تاريخ افغاني کښې تايد کړی دی او تاريخي حقايق دي دا راښيي چې دغو درې واړو ورونو د (٢٥٠ تر ٣٠٠ هـ پورې) په افغانستان کښې د غور له غرو څخه د سليمان تر غره پورې واکمني او روحاني او قبيلوي نفوذ درلود. د شيخ بيټني ځينې پښتو



مناجاتو نه په پښتو ادبياتو کښې منقول او په لاس کښې شته، تر هغه وروسته د سړبن زوی خرښبون د سليمان له غره څخه د غلزيو د کلات د غونډان تر غره پورې واک درلود ، پر (٤١١ هـ - ١٠٢٠م) کال د سليمان غره په جنوبي لمنه "مرغه" کښې مړ شو، همدارنګه اسماعيل د بيټني زوی د سليمان په غره کښې واکمني او روحاني نفوذ درلود، د ده د واکمنۍ لمن د سليمان غره لوېديز پلو ته له "وازې خوا" څخه تر غزني پورې رسېده له دغو دوو تنو څخه هم د پښتو پخواني اشعار راپاتې دي (د ٤٠٠هـ - ١٠٠٩م په شاوخوا کښې). د خرښبون درې زامن: کند، زمندو او کاسي د پښتنو د ټبرو نوميالي نيکونه دي، چې د دوی کول لړۍ په افغاني نسب نامو کښې څرګنده شوې ده.

پاتې دې نه وي چې خرښبوني پښتانه د افغانستان په لوېديزو سيمو کښې خپاره وو، لکه عبدالرزاق سمرقندی چې په غزني او برمل کښې د "افغان خرشواني" په نامه د هغو يادونه کوي، (٨٢٠ هـ) شاوخوا. (مطلع سعدين دويم ټوک لومړی برخه ٣٥٩ مخ لاهور چاپ).

د افغاني انسابو په کتابو کښې دا درې ورونه غرغښت - بيټني او سړبن د پښتنو ټبرو د لړۍ سرونه ګڼل شوي دي، چې په دې ځای کښې د دوی د نسب د شجرې مهمې څانګې ليکل کېږي. (وګورئ ٤٥ مه نومره د نسب شجره).

ماخذونه: د سليمان ماکو تذکرة الاولياء، پښتانه شعراء لومړی ټوک، ايين اکبري، مخزن افغاني، د درويزه تذکرة الابرار، پټه خزانه، د پښتو ادبياتو تاريخ ٢ ټوک، مطلع سعدين ٢ ټوک، حيات افغاني، شوکت افغاني، صو لت افغاني. خورشيد جهان، د سراولف کيرو پټانان، د صوبه سرحد او بلوچستان ګزيټير، د افغانستان ګزيټير، تاريخ سلطاني.

# فریغونیان

## (۲۵۰ - ۴۱۰ هـ شاوخوا)

دغه کهاله د سامانیانو او غزنویانو په وختو کښې په گوز گانان کښې واکمني درلوده او له دوارو سلطنتي کورنیو سره یې دوستانه اړیکي ساتل، علم روزونکي او سوله پال، پوه پاچاهان وو، د دوی د حکومت شمالي ویش امو سیند او جنوبي ویش یې غرستان، غور او تالقان (د کروان رباط ته نژدې) د زمینداور او هیلمند تر شاوخوا پورې رسېده، په غور کښې هم د فریغونیانو تر لاس لاندې یو حکمران ناست و. دی غورشاه نومېد. په خپله گوزگان د سرپل شاوخوا ته ویل کېده، دا کهول تر اسلام د مخه د "گوزگان خداه" د پاچهانو له نسله و، چې د فریغون په رباط یې اړه درلود، دا رباط د مقدسي په وینا له اندخو د (اوسنی اندخوی) او کرکی ښخه د یوې ورځې لارې واټن و. د افریغ کلمه د دغه هېواد په لرغونیو نومو کښې تر خوارزمه لیدل کېږي خو په خپله د فریغون (د دغه کهاله د لړۍ د مشر په اړه) څه معلومات نه لرو پرته له دې چې دا لعتبی په وینا د دریېمې هجري پېړۍ په شاوخوا کښې د افریغون رباط ته نژدې اوسېده، خو د ده زوی احمد بن فریغون د اسلامي دورې په تاریخ کښې د دغه کهاله لومړی سړی دی چې مورږ یې پېژنو نرشخي وایي:



پر (۲۸۷هـ - ۹۰۰م) کال چې امیر اسمعیل ساماني له عمرولیث صفاري سره جنگېده، امیر احمد فریغوني د عمرولیث له خوا هم د بلخ حکمران وپېژندل شو. قابوسنامه دی د ډېرو آسونو د گلو خاوند گڼي چې د ورځې یې زر ارزق بهاڼان راوړل او دا خبره مبالغه نه ده، ځکه چې د دې سیمو خلك تر اوسه د اسونو د گلو په ساتنه او روزنه مشهور دي.

د دغه کهاله یو بل واکمن ابوالحارث محمد د احمد زوی دی چې مورږ هغه د دري ژبې د پخوانۍ جغرافیې کتاب (حدودالعالم) له مخې پېژنو، دی پوه پالونکی واکمن و چې دا کتاب پر (۳۷۲ - ۹۷۲م) کال ده ته وړاندې شوی و او د دې کورنۍ د ډېر ځواك په وخت کښې حکمران و، اصطخري د (۳۴۰-۹۵۱) په شاوخوا کښې هغه یاد کړی دی. د بارتولد په وینا (۳۶۵ ۹۷۵ع) کال یې خپله لور ساماني زلمي پاچا نوح د منصور زوی ته ورکړه، د العبتي په وینا تر (۳۸۰ هـ -۹۹۰م) کال وروسته نوح د منصور زوی دی د فایق جگړې ته راوغوښت خو ماته یې وخوړه. ابن اثیر وایي چې پر (۳۸۳هـ) کال نوح له خراسانه گورگان ته راغی او ابوالحارث ورسره یو ځای شو او پر (۳۸۵ هـ) کال چې سبکتگین له فایق سره جنگېده ابوالحارث د سبکتگین د ملاتړ له پاره هرات ته راغی او د العبتي په وینا، په همدغو وختو کښې خپله بله لور د سبکتگین زوی محمود ته ورکړه او د سبکتگین یوه لور یې خپل زوي ابوالنصر احمد د محمد زوی ته په نکاح کړه، پر (۳۸۶هـ -۹۹۶م) کال چې سبکتگین مړ شو، همدغه ابوالحارث د محمود او د هغه د ورور اسمعیل تر منځ روغه وکړه، له محمود سره غزني ته لاړ او پر (۳۸۹هـ ۸۹۸م) کال محمود د اسمعیل نیول هم ابوالحارث ته وسپارل دا د تاریخ په پاڼو کښې د ابوالحارث وروستنۍ یادونه ده.

العبتي پر (۳۹۴ هـ - ۱۰۰۳م) کال د فریغون بن محمد په نامه یو

تن یادوي چې محمود هغه له بلخ څخه په وروستنی ساماني شهزاده منتصر پسې د اندخود او مروروړد خواته استولی و، خو د ده پوره احوال لاس ته رانه غی. د دې کورنۍ یو بل سړی ابو نصراحمد د محمد ابوالحارث زوی دی چې دالعبتي او ګردیزي په وینا د ګوزګانان و، پر (٣٩٨ هـ - ١٠٠٧م) کال په هغه جګړه کښې چې د قراخانیان او د محمود د ورور تر منځ په پل چرخیان کښې وشوه د محمودی لښکر د منځ (قلب) مشرو او پر (٤١٠هـ ١٠١٠م) کال مړ شو. بیهقي د (٤١٠هـ-١٠١٠م) کال په پیښو کښې لیکي چې پر همدغه کال محمود د غور جګړو ته لاړ، خو د ده شهزادګان مسعود او محمد پر څوارلس کلنۍ په زمینداور کښې د امیر فریغون ګوزګانان له زوی حسن نومي سره اوسېدل په همدغه کال امیر ابوالحارث مړ و، څکه نو د ده زلمی زوی حسن د سبکتګین د لور له نسه د ګوزګانان د تاج وتخت نامزد و، خو دا سمه څرګنده نه ده چې د احسن د همهغه فریغون بن محمد زوی و، که د ابو نصر؟ خو په دې خبر یوو چې سلطان محمود د العبتي او عوفي په وینا د ابو نصر فریغوني لور خپل زوی محمد ته وکړه او د ګوزګانان ولایت یې بیرته ابو نصر ته ورکړ او ابو محمد حسن د مهران زوی یې د هغه ځای د چارو په کفالت له ده سره وګماره ګواکي د ګوزګان سیمه پر (٤٠٨هـ - ١٠١٧م) کال بشپړه د غزنویانو تر واکمنۍ لاندې راغلې وه، ناصر خسرو علوي په دغه بیت کښې اشاره ورته کړې ده:

کجاست آنکه فریغونیان زهیبت او
زدست خویش بدادند ګوزګانان را

په دې توګه نو د فریغونیانو کهول دافغانستان د لوېدیزو شمالي سیمو، سیمه ییز پاچاهان وو، چې په عدالت نېکنامۍ او د علومو په پالنه



یې شهرت درلود د فریغون په دربار کښې نامتو پوهان او لیکونکي روزلي شوي دي چې له هغې جملې څخه: بدیع الزمان همداني، ابو الفتح بستي، د مفاتیح العلوم خاوند خوارزمي او د حدودالعالم نامعلوم مولف دی.

د دغه کهاله نومیالي:

١- امیرفریغون (٢٥٠ هـ).
٢- امیر احمد دفریغون زوی (٢٧٩-٣٣٧ هـ شاوخوا).
٣- ابوحارث محمد داحمد زوی (٣٣٧-٣٨٩هـ).
٤- فریغون د محمد زوی (٣٩٤هـ شاوخوا).
*٥- ابو نصراحمد د محمد زوی (٣٩٠- ٤١٠هـ).
٦- حسن دابونصراحمد زوی؟ (٤١٠هـ).

اخځ:

العبتي، ګردیزي، اصطخري، نرشخي، مقدسي، بیهقي، قابوس نامه، عوفي، ابن اثیر، مینورسکی دحدودالعالم پر لمنلیکونو، د بار تولد جغرافیای تاریخي ایران، معجم الانساب - د مینورسکي مقالې د لندن چاپ.

# د ملتان لودیان

## (د ۳۷۰ -۴۰۱ هـ شاوخوا)

د (۳٦٦هـ ۹۷٦م) په شاوخوا کښې سبکتګین په غزني کښې واکمن او ساماني واکمن، بې واکه او کمزوي شول ځکه نو د افغانستان ښارونه له تخارستان او بلخه تر ګوزګانان هرات، سیستان، بست او کابل تر ګردیزه د غزني په پایتخت پورې وتړل شول (۳٦۸هـ-۹۷۸م).

په دغه وخت کښې دافغانستان ختیزو سیمو تر ماورای سند او ملتان پورې د ملتان د لودیانو په نامتو کهاله اړه درلوده او له لاهوره تر خیبره جیه پاله کابلشاه حکم کاوه. هغه وخت چې سبکتګین پر کابل او ننګرهار یرغل وکړ، جیه پاله وړاندې ورغی او د غزني په شاوخوا کښې یې ورسره جګړه وکړه خو مات شو، د جګړې د تاوان تر ورکولو وروسته بېرته لاهور ته وګرځېد او د قنوج، ډهلي، اجمیر او کالنجر راجه ګان یې له ځان سره ملګری کړل دیو لك چمتو سپرو سره تر خیبره را تېر او د کابل سیند پر غاړه لغمان ته راورسېد.

سبکتګین له هغه سره جګړه وکړه په زرګونو سرې یې ځنې ووژل او نور یې پر شا وشړل، د سند تر سینده پسې ولاړ، په پېښور کښې یې خپل -یو امیر له اوو زرو سپرو سره پرېښوو او په خپله غزني ته راغی (۳۸۱هـ



۹۹۱ م ) په دغه وخت کښې ملتان د لودي شیخ حمید په لاس کښې و، (لودي د پښتنو یو نامتو ټبر دی) دغو لودیانو چې د سبکتګین واك ورځ پر ورځ په ډېرېدو ولید له هغه سره یې روغه وشوه او چې جیه پاله ماته وکړه شیخ حمید په ملتان کښې پر خپل ځای پاتې شو او له سبکتګین سره یې تړون وکړ (۳۸۲ هـ ). د ده وراره شیخ رضی په اخبارااللودي کښې د احمد لودی په وینا د پښتو ژبې له شاعرانو څخه و، چې د حمید لودي په وختو کښې یې د افغانانو په غرو (سلیمان غره) کښې د اسلام تبلیغ کاوه، له دې څخه څرګندېږي چې د سند او غزني تر منځ ځینو افغانانو لا تر دغه وخته د اسلام دین نه و منلی، لکه چې پر ( ۳۷۲ هـ) کـال د (حـدودالـعـالم) جغرافیا لیکونکی د کندهار ښار (د اندس پر غاړه) د برهمنانو او بتانو او لغمان د بودتونو (بتکدو) او بنیهار (بنیر) د بت پرستو هندوانو او افغانانو ځایونه بولي، حال دا چې په همدغه وخت کښې بست غور او رخد اسلامي ښارونه وو او کابل یو داسې ښار و چې نیمایي یې مسلمانان او نیمایي یې هندوان وو. د شیخ حمید د مړینې خبر په تاریخ کښې نه شته خو دومره ښکاري چې په ملتان کښې د ده واکمني د سند تر غاړو او د سلیمان تر غره پورې رسېده. لاهور تر ټکسیلا او ویهند تر کندهاره (د سند د سیند پر غاړه) په جیه پاله پورې اړه درلوده، خو پر (۳۹۲ هـ ۱۰۰۱ م ) کال محمود ویهندونیو او پر (۳۹٦ هـ ۱۰۰۵ م ) کال چې یې پر ملتان لومړی یرغل وکړ. د ملتان حکمران ابوالفتوح داود د نصر زوی و، نو څرګنده شوه چې نصر د شیخ حمید زوی د لودیانو دویم حکمران د (۳۹۰ هـ - ۹۹۹ م )په شاوخوا کښې حکومت کاوه، دی تر حمید وروسته د هغه پر ځای کښېناست له غزنویانو سره د لودیانو د کورنۍ په سیاسي سیالۍ کښې د سلطان محمود له خوا په بده عقیده او د اسمعیلي ملا حده و، دین ته په ګروهېدلو متهم شوی و. مګر د پښتو له هېوادنیو اخځونو لکه

پټه خزانه او د ده له پښتو شعره خرګندېږي چې دا تور غلط او دی ملحد او بې دینه نه و.

ابوالفتوح داود تر نصر وروسته د ملتان تخت ته ورسېد او پر (۳۹۵ هـ ۱۰۰۴م) کال سلطان محمود د بهاتیه پر حکمران (بجی راو) باندې یرغل وکړ، داود څه اعتنا ورته ونه کړه، ځکه نو پر دا بل کال محمود له نوي لښکر سره د ننګرهار له لارې ورغئ، لومړی یې راجه اننده پاله په پېښور کښې مات او بیا ملتان ته ورسېد او تر اوو ورځو کلا بندۍ وروسته داود لودي پر کال دوه لکه او په بل روایت دوه کروړه درهمه خراج ومانه، شل زره درهمه یې هم د جګړې تاوان ورکړ محمود سره یې د روغې تړون وتاړه او تر (۴۰۱ هـ ۱۰۱۰م) کال پورې یې پر ملتان او د افغانستان پر ختیزو سیمو حکومت وکئ، خو پر همدغه کال محمود پر ملتان یرغل وکړ او هغه یې ونیو، د کندهار د شمال د غورك په کلا کښې یې بندي او همهلته مړ شو.

که څه هم چې د داود په مړینې د پخوانیو لودیانو کهول له منځه ولاړ خو د داود اولاده تر هغه وروسته هم په ملتان کښې وه، او د فخرمد بر په وینا د داود زوی شیخ د سلطان مسعود تر مړینې وروسته په ملتان بلواو کړه، چې د سلطان مودود له خوا یو لښکر د لوی حاجب احمد محمد او فقیه سلیطی په سپه سالارۍ دده د سر کوټلو له پاره وګمارل شو، همدا چې لښکر د وایوه کلا ته ورسېد، نومړی شیخ له خپلو ملګریو سره منصوره ته ولاړ او غزنوي لښکریانو ملتان ونیو، دا په ملتان کښې د لودي کهاله د پایځوړ ورستې یادونه ده.

دا کهول په هند کښې د اسلامي او افغاني ثقافت لومړنی ممثل دی، د دغه کهاله دوه تنه شیخ رضي د حمید وراره او نصر د حمید زوی د پښتو ژبې شاعران وو، د دوی شعرونه او ژوند پېښې د پښتو شاعرانو



تذکرې پټې خزانې د شیخ احمد ابن سعید اللودی د کتاب اعلام الوذعی فی اخبار اللودی (٦٨٦ هـ ۱۲۸۷م) په حواله راوړي دي، "فرشته" هم د هغو افغانیت لیکلی دی. موږ وینو چې لودیانو پر (۸۵۵ هـ) کال بیا د بهلول لودي په مشرۍ په هند کښې د سلطنت دویمه کورنۍ جوړه کړې او سل کاله یې حکومت کړی دی (۹۳۲ هـ) خو د لودیانو لومړی کهول د افغانستان په تاریخ اړه لري او د بهلول کورنۍ په هند کښې پاچهي کړې ده.

د لومړی کهاله نومیالی:

۱- شیخ حمید لودي (د ۳۷۰ هـ شاوخوا).
۲- شیخ رضی د حمید وراره (د ۳۸۰ هـ شاوخوا).
۳- نصر د حمید زوی (د ۳۹۰ هـ شاو خوا).
۴- ابو الفتوح دواد د نصر زوی (۳۹۵ شاوخوا)
۵- شیخ ... د داود زوی (د ۴۳۲ هـ شاوخوا)

اخځونه:

تعلقات هندو عرب - زین الاخبار- د پښتو ادبیاتو تاریخ، ۲ ټوك - شوکت افغانی - تاریخ یمینی - فرشته - طبقات اکبری - حدود العالم - تاریخ سند - ابن اثیر - حیات افغانی - خورشید جهان - پټه خزانه - آداب الحرب.

# د تخارستان د باينجور كورنۍ

(۲۳۲- ۳۷۲ هـ)

د دې لړۍ اميرانو په تخارستان، بلخ، خلم، ترمذ، اندراب، پنجهير، باميان او وخش كښې حكمراني كوله او په هغه باينجور اړه لري چې د عباسي خليفه ګانو منصور او مهدي هممهالي وو، كېداى شي چې تر اسلام دمخه د تګين شاهانو پايخوړ وي.

* ۱ - له هغې ډلې څخه: داؤد د الياس زوى چې د ۲۳۲ هـ په شاوخوا كښې يې سكه وهلې او پر (۲۵۸هـ) كال يعقوب ليث صفاري له ده څخه بلخ ونيو. دى له ۲۳۳ كال څخه تر ۲۵۸هـ پورې د بلخ حكمران و او پر ۲۵۹ هـ كال مړ شو.

* ۲ - ابو داؤد محمد داحمد زوى او د باينجور لمسى، چې د ۲٦۰هـ په شاوخوا كښې يې سكه وهلې ده، دى له ۲٦۰ كال تر ۲٦۵ هـ پورې د بلخ او تر ۲۷۹ هـ پورې د تخار، جوزجان، ختلان او ترمذ واكمن و.

* ۳ - ابو جعفر احمد د محمد زوى او د احمد لمسى چې د ۲۷۹هـ له شاوخوا څخه واكمن و او پر ۲۸۸هـ كال يې په اندراب كښې سكه وهلې ده.

* ۴ - جعفر د احمد زوى او د محمد لمسى چې تر ۳۱۰ هـ وروسته يې حكومت كاوه او پر ۳۱۰-۳۱۲-۳۱۳- هـ يې په ختل كښې سكه وهلې چې



اوس هم شته.

* ۵ - احمد د جعفر زوى او د احمد لمسى چې د ۳۷۲ هـ په شاوخوا كښې حكمران و او د ګرديزي په وينا د چغانيانو دابى على احمد د محتاج د زوى ملګرى و.

د دې كورنۍ ځينې نور كسان هم حكمرانان وو، لكه داؤد د باينجور زوى چې پر ۲۰٦ هـ كال د بصرې عامل و، هاشم د باينجور زوى چې دوخش او هلاور د حكمران و، پر ۲۴۳ هـ كال مړ دى، بيګ د عباس زوى او د باينجور لمسى د ختل خاوند، حارث چې له ۲۷۲ څخه تر ۲۹۳ هـ پورې د ختل حكمران و او سكه يې هم وهلې ده، داود دابو داؤد زوى د عباس لمسى چې د ۲۷۲ هـ په شاوخوا كښې ژوندى و، حاتم د داود زوى او د باينجور لمسى چې د (۲۵۱هـ) په شاوخوا كښې د جوزكرمان حاكم و، او الياس د هاشم زوى چې په ۲۱۱ هـ كال د مصر سر لښكر و. (د دې كورنۍ د نسب شجره وګورئ ۴٦ لمبر)

# د غرستان شاران

## (۲۸۹ - ۵۵۰ هـ)

لکه مارکوارت چې په ایرانشهر کښې څرګنده کړې ده، د "شار" کلمه له "شیر" او "شاه" سره ګډه ریښه لري او دا د افغانستان د منځنۍ سیمې د یو شمېر واکمنو لقب و، چې د واکمنۍ سیمې یې ختیز خوا ته د بامیان د شیرانو د هېواد ګاونډۍ وې او لکه د دغه کتاب په لومړیو بحثو کښې چې مو وویل دا شاهي کهولونه د دغه هېواد د هپتالي کوشاني عناصرو پایڅوړ دی او د حکمرانۍ مرکز یې په ښین کښې و، چې شورمین او بغشور هم د هغه ځای ښارونه وو او د دغه هېواد ار نوم په اوستایي تلفظ "غرستانه" او په طبقات ناصري کښې هم "غرستان" (په پښتو د غر{کوه} په مانا+ستان) دی. فردوسي یې په شاهنامه کښې د "غرچګان" په نامه یادوي او معرب یې غرجستان یا غرشستان دی. د دې سیمې شاران حکمرانان په نیاو (عدل) او داد مشهور وو، ناصر خسرو قبادیاني په دغه بیت کښې د دغو کورنیو او د دوی د حکمرانۍ د مرکزو داسې یادونه کړې ده:

استاده بد به بامیان شیری    بنشسته بعزدربشین شاری(۱)

داسې ښکاري چې د غرستان شاران تر اسلام د مخه هم د دې

۱- د ناصر په دېوان کې دا بیت ناسم لیکل شوی، چې سم شو.



سیمې حکمرانان و، د دوی د نیکونو یو تصویر چې لاس ته راغلی کټ مټ د هپتالي (هیاطله - هون) د پاچهانو بڼو ته ورته دی.

په اسلامي عصر کښې د غرستان د شارانو یادونه د سلطان محمود د فتوحاتو او د غزني سلطنت تر اداري لاندې د هېواد له اداري تمرکز سره منځ ته راغي، چې یو له دې غرستاني شارانو څخه "شاررشید" پر ۳۸۹ هـ کال د سلطان محمود سیاسي مشرتابه او د هېواد اداري یووالي ته غاړه ایښې وه، بل شار ابونصر محمد، د اسد زوی دی چې پر ۴۰۵ هـ کال سلطان محمود بندي کړ او پر ۴۰۶ هـ کال په هرات کښې مړ شو.

۳ - شارشاه ابو محمد د محمد زوی و، چې د پلار پر ژوندانه د هغه پر ځای کښېناست او له سلطان محمود او ابو علي سیمجور سره وجنګید او تر ۴۰۶ هـ کال وړاندې مړ شو.

۴ - شارارد شیر.

۵ - شارابراهیم دارد شیرزوی.

۶ - شارشاه دابراهیم زوی چې لور یې "حور ملکه" د سلطان حسین جهانسوز غوري ماندینه وه.

هغو شارانو چې د سلطان محمود تر وخت وروسته تېر شوي د غزني او غور تر مرکزي واکمنۍ لاندې ژوند کاوه، خو پوهان او علم پالونکي خلک وو.

ماخذونه:

ابن اثیر - تاریخ یمینی عتبی - دایره المعارف اسلامی، د غرجستان ماده - نامهای ایرانی جستی-روضته الصفا- تاریخ ګزیده - معجم الانساب زمباور - ابن خرد اذبه ۳۹ - معجم البلدان ۳-۷۸۵.

# د انـــــدراب امـــــيـــــران

دا اميران هم د هپتالي كوشانيانو د پخوانيو حكمرانانو له پايڅوړه ښكاري چې په اسلامي عصر كښې يې اسلام منلى او د اندراب په غرو كښې پاتې شوي دي، له دې كبله چې د دوى د حكمرانۍ سيمه د ستغو غرو په منځ كښې وه، نو ځكه د جهانګيرانو له واكمنۍ خوندي پاتې وو.

له دغو اميرانو څخه يوازې د دوو تنو نومونه د دوى له سكو څخه لاس ته راغلي دي او دا سكې د ارميتاژ په موزه كښې شته:

* ۱ - مكتوم د حرب زوى (د ۳۵۹ هـ پر شاوخوا).
* ۲ - سهلان د مكتوم زوى (د ۳۶۵ له شاوخوا څخه تر ۳۷۴هـ پورې).

مأخذونه:

معجم الانساب زمباور - د مار كوف د ارميتاژ فهرست.

# چغـانيـان اميران - آل محتـاج

چغان (معرب يې صغان) تر آمو ها خوا يو ځاى دى چې اوس د شوروي تاجكستان جمهوريت جنوبي برخه ده. په نوموړي ځاى كښې له پخوانيو زمانو څخه يوه سلطنتي كهاله د "چغان خدات" په نامه حكومت كاوه، چې له آريايي تاجيكو عناصرو څخه و؛ د اسلامي دريېمې پېړۍ په سر كښې امير محتاج نومي هلته حكمران او چغان خدات ته منسوب و، چې تر هغه وروسته يې كورنۍ په تاريخ كښې د "آل محتاج" په نامه مشهوره شوه، له دې كورنۍ څخه عادلان او پوهان اميران منځته راووتل، د سامانيانو او غزنويانو په وختو كښې يې د آمو سيند پر دواړو غاړو بلخ او تخار باندې د هندوكوش تر شمالي لمنو پورې حكومت كړى دى. د محتاج د پلار دا يادونه چې احمد نومېده د يا قوت په معجم الادباء كښې راغلې ده، ژوند يې پر (۲۵۰هـ) اټكلېدى شي - د دې كورنۍ نور غړي دا دي:

۱ - له محتاجه يو زوى د ابو سعد مظفر په نامه پاتې شو چې د ۳۰۰ هـ په شاوخوا كښې يې ژوند او حكومت كاوه، زوى يې ابوبكر محمدبن مظفر د ساماني نصر بن احمد د دربار امير او پر ۳۲۱ هـ كال د خراسان حكمران او د خراسان د ټولو عسكرو سپه سالارو، تر هغه د مخه د ۲۹۸هـ كال پر محرمه د اسمعيل ساماني د زوى احمد له درباره د سيستان د نيولو

له پاره استول شوی و او په ګرګان کښې حاکم شو، په خراسان کښې د ده د واکمنۍ ورځې له (۳۲۱ هـ) کاله د ده د مړینې تر کاله (۳۲۹هـ) پورې وې، دغه سړې د خراسان په پیښو کښې تل د یوه غښتلي او اغېزمن واکمن په توګه لاس درلود او په چغانیان کښې ښخ دی.

۲ - ابوعلي احمد د محمد زوی او د مظفر لمسی چې پر ۳۲۷ هـ کال د پلار د ناروغۍ پر وخت د خراسان سپه سالار او حکمران و، پر ۳۲۹هـ کال په جرجان اوری کښې له ماکان بن کاکي سره وجنګېد او هغه یې وواژه، خو پر ۳۳۳هـ کال چې د امیر نوح بن نصرساماني د دربار له خوا د خراسان له حکمرانۍ څخه لرې کړی شو، نو سر یې له اطاعته وغړاوه، نوح یې خلع کړ، په خپله یې د خراسان د چارو واګې په لاس کښې ونیولې او د ژوند تر پایه یې د سامانیانو له دربارسره اخ و ډب درلود، ځو چې د ۳۴۴هـ کال د برات پر ۲۹ مړ او په چغانیان کښې ښخ شو.

۳ - ابوالعباس فضل د محمد زوی او د مظفر لمسی پر ۳۳۳ هـ کال د خپل ورور ابوعلي له خوا د بلاد جبل (عراق عجم) پر حکومت مامور شو، او تر هغه وروسته د ساماني عسکرو لوی سپه سالار و چې له خپل ورور سره یې هم جنګونه وکړل او پر ۳۳٦ هـ کال په بخارا کښې بندي شو.

۴ - ابوالمظفر عبدالله د احمد زوی، د محمد بن مظفر لمسی چې تر ۳۳۷ هـ وروسته د ساماني امیر نوح په دربار کښې در هین په توګه اوسېده، پر ۳۴۰ هـ کال له آسه ولوېد، مړ شو او په چغانیان کښې ښخ دی.

۵ - ابو منصور د احمد زوی د محمد لمسی چې پر ۳۴۰هـ کال د چغانیان د حکمرانۍ نایب و.

٦ - ابوالمظفر طاهر د فضل زوی، د محمد لمسی، د مظفر کړوسی،



د چغانیان والي او ادب پالونکی فاضل سړی و. منجیك تر مذی د ده له ستاینونکیو څخه و او پر ۳۷۷هـ مړ دی.

*۷ - فخرالدوله ابوالمظفر احمد د محمد زوی ادبپال والي، د دقیقي او فرخي ستایلی و، چې د داغګاه مشهوره بولله "تا پرند نیلګون بر روی پو شد مر غزار" د ده په ستاینه کښې ده، سکه یې هم وهلې وه.

د آل محتاج امیرانو عموماً د سامانیانو او غزنویانو له سلطنتي کورنیو سره خپل ښه اړیکي ساتل، د هغو د ساتنې او ملاتړ تر سیورې لاندې یې د هندوکوش د شمالی ولایاتو حکمراني له بدخشان او تخاره نیولې تر بلخ او جوزجان پورې کوله، دا کورنۍ د دری ادب له پالونکیو څخه ګڼله کېږي.

(د نسب شجره دې وکتل شي - ۴۷ لمبر)

اخځ:

تعلیقات چهار مقاله د د کتور معین - معجم الانساب زمباور - ابن اثیر - تاریخ یمینی - معجم الادباء - رودکي د سعید نفیسی - ابن خلدون - روضةالصفا - دایرةالمعارف اسلامي - دیوان فرخی - د عروضی سمر قندی چهار مقاله.

# سـیـمـجـوریـان

د "سیمجور" کلمه د حبستي په وینا په " نامهای ایراني" کښې د زرین گور خر (سیم‌گور) په مانا ده او دا د خراسان د یوه سردار ابو عمران سیمجور نوم دی چې د ساماني اسماعیل د احمد د زوی په دربار کښې یې د سرمنشي (دوات دار) وظیفه درلوده (۲۸۷هـ) نو ځکه یې دی "دواتي" باله چې د خراسان یوه لویه کورنۍ وه.

۱- ابو عمران سیمجور دواتي پر ۲۹۸ هـ کال د ساماني اسماعیل د زوی احمد له درباره د سیستان په حکمرانۍ وگمارل شو، خو یو کال وروسته (۳۰۱ هـ) سیستانیانو له نصربن احمد سره مخالفت وکړ او سیمجور له هغه ځایه ووت. په (۳۱۴هـ) کال چې امیر نصر د احمد زوی "ري" ونیو د هغه ځای حکومت یې سیمجور ته ورکړ، دی د خپل مهال زړور او جنگیالی و، چې پر ۳۱۶ هـ کال د خراسان په ځنډو کښې د ابوالحسن د ناصر اطروش له زوی سره هم جنگېدلی دی.

۲ - ابو علي ابراهیم د سیمجور زوی تر خپل پلار وروسته د مرو، هرات، نیشاپور او قهستان حاکم و (۳۳۳ - ۳۳۵ هـ) نوح د نصر زوی، دی د ابوعلي احمد چغاني تر گوښه کولو وروسته د خراسان په حکمرانۍ وټاکه، او څه موده هم د گرگان والي و، چې پر ۳۳۶ هـ کې مړ دی.



۳* - ابوالحسن محمد د ابراهیم زوی او د سیمجور لمسی: د پلار تر مړینې وروسته د خراسان سپه لار او لقب یې ناصرالدوله و، پر ۳۵۶ هـ کال له یوه لښکر سره د "ري" نیولو ته وگمارل شو او د ۳۷۸ هـ کال پر ذیحجه مړ دی.

۴* - ابوعلي محمد مظفر د محمد زوی د ابراهیم لمسی د پلار تر مړینې وروسته د هغه پر ځای کښېناست او حاجب الباب و، څه موده هم د پلار پر ژوندانه د هرات حاکم و، خو تر هغه وروسته په نیشاپور کښې د خراسان واکدار او سِپه لار وټاکل شو، سکه یې هم وهلې ده، د خپلواکۍ دعوه یې کوله، تر هغې چې د بلخ له حکمران سره یې لاس یو کړ او د ساماني امیر نوح په مقابل کښې یاغیان شول، خو امیر سبکتگین او زوی یې محمود له دوی سره وجنگېدل او د ۳۸۴ هـ کال د روژې پر ۱۵ ورځ یې په طوس کښې مات کړل؛ ابوعلي خوارزم ته وتښتېد او هلته د (۳۸۶ هـ) کال په روژه کښې ونیول شو، په پای کښې یې سبکتگین ته په لاس ورکړ چې د گردیز په کلا کښې بندي و او پر ۳۸۸ هـ کال مړ شو.

۵ - ابوالقاسم علي د محمد زوی او د ابراهیم لمسی: د هرات والي و او پر ۳۸۶ هـ کال نیشاپور ته ولاړ د سبکتگین د دربار له خلکو سره یوځای شو، د قهستان حکمراني یې ومونده، د تیتوالي او پاسوالي تر لیدو وروسته له ساماني منتصر سره یو ځای شو (۳۹۱هـ) په سرخس کښې یې د سبکتگین له زوی نصر سره جگړه وکړه، ونیول شو او غزنه ته یې واستاوه.

۶ - ابوالحسن د ابوعلي سیمجوري زوی: پر ۳۸۵ هـ کال چې یې پلار له برمه پرېووت، دی "ري " ته ولاړ، خو په نیشاپور کښې د امیر محمود لاس ته ورغی، غزني ته واستول شو او په گردیز کلاکښې بندي و.

۷ - ابوسهل د ابوالقاسم علي زوی او د محمد لمسی: د ۳۸۸ هـ په

شاوخوا کښې يې ژوند کاوه.

د دې کورنۍ نومياليو په خراسان کښې د ساماني د وخت او د غزنوي دورې د پيل په پېښنو کښې لويه ونډه درلوده، ډېره موده يې په بشپړ خواك او خپلواکۍ حکومت کړی دی، کله يې هم د پاچا په عنوان سکه وهلې ده، چې د ابوالحسن محمد ناصرالدوله سکه شته له ۳۷۲ څخه يې تر ۳۷۷هـ پورې حکومت کړې، او يوه لور يې د نوح بن منصور ساماني پاچا ماندينه وه.

همدارنګه ابوعلي محمد مظفر عمادالدوله (۳۷۷ - ۳۸۷ هـ) هم سکه وهلې وه او خپلواکي يې درلوده. (۴۸ نمبر نسب پاڼه دې وکتل شي)

مأخذونه:

الکامل - تاریخ یمینی - طبقات ناصری - نامهای ایرانی، د بارتولد ترکستان - د زامباور معجم ۳۱۰.

# غـــزنـــويـــان

## (۳۵۱ - ۵۸۳ هـ)

د سامانيانو په يادونه کښې مو ولوستل چې پر (۳۴۹هـ - ۹۶۰م) کال د ساماني لومړي عبدالملك له درباره اميرحاجب الپتگين د خراسان په سپه سالارۍ ګمارل شوی و، خو د عبدالملك تر مړينې وروسته الپتگين د ساماني نوح له زوی منصور څخه سر وغړاوه او غزني او زابلستان ته ولاړ (۳۵۰هـ) دا مهال د غزني د شاوخوا حکمران د لويك له کورنۍ څخه يو سړی و، چې د دې کورنۍ يادونه د کتاب په پيل کښې تېره شوه او ښايي چې د افغانستان د هپتالي کوشانيو د اميرانو پايځوړ وي، ځکه چې په خپله الپتگين او د هغه ځای ناستي چې د نومو په پای کښې يې د "تګين" کلمه راغلې ده، هم د تګين شاهي سلطنتي کهاله ته منسوب دي چې يو افغاني او ترکي ګډ جوړښت دی، د چيني ګرزندوی وکونګ Wou-Kong په شهادت د (۷۶۰م) کال په شاوخوا کښې يې د افغانستان پر ختيزو او د هندوکوش پر جنوب واکمني کوله او د تګين اباد ښار د دوی په نامه د محمود د اخلافو تروخت پورې هم د اوسني کندهار لوېديز شمال ته ولاړ و، سکې يې چې د اسلامي عصر په اوايلو پوري اړه لري د هندوکوش په شاوخوا کښې موندل کېږي.

په هرحال الپتګین له لویك (انوك) څخه غزني لاس ته راوست (۳۵۱هـ) تر خپلې مړینې پورې یې یو کال پر غزني او زابلستان حکومت وکړ او پر (۳۵۲هـ) کال په غزني کښې مړ شو، تر هغه وروسته یې زوی اسحاق پر ځای کښېناست.

دا مهال بیا امیر لویك د غزني د نیولو له پاره راغی، اسحاق بخارا ته و تښتېد، له منصور بن نوح څخه یې مرسته وغوښتله او بېرته یې غزني ونیو، چې تر دریو کالو حکمرانۍ وروسته پر (۳۵۵هـ - ۹۶۵ ع) کال مړ شو. تر الپتګین وروسته د ده یو ملګری چې ښه پرهیزګار، مبارز او عادل سړی و او بلکاتګین نومېد ((په غالب اتکل به همهغو افغاني تګین شاهانو ته منسوب وي)) د ده پر ځای کښېناست، دی لس کاله په غزني کښې امیر و، د (۳۵۹هـ) پر شاوخوا یې په غزني کښې سکه وهلې ده، چې د (۳۶۵هـ) په شاوخوا کښې د ګردیز په کلابندۍ کښې مړ شو، امیر پیري تګین چې یو مفسد سړی او د الپتګین ملګری و، پر غزني یې لاس بری ومونډ خلك له هغه څخه خوابدي او تنګ شوي وو، نو د غزني او ګردیز د پخواني کهاله امیر، لویك یې راوباله، لویك د کابلشاه د زوی په مرسته د لوګر د خرخ پر شاوخوا (د کابل جنوبي لوري ته) یرغل وکړ. امیر سبکتګین (د الپتګین زوم او ملګری) هغه مات کړ، لس پیلان یې ختي ونیول او غزني ته راغی، د غزني چې خلك د پیریتګین له ظلمه تنګ شوي وو نو په ګډه یې امیر سبکتګین د جوق قرابجکم زوی او د قرارسلان لمسی (غالبا تګین شاهیانو ته منسوب) یې د غزني په امارت ومانه (د ۳۶۶هـ - ۹۷۶م کال د شعبان ۲۷).

امیر سبکتګین نوی مسلمان شوی او زړور سړی و، او د نظام الملك په وینا په سیاست نامه کښې او د حمدالله په وینا په تاریخ ګزیده کښې ده، د زاول د یوه مشر لور غوښتې وه، او له دې لارې د افغانانو زوم



شوی و، څخه نو د ده په لښکر کښې ټول افغانان جنګېدل او بست، قصدار (بلوچستان د کلات جنوب په اوسني خضدار)، زمینداور، بامیان، تخارستان، غور، زابلستان او کابل یې چې د قراتګین نومي د ګمارل شویو کسانو په لاس کښې و، ونیول او د کابل په شمالي سیمه پروان کښې یې سکه ووهله لکه چې مو د لودیانو په حالاتو کښې وویل په لغمان کښې یې د کابل سیند پر غاړه دویهند له جیپا له کابل شاه سره جګړه وکړه او د هغه سل زریز لښکر یې مات کړ، لغمان یې تر پېښوره ونیو او د هغو سیمو خلکو ته یې د اسلام د دین تبلیغ کاوه (۳۸۱هـ - ۹۹۱م) په دې جګړو کښې سبکتګین ته ډېره ولجه په لاس ورغله، ډېر غښتلی شو، د عتبی او ابن اثیر په وینا افاغنه او خلج (نني غلجیان) تر هغه وروسته د ده تابع شول.

د سبکتګین له نورو غوره کارو څخه لکه د دویم ساماني نوح په حالاتو کښې چې مو وویل، د هرات په جګړه کښې (۳۸۴ هـ - ۹۹۴م) د سبکتګین او د هغه د زوی محمود، مرسته ده چې په نتیجه کښې یې د ساماني دربار مخالفان و پرځېدل. دانامتو عادل، زړور او رښتین پاچا تر ۲۱ کالو حکمرانۍ وروسته د ۵۶ کلنۍ په عمر پر (۳۸۷ هـ) کال د بلخ او بامیان تر منځ د مدرموي په کلي کښې مړ او په غزني کښې ښخ شو. له آمو سینده ترقصدار (بلوچستان) پورې او له سند سینده تر نشاپور او سیستان پورې یې د غزني تر مرکزیت لاندې یو هېواد جوړ کړی و. وطني کورنیو حکمرانانو لکه په سیستان کښې د صفاریانو وروسته پاتې کسانو او په ګوزګان کښې د آل فریغون امیرانو د هیواد په ختیځ کښې د ملتان لودی پاچهانو دده مشرتوب منلی و.

د امیر سبکتګین تر مړینې وروسته د ده د شپږو زامنو له ډلې څخه اسمعیل غزني ته راغی او د ده پر ځای کښېناست، خو د بې کفایتۍ له امله

يې ښورښيانو سر واخيست، د ده مشر ورور امير محمود چې په نشاپور کښې د خراسان حکمران و، په همدغه کال (۳۸۷ هـ) له خراسانه لښکر راويوست او د غزنين په وره کښې يې له خپل ورور سره جګړه وکړه، خو دا چې د محمود مور زاولۍ وه او فردوسي هم هغه زابلي بللې ده (خجسته درګه محمود زابلي درياست) نو د زابليانو په مرسته يې اسمعيل او د هغه لښکر مات کړ او اسمعيل تر اوو مياشتو پاچهۍ وروسته په زندان کښې مړشو.

محمود د غزني تر نيولو وروسته د بلخ خوا ته مخه کړه، پر همدغه کال يې شمالي افغانستان هم ونيو، په بلخ کښې د پاچهۍ پر تخت کښيناست او د مرو خواته پر مخ ولاړ چې د نوح له زوی عبدالملك سره جګړه وکړي، خو د جګړې پر ځای يې روغه وشوه، ساماني درباره له تخارستانه تر بلخ او هراته محمود د خراسان د پاچا په توګه وپېژاند (۳۸۸هـ - ۹۹۸ ع) هغه وخت چې يې وغوښتل له مرو څخه بلخ ته راوګرځي؛ د بغداد خليفه القادربالله له خوا د عهداولوا خلعت ورته راورسېد او پاچهۍ يې پر خراسان باندې رسماً د "يمين الدوله او امين المله ولی اميرالمومنين" له القابو سره ومنل شوه (د ۳۸۹ هـ - ۹۹۸م ذيقعده). امير محمود په سکو کښې د نظام الدين، ملك الممالك او ملوك الملوك په القابو هم ياد شوی، فردوسی دی "شاه" او العتبی يې احياناً "سلطان" ليکي. د غزنوي دورې نور مورخين لکه بيهقي او ګرديزي ورته."امير" وايي خو نظام الملك په "سياست نامه"، ابن اثير په "الکامل" او منهاج سراج په "طبقات ناصري" کښې ويلي دي چې: محمود لومړی وار د "سلطان" په لقب ملقب شو او د مجمل التواريخ والقصص (د تهران چاپ) د مؤلف په وينا دا لقب محمود د امير خلف صفاري له وينا واخيست او هغه وخت چې خلف وويل محمود سلطان دی تر هغه وروسته محمود په دغه مشهور شو، (۴۰٦مخ).



سره له دې چې دا لقب د ده او د ده د اخلافو پر سکو نه شته او لومړی وار د ابراهيم غزنوي پر سکه وهل شوی چې پر (۴۵۱هـ - ۱۰۵۹م) کال پر تخت کښېناست، خو په غزني کښې د سلطان محمود د قبر پر شناخته په کوفي غونډې پخواني ليك د ده د مړينې ورځو ته نژدې ليکل شوی دي "الاميرالاجل السيدنظام الدين ابی القاسم محمود بن سبکتګين" چې دا ټينګ سند ډېر پخوانی دی.

سلطان محمود پر (۳۸۹هـ) کال د ساماني منصور او عبدالمالك غوره اميران بکتوزون او فايق او وروستني ساماني شهزاده المنتصر يې لکه چې دمخه وليکل شول نسکور کړل په نور پاته ژوند کښې يې د (۳۹۲ هـ او ۴۱٦هـ) تر منځ اووه لس واره پر هند لوی او کوچني يرغلونه وکړل او له (۳۹۰هـ څخه تر ۳۹۲هـ)پورې يې دويهن په ولايت (داټك پر غاړه اوسنی هونډ) او لغمان او پېښور کښې له جيپاله سره وجنګېد او پېښور يې ونيو، چې د "غازي" په لقب مشهور شو. پر (۳۹۳ هـ - ۱۰۰۲م) کال يې د احمد صفاري زوی خلف لکه د صفاريانو په احوال کښې چې تېر شول ونيو، سيستان يې قبجی حاجب او کد خدای بو علي شاد ته وسپاره، خو بوبکر عبدالله چې د خلف د لور نبيره و، بوالحسن حاجب پر دوی بلوا وکړه، څو سلطان پر (۳۹۴هـ) کال بيا سيستان ته راغی او هغه بلوا يې شنډه کړه.

پر (۳۹٦هـ-۱۰۰۵م) کال د سند تر سيند پورېووت او لکه د لوديانو په بحث کښې چې وويل شول ملتان يې ونيو او پر (۳۹۷ هـ-۱۰۰٦م) کال يې د ترکستان ايلك خان چې بلخ او هرات يې تر نشاپوره تر واك لاندې و مات کښې، پر (۳۹۹هـ-۱۰۰۸م) کال يې د هند راجګان په ويهيند کښې له اننده پاله سره مات کړل د (۴۰۲ - ۴۰۳هـ) تر منځ يې په پنجاب او کشمير کښې فتوحات وکړل او پر (۴۰۳هـ ۱۰۱۲م)کښې يې غرجستان (د غور شمال

ته) هم ونیو، د بیهقي په وینا یې پر (۴۰۵هـ - ۱۰۱۴ع) کال د بست له لارې پر غور یرغل وکړ، د غور حکمران امیر محمد سوري له لسزریز لښکر سره د آهنګران په کلا کښې کلابند او بندي شو د (۴۰۷هـ - ۱۰۱٦م) په شاوخوا کښې یې پر پنجاب او کشمیر بریدونه وکړل او یو کال وروسته د خوارزم خلکو پر مامون خوارزم شاه (د سلطان محمود پر اوښي) بلوا وکړه او ویې واژه، خو محمود خوارزم ونیو او آلتونتاش یې هلته ودراوه. پر (۴۰۸ (۴۰۹-۴۱۰هـ) کالو یې په هند کښې قنوج او د ګنګ کڅونه له ډېرو بندیانو او ولجو سره ونیول او له دریو ملیونو درهمو سره غزني ته راستون شو. د ابن اثیر په وینا په لاره کښې له افغانانو سره ونښت ځکه چې دوی تل د هند او غزني په لاره کښې د محمود مخه نیوله. پر (۴۱۱هـ - ۱۰۲۰م) کال د غور فتح پر (۴۱۲هـ)کال د کشمیر د لوهر کوټ د حصار محاصره، پر (۴۱۳هـ) کال د ګوالیار او کالنجرو او پر (۴۱۴ هـ) دسلیمان د غرو او افغانانو فتوحات بشپړ شول. پر (۴۱۵هـ ۴۱٦) کال ماوراالنهرته ولاړ، د بلخ او آمو د غاړې امیران یې د ځان تابع کړل له کاشغری قدرخان سره یې تړون وتاړه، او څلور زره سلجوقیان یې خراسان ته راوستل. پر (۴۱٦ هـ) محمود د جنوبي هند د کاتیاوار پر سومنات حمله وکړه، د هغه ځای مشهور بودتون (معبد) یې وران کړ دلته ډېره ولجه لاس ته ورغله او ګجرات یې هم ونیو.

د محمود وروستنی یرغل پر (۴۱۸هـ - ۱۰۲۷م) کال د ملتان د جټانو د طایفې د تادیب له پاره و او په خپل ژوندانه کښې په دې بریالی شو چې له اصفهانه نیولې تر عراق همدان او طبرستانه، ختیځ خواته د ګنګا تر څنډو، شمالاً تر خوارزمه، جنوباً د بلوچستان تر کڅو او کاتیا وار پورې یې یوه لویه شهنشاهي جوړه کړه او خپل زوی مسعود یې په اصفهان کښې کښېناوه (۴۲۰ هـ-۱۰۲۹م) دا لوی هېواد یې له ګنګا څخه د دجلې او فرات



تر کڅو (سواحلو) پورې د غزني د مرکزیت تر اداري لاندې راووست او په آسیا کښې یې خورا لویه امپراتوري جوړه کړه. ده په غزني - پروان - نشاپور هرات - جوزجان - بلخ - ولو الج (تخارستان) لاهور (د محمود پور په نامه) او د هرات په نورو ښارو کښې سکه ووهله او دربار یې تل د درې سترو شاعرانو لکه فردوسي، فرخي، منوچهري، عنصري او لویو پوهانو لکه البیروني، ابن سینا، ثعالبي، خمار، العتبی او نورو د راټولېدو ځای و. دی ستر، باکفایته، زړور، سخي او د جهانداری په چارو پوه پاچا و، چې د العتبی په وینا یې له ترکي افغاني تاجیکو، خلجو (غلجو چې داصطخري او یاقوت په وینا په خراسان او سیستان او کابل کښې اوسېدل) او هندو عناصرو څخه ګډ لوی لښکر جوړ کړ او د افغانانو طایفې یې د غور په غرو د سلیمان په غره، سپین غره او نورو کښې د ځان تابع او اسلام یې پرې ومانه د ابن اثیر په وینا د معتزله، باطنیه، جهمیه، مشبه او روافضو فرقې یې وشړلې او کتابونه یې وروسېزل. د ابن خلکان په وینا ده هر کال په هند کښې غزا پر ځان فرض کړې وه، په مذهب شافعي و، ابن خلکان د امام الحرمین عبدالملك جویني (د سلطان معاصر) له کتابه چې "مغیث الخلق فی اختیار الاحق" نومېږي وایي چې: محمود دامام ابوحنیفه په مذهب و، له حدیثو سره یې خورازیاته مینه درلودله او تل به یې هغه له لویو شیخانو څخه اورېدل خود قفال مروزی نامتو شافعي فقیه په هڅه دامام شافعي مذهب ته راواوښت.

لنډه داچې سلطان محمود کړور او زړور پاچا و، د ابن اثیر په وینا ښه مخ، ښکلې ښه یې درلوده، سترګې یې کوچنۍ او ویښتان یې سره وو، د ابن خلکان په وینا د (۳٦۱هـ) کال د عاشورا پر ٦ مه زېږېدلی و، چې د آسیا په زړه کښې د یوه لوی دولت تر جوړولو وروسته دسل په ناروغی

اخته، او پر (٦١) کلنۍ تر (۳۳) کالو پاچهي وروسته د (۴۲۱هـ - ۱۰۳۰م) کال د دويمې خور (ربيع الاخر) پر ۲۳ د پنجشنبې پر ورځ مړ او د غزني په فيروزه مانۍ کښې ښخ شو. اوس که څه هم په غزني کښې د فيروزه مانۍ څه نخښه نه شته، خو يوازې د سلطان د مزار شناخته (ډبرليك) پاتې دی چې پر هغه يې په کوفي غونډې ليك داسې ليکلی دی: "غفراناً من الله الاميرالاجل السيد نظام الدين ابی القاسم محمود بن سبکتګين غفرله، توفی رحمته الله عليه ونور حفرته وبيض وجهه عشيته يوم الخميس اسبع بقين من شهر ربيع الاخر سنه احدی و عشرين واربعمائه "هغه کوچنۍ ګنبده چې نن د سلطان پر مزار ودانه ده پر ۱۳۲۴هـ ق کال د امير حبيب الله خان په امر جوړه شوې ده. (۴۹-۵۰عکسونه)

تر محمود وروسته يې زوی محمد له ګوزګانان څخه راغی او په غزني کښې د پلار پر ځای کښيناست، خپل اکا امير يوسف د سبکتګين زوی يې خپل سپه سالار خواجه ابو سهل احمد حمدوی يې وزير او علي قريب يې لوی حاجب وټاکل خو تر (۵۰) ورځو وروسته ابوالنجم امير اياز ايماق او علي دايه له غزني څخه د دې له پاره ووتل چې د سلطان مشر زوی امير مسعود ته چې په "ری" او اصفهان کښې حکمران و، ورشي او هغه د خلکو له خوا غزني ته راوبولي. محمد د هندوانو د لښکر سپه سالار "سوندهرای" په هغو پسې وګماره، خو د سرای مريانو سوندهرای و واژه او په نشاپور کښې امير مسعود ته ورغلل، دا مهال د بغداد خليفه القادر بالله د امارت لوا او غهد د مرسل بن منصور بن افلح ګرديزي په لاس امير مسعود ته ولېږل، ده ته يې د اسلامي دايره المعارف په وينا د ناصرالدين الله او حافظ عبادالله او ظهيرخليفة الله لقب ورکړ، چې ابن اثير دالقب سيد الملوك او السلاطين هم ليکلی دی، په دغه ډول يې مسعود رسماً د خراسان



پاچا وپېژاند.

امير مسعود له هراته بست ته راغی، محمد له غزنه څخه تګين آباد (دهلمند او ارغنداو ترمنځ) ته لښکرراووست، خو تر(۷) مياشتو پاچهۍ وروسته امير يوسف او علي قريب هغه په تګين آباد کښې ونيو ړوند يې کړ او امير مسعود يې د هغه پر ځای کښيناوه (۴۲۱هـ د کوچني اختر مياشت).

سلطان مسعود خواجه احمد د حسن ميمندی زوی (چې پر ۴۲۱ هـ مړ دی) د هند له زندانه راويوست او هغه يې خپل وزير وټاکه او حسن ميکالي (وزير مشهور په امير حسنك) يې د قرمطي والي په تور په بلخ کښې غرغره کړ، د محمود له خزانه داره يې چې احمدينا لتګين نومېد خورا ډېر مال واخيست او دی يې هند ته واستاوه او پر (۴۲۲ هـ) کال يې کرمان او مکران ونيول، پر (۴۲۳ هـ ۱۰۳۱ م) کال هرات ته ولاړ او سپه سالار عبدوس يې د خراسان د ترکمانانو د فساد د مخنيوي له پاره وګماره، پر (۴۲۴ هـ) کال يې د کشمير پر سرستی لښکرو يوست او پر (۴۲۵ هـ - ۱۰۳۳ م) کال يې برآمل، ساری او طبرستان بری وموند امير بکتغذي يې له لوی لښکر سره د خراسان د شمالي ډاګو د ترکمانانو د مخنيوي له پاره واستاوه خو بېرته، ناکام راستون شو پر (۴۲٦ هـ - ۱۰۳۴ م) کال يې يو لښکر د هندو سپهسالار تلك د جهلن د زوی په مشرۍ د احدينا لتګين د ځپلو له پاره چې په هند کښې ياغي شوی و، ولېږه، احمد مات شو او منصوره ته ور وتښتېد، د سند په اوبو کښې ډوب شو (۴۲۷ هـ - ۱۰۳۵م) او پر همدغه کال يې پرهانسې او د هند پر نورو کلاو يرغل وکړ، تر فتوحاتو وروسته يې خپل زوی امير مجدود په لاهور کښې حکمران پرېښوو او تر (۴۲۸ هـ - ۱۰۳٦ م) پورې بېرته غزني ته راغی.

له دې کبله چې په خراسان کښې سلجوقي ترکمانانو تل فتنې

جوړولې څکه يې پر همدغه کال د بلخ له لارې ماوراء النهر ته مخه وکړه، خو پر بلخ باندې داؤد ترکمان یرغل وکړ، چې امیر مسعود بلخ ته ورسېد داؤد مرو ته پر شا شو، او پر (۴۲۹ هـ) کال يې په ګوزګانانو کښې مسعود علي کندزي له پښو واچاوه او ځینې سلجوقیان يې د څرځایو په ورکړه راضي کړل، له ځینو سره يې پر (۴۳۰ هـ) کال په شمالي سیمو کښې جګړه وکړه او تر (۴۳۱هـ - ۱۰۳۹م) کاله د هرات او غور له لارې غزني ته راغی، لوی حاجب سباشي او حاجب بکتغدی چې په دې جګړو کښې يې خپلسري کړې وه مصادره او په هند کښې معزول کړل. په دې وخت کښې د سلجوقي میکائیل زامنو طغرل او چغری بیك خراسان له نیشاپوره تر هرات بلخ او سیستان پورې ونیو، مسعود يې د مرو اوسرخسی منځ د "دندانقان" په جګړه کښې مات کړ او پر (۴۳۱هـ) کال مسعود خپله وروستنۍ سکه ووهله چې تر هغه وروسته په ۴۳۳هـ کال په هغه ښار کښې سلجوقي طغرل سکه وهلې ده.

امیر مسعود چې د هېواد په اوضاع کښې ګډوډي ولیده، خپل زوی مودود يې په غزنه کښې پرېښوو او په خپله له محمودی خزانو، لښکر او خپل راڼده ورور محمد سره هندوستان ته لاړ خو په ماریګله (د اوسنی حسن ابدال په شرقي برخه) کښې د ده لښکریانو پرده بلوا وکړه، ړوند امیر محمد يې خپل پاچا وټاکه، مسعود يې د ګیري (ګهری) په کلا کښې بندي کړ او بیا يې د طاهر بن محمد په لاسو وواژه (د ۴۳۲ هـ - ۱۰۴۰ کال د جمادی الاولی ۱۱).

په دې وخت کښې امیر مودود په غزنه کښې پر تخت کښېناست او له خپل لښکر سره يې هندوستان ته مخه وکړه، د ننګر هار په دنپور (اوسنی جلال آباد ته نږدې - د بابر په آدینه پور) کښې د خپل تره محمد له لښکر سره ونښت او د خپل پلار ترك او تاجیك وژونکي يې ووژل، محمد او د هغه



زوی طاهر يې هم ژوندي پرې نه ښوول (۴۳۲) هلته يې یو ښار د "فتح آباد" په نامه ودان کړ، چې تراوسه په همدغه نامه پاتې دی.

سطان مودود له سلجوقي ترکانو سره چې نفوذ يې ورځ پر ورځ په ماوراء النهر او خراسان کښې ډېرېده، د ښو اړیکو په ټینګولو کښې زیاریوست او د بیګ لور يې وکړه، خو سره له دې هم د هغه له شره خوندي پاتې نه شو، له همدې کبله غزنویانو تر خراسانه پر خپلو هندي مستملکاتو باور پیدا کړ، دا کار لومړی د مودود په سکو کښې لیدل کېږي چې پر خپله سکه يې د سیوا Siva د غوایه صورت د سری سمنته دیوه Sri samanta Diva له لیکنې (ډېرلیك) سره نقش کړې و، چې دا رویه د ویهند د کابل شاهانو له سکو څخه اخیستل شوې وه. مودود تر ۹ کالو پاچهۍ وروسته پر ۳۹ کلنۍ (۴۴۱هـ - ۱۰۴۹م) کال مړشو او د غزني پاچهي تر دوو میاشتو پورې د امیر مودود د زوی دویم مسعود او تره يې علي د لومړی مسعود د زوی په نامه وه، چې د سلطان محمود زوی عبدالرشید پر دوی غالب او پر همهغه کال (۴۴۱) د غزني پر تخت کښېناست.

سلجوقی داؤد چې د خراسان حکمدار و، د سیستان له لارې پر بست او زمینداور یرغل وکړ او زوی يې الپ ارسلان له تخارستانه پر غزني راغی - خو د عبدالرشید د لښکر سالار چې طغرل نومید او د سلطان محمود له مریانو څخه و، الپ ارسلان د خمار په دره کښې (ښایې د اوسني میدان په کهنه خمار کښې)، داود په بست او د هغه تره بیغو يې په سیستان کښې مات کړل او وروسته بیا غزني ته راغی عبدالرشید يې د آل محمود له ځینو شهزادګانو سره وواژه (د ۴۴۳ - ۱۰۵۰م شاوخوا) خو د غزني خلکو پر طغرل بلوا وکړه او نوشتګین نامي دی وواژه، سلطان فرخزاد د مسعود زوی او د محمود لمسی يې د غزني پرتخت کښېناوه (۴۴۴هـ) ده د زابلستان د خلکو

له اوړو څخه د درنو مالیو بار لرې کړ، ځکه نو په خلکو ګران شو، فرخزاد د هېواد اداره لوی حاجب خرخیز ته وسپارله. هغه د سلجوقیانو د مقابلې له پاره لوی لښکر خراسان ته ولېږه او د ابن اثیر په وینا په ډېرو جګړو کښې بریالی شو. خو د فرخزاد ځینو مخالفینو دسیسه جوړه کړه او غوښتل یې چې دی په حمام کښې ووژني، خو پر (۴۵۰هـ) کال د خپلو ملګریو په مرسته له دې مړینې څخه وژغورل شو او تر (۷) کالو پاچهۍ وروسته د (۴۵۱ هـ) کال د صفر په میاشت کښې مړ شو، ورروسته یې ورور ابراهیم د مسعود زوی پاچهۍ ته ورسېد، ده له سلجوقي داؤد او آلپ ارسلان سره روغه وکړه او د افغانستان ختیزې برخې تر لاهور پورې ده په لاس کښې پاتې شوې، څو ځلې یې هند ته لښکر ویوست او د خیرآباد، ایمن آباد کلاوې او ډېر مسجدونه، مدرسې او ماڼۍ یې ودانې کړې، (۴۲) کاله یې په آرامۍ او هوسایې حکومت وکړ او پر (۴۹۲ هـ-۱۰۹۸م) کال پر شپېته کلنۍ مړ شو، زوی یې علاء الدین درېیم مسعود د ده پر ځای کښېناست او امیر عضدالدوله ته یې د هند امارت ورکړ، خو دا چې د سلطان سنجر خور "مهد عراق" یې ماندینه وه، نو ځکه یې له سلجوقیانو سره روغه او دوستي درلوده، له همدغه کبله یې هند نیولو ته پام واړاوه تر هغې چې د ده سپه سالار طغاتګین په هندستان کښې د ګنګ تراوبو پورېووت.

سلطان ابراهیم د (۵۰۹ هـ - ۱۱۱۵ م) کال په شاوخوا کښې مړ او زوی یې ارسلان شاه په غزني کښې پرتخت کښېناست؛ خپل ورور شېرزاد یې و واژه او خپله میره یې چې د لوی سلطان سنجر خور وه وکنځله، ځکه نو د ده بل ورور بهرامشاه له ده څخه د سنجر دربار ته وتښتېد، هغه له بهرامشاه سره مرسته وکړه او په غزني کښې یې ارسلانشاه مات او هندوستان ته یې په تېښته اړ کړ، چې هم هلته پر (۵۱۱ هـ - ۱۱۱۷ م) کال مړ شو، د ده پر



ځای بهرامشاه د سلجوقي سنجر په ملاتړ پر تخت کښېناست او خپله سکه یې د سلطان سنجر په نامه ووهله، ده هندوستان ته لښکر ویوست، پر (۵۱۲هـ - ۱۱۱۸م) کال یې په ملتان کښې محمد باهلیم له لسو زامنو سره له منځه یووړ او په سوالك کښې یې ناګور کلا جوړه کړه.

غزني ته له راتګ سره سم له سلطان علاء الدین جهانسوز غوري سره په جګړه اخته شو، په دې جګړه کښې یې زوی دولت شاه ووژل شو. بهرام شاه هندوستان ته پرشالاړ او غزني د غوریانو لاس ته ورغی. خو چې غوریان بېرته وګرځېدل، دی غزني ته راغی او پر (۵۵۲ هـ - ۱۱۵۷م) کال مړ شو تر ده وروسته خسروشاه د بهرامشاه زوی (۵۵۲ - ۵۵۷ هـ) او خسرو ملك د خسروشاه زوی (۵۵۷ - ۵۸۳ هـ) په غزني او لاهور کښې پر تخت کښېناستل، خو خسرو د غزانو په لاسو مات او هغوی غزني ونیو، دی لاهور ته لاړ او بیا پر (۵۸۳هـ) کال سلطان معزالدین محمد سام غوري په لاهور کښې خسرو ونیو، د غرجستان د بلروان په کلا کښې یې بندي کړ او پر (۵۸۷ هـ) کال یې وواژه. د ده له مړینې سره سم د غزنویانو د سبکتګین کهاله کمبله ټوله شوه.

د غزنویانو دولت په افغانستان، ایران، هندوستان او ماوراء النهر کښې د دجلې له کڅو (سواحلو) څخه ترګنګ پورې دوې پېړۍ واکمني لرله، چې غزني، بلخ، لاهور او بست یې پایتختونه وو.

په دغه عصر کښې اسلامي مدنیت او دري ژبې ډېره وده وکړه، په هېواد کښې د اسلام دین بشپړ خپور شو او هند هم د هغه په رڼا روښان شو، د هېواد له ختیځ څخه د کابل شاهۍ حکومت او دیانت نخښې ورکې شوې د غزنویانو نامتو وزیران ابوالعباس اسفرایني احمد بن حسن میمندي، حسن بن محمد میکالي، خواجه عبدالصمد خواجه طاهر منستوفي او نور وو. د

افغانستان، هندوستان، ماوراء النهر او ایران ښارونه ودان وو او ښه سوداګري په کښې کېده. نامتو پوهان او لیکوالان یې البیروني، ابن سینا، ابوالفتح بستي، ثعالبي، عبدالجبار العتبي، بونصر مشکان، ابوالفضل بیهقي، د کلیله او د منه خاوند نصرالله، ابو منصور موفق هروي (د کتاب الابنیه عن حقایق الادویه لیکونکي) عبدالحي ګردیزي د الحرب والشجاعه لیکونکی فخر مدبرمبارك شاه، د کشف المحجوب لیکونکی او نامتو صوفي ابوالحسن هجویري غزنوي دي.

فردوسي، فرخي، عنصري، عسجدي، منوچهري، سنایي، مسعود سعد سلمان، ناصر خسروبلخي، اسدي طوسي، سیدحسن غزنوي، ابوالفرج روني او مختاري غزنوي د دغه مهال نومیالي شاعران ګڼل کېږي.

د غزنویانو دربار په آسیا کښې د شاعرانو، عالمانو او د فن د خاوندانو پالنځای و، په خپله سلطان محمود پوه او ادیب پالونکی پاچاو، ځینې پوهان په فقه کښې یو کتاب د ده بولي او ځینې اشعار او قطعات یې رانقلوي.

د غزنویانو په عصر کښې نفیسه صنایع او د ودانولو فن د یادونې وړ وده کړې وه. سره له دې چې د تاتار یرغل د افغانستان په لویو ښارو کښې د صنعت ټول پایڅوړ (بقایا) له منځه وړی دی، خو د ودانۍ، ډېرو تورېلو او خطاطي له صنعت څخه د سبکتګین او سلطان محمود قبرونه او د غزني دوه څلي او د درېیم مسعود د ماڼۍ کنډوالې په غزني کښې د زمانې له لاس وهلو څخه خوندي پاتې دي، د بست د ښار د لښکر ګاه د آثارو له بقایاو څخه چې پر (۱۹۵۰م) کال په افغانستان کښې د فرانسوي لرغون پېژندونکیو له خوا کیندلي شوي د هغه ځای پر دېوالو یې د رنګینه نقاشیو هنري نخښې موندلي دي چې د غزنوي دورې د هنر او صنایعو طراوت ځنې



ښکاري. په غزنوي دوره کښې د هېواد د ولایاتو اداره د حکمرانانو په واسطه کېده چې د غزني د پاچهانو د دربار له خوا د ملکي او لښکري چارو له پاره له سپه سالارانو د دربار له لویو حاجبانو، پاشهزادګانو او د پاچا له خپلوانو څخه ګمارل کېده. د بیهقي په وینا د غزني د پاچهۍ په مرکز کښې به یو د دیوان وزیر او لوی خواجه (د مالیې د وزیر او صدراعظم په توګه)، یو دیوان عرض (د سپه سالار تر امر لاندې د حرب د وزارت د چارو له پاره)، د رسالت یو دیوان (د لوی دبیر تر امر لاندې د پاچهۍ د لیکنو د فتر د چارو له پاره) او د وکالت یو دیوان (د لوی حاجب تر امر لاندې د دربار د وزارت د چارو له پاره) و. د پاچهۍ په دربار کښې ځینې مشران د "ندیم، وزیر، خازن او کوټوال" په نامه وو او دا چې هېواد په خپل مرکز پورې نښتی او امنیت هم ټینګ و، نو ځکه د دولتي مالیو زیاتوالي هم یقیني دي، لکه څنګه چې مو د مؤرخانو په وینا د خراسان عباسي دورې د پیل مالیات په منځني ډول د (۴۵) ملیونو په شاوخوا کښې اټکل کړل اوس هم کولای شو په همدغه میچ (مقیاس) د ټول خراسان، د غزني، زابل، تخارستان، پېښور، لاهور، ملتان، سند، ماوراء النهر او خوارزم د ولایاتو عایدات د غزني دولت په خزانه کښې تر سل ملیونو درهمو زیات اټکل کړو، البته هغه زیاتې ولجې، ډېر جواهر او سره زر چې د هندوستان په جګړو کښې لاس ته راتلل له دغه حسابه بېل دي.

صاحب برید (ډاک چلوونکی) د جاسوسي دیوان، سالار (د لښکر مشر) او کوټوال (د پولیسو مشر او د ښار د کلا ساتندوی) په زیاتو لویو ښارو کښې د حکومت چارې اجرا کولې او عدلي چارې قاضي ته سپارل شوې وې، لکه د محمود په عصر کښې چې قاضي ابوالحسن د قاضي ابو محمد الفزاري له پارس څخه د استازی په ډول غزني ته راغی، سلطان چې

د ده علمي مقام، پرهیزګاری او ورع ولیده د غزنه قضا یې ورکړه، د هغه زوزاد تر ډېرو وختو پورې په هغه پایتخت کښې قاضیان وو.

د غزنویانو سیاسي اړیکي د بغداد د خلافت د دربار او د ماوراء النهر له خانانو سره تل دوستانه وو، تل د خلافت رسل (سفیران) او د ماوراء النهر امیران د غزني د پاچهانو دربار ته راتلل او د رسولدار (د تشریفاتو د رییس) له خوا په ډېر درناوي هرکلی ورته ویل کېده. د غزنوي دولت په مامورینو کښې د غزنوي تر پاچهۍ لاندې ټول خلك شامل وو. آن تر دې چې د غزني دربار په نویو لښکري خلکو او پوحي افسرانو کښې هندوان هم وو، همدارنګه د غزني په لښکر کښې ډېر زیات پښتانه هم وو. چې د هند په فتوحاتو کښې یې لویه ونډه درلوده

غزنوي پاچهان

* ۱ - میرالپتګین (۳۵۱ - ۳۵۲هـ)
۲ - امیر اسحق د الپتګین زوی (۳۵۲ - ۳۵۵ هـ)
۳ - امیر بلکتګین (۳۵۵ - ۳٦۵هـ)
۴ - امیر پیری تګین (۳٦۵ - ۳٦٦هـ)
* ۵ - امیر سبکتګین (۳٦٦ - ۳۸۷ هـ)
* ٦ - امیر اسماعیل د سبکتګین زوی (۳۸۷ هـ)
* ۷ - سلطان محمود د سبکتګین زوی (۳۸۷ - ۴۲۱هـ)
* ۸ - امیر محمد د محمود زوی (۴۲۱هـ)
* ۹ - سلطان مسعود د محمود زوی (۴۲۱ - ۴۳۲هـ)
۱۰ - محمد - دویم ځل (۴۳۲هـ)
* ۱۱ - سلطان مودود د مسعود زوی (۴۳۲ - ۴۴۱هـ)
* ۱۲ - دویم مسعود د مودود زوی (۴۴۱هـ)



۱۳ - علي د لومړي مسعود زوی (۴۴۱هـ)
* ۱۴ - عبدالرشید د محمود زوی (۴۴۱ - ۴۴۴هـ)
۱۵ - طغرل (د محمود مریی) (۴۴۴ هـ)
* ۱٦ - فرخزاد د لومړي مسعود زوی (۴۴۴هـ - ۴۵۱ هـ)
* ۱۷ - سلطان ابراهیم د لومړي مسعود زوی (۴۵۱ - ۴۹۲ هـ)
* ۱۸ - علاء الدین دریم مسعود (۴۹۲ - ۵۰۹ هـ)
۱۹ - شېرزاد د دریم مسعود زوی (۵۰۹ هـ)
* ۲۰ - ارسلان شاه د دریم مسعود زوی (۵۰۹ - ۵۱۱هـ)
* ۲۱ - بهرامشاه د دریم مسعود زوی (۵۱۱ - ۵۵۲هـ)
* ۲۲ - خسروشاه د بهرامشاه زوی (۵۵۲ - ۵۵۷هـ)
* ۲۳ - خسروملك د خسروشاه زوی (۵۵۷ - ۵۸۳هـ)

(۵۱ لمبر شجرې او ۴۹ نقشې ته دې وکتل شي)

اخخلیك: تاریخ سیستان - بیهقي - طبقات ناصري - ابن اثیر - طبقات سلاطین اسلام - ګردیزي - العتبي - پاول هورن مختصر تاریخ ایران- آداب الحرب - دائرة المعارف اسلامي - تاریخ ایران رازي - راهنمای افغانستان - سیاست نامه - ابن خلکان - ابن خلدون - تجارب الامم - فرشته روضةالصفا - حبیب السیر - تاریخ ګزیده - مجمل التواریخ والقصص - تاریخ الاسلام السیاسي - تاریخ الاسلام ذهبي - مجلة آریانا - لباب الالباب معجم الانساب زمباور - د سر اولف کیرو پټانز اخبارالدولة السلجوقیه - راحةالصدور - افغانستان بعد ازاسلام لومړی ټوك - مادر زبان دری - فتوح السلاطین - غزنویان بوسورت.

✿✿✿✿✿

# د سلجو قیانو او خوارزم شاهیانو واکمني

# او

# د سیستان د ملکانو لنډه یادونه

(۴۲۹ - ۶۳۲هـ)

سلجوقیان د سیحون او ارال رود د شمالي ترکمانانو یو ټبر و، چې د سامانیانو په وختو کښې د بخارا شمالي لور (اوسني نوراتا) او ماوراءالنهر ته راغلي او اسلام یې منلی و، څرنګه چې د دوی کار د ګلو روزنه وه، څکه نو د څړ ځایو د موندلو له پاره ګرځنده وو، په جند کښې د دغه ټبر مشر سلجوق د توقاق یایقاق تیمور زوی څلور زامن لرل: چې نومونه یې: پیغوار سلان مشهور په اسرائیل، میکائیل، یونس او موسی دي.

سلطان محمود سهواً د سلجوق ټبر څلور زره کورنۍ له جیحونه راپورې ویستې، په خراسان کښې یې تر نیشاپوره څړ ځایونه ورکړل او د سلجوق زوی اسرائیل یې چې د منهاج سراج په وینا "برق جهنده او شیر دمنده" ته ورته و په کالنجر کښې بندي کړ (د ۴۱۶هـ - ۱۰۲۵م شاوخوا) د میکائیل زامنو طغرل بیګ، داؤد او چغري بیګ ډېر ژر خپل ټبر راغونډ او خراسان یې تر غزني، سیستان، بلخ، نشاپور او کرمان پورې ونیو، طغرل (۴۲۹ - ۴۵۵ هـ) لکه چې د مسعود غزنوي په حالاتو کښې تېر شو، د دندانقان په جګړه کښې یې سلطان مسعود مات کړ، پر (۴۲۹هـ - ۱۰۳۷م)



کال یې په نشاپور کښې د پاچهۍ خول پر سر کښېښوو، خپل ورور پیغور یې د لوېدیځ افغانستان، پوشنج، هرات او سیستان په حکمدارۍ وګماره او پر (۴۳۲ هـ) کال تر بسته پر مخ ولاړ. ورونو یې داؤد او چغري بیګ د افغانستان په شمالي سیمو کښې له مرو او سرخس څخه نیولي تر بلخ او شبورقان پورې ونیول خو د بلخ په علي اباد کښې د سلطان مسعود لښکر مات کړ، تر هغه وروسته د دندانقان په جګړه کښې (۴۳۱ هـ) د سلجوقیانو ټولو قواو مسعود ته وروستنۍ ماته ورکړه، داؤد خپل نفوذ په جنوب کښې ترسیستانه او په شمال کښې تر بلخ او تخارستانه وغځاوه.

که څه هم سلطان مودود له غزني څخه خپل وزیر عبدالرزاق د احمد میمندي زوی په سیستان کښې د سلجوقیانو جګړې ته واستاوه (د ۴۴۰ هـ ۱۰۴۸ شاوخوا) خو څه یې ونه کړای شول او تخارستان، بلخ، ترمذ، قبادیان، وخش، ولوالج د چغري بیګ زوی الپ ارسلان (۴۵۵ - ۴۶۵ هـ ۱۰۶۳ - ۱۰۷۲ م) په لاس کښې وو، په خپله او زوی یې ملکشاه (۴۶۵ - ۴۸۵ هـ ۱۰۷۲ - ۱۰۹۲ م) له سلطان ابراهیم غزنوي سره دوستانه اړیکي وساتل او زابلستان او کابل یې تر لاهوره پورې غزنوي دولت ته پرېښوو، دا مهال د ملکشاه ورور تکش په بلخ کښې یاغي شو. ملکشاه پر (۴۷۷ هـ) کال هغه په ترمذ کښې ونیو او ړوند یې کړ. د ملکشاه زوی سلطان سنجر (۵۱۱هـ - ۵۵۲ هـ - ۱۱۱۷ - ۱۱۵۷ م) چې د سلجوقیانو د کهاله نامتو پاچا ؤ "لکه چې د غزنویانو په احوال کښې تېر شو" له بهرامشاه غزنوي سره یې د ارسلانشاه په مقابل کښې مرسته وکړه او هغه یې تر خپل اغیز لاندې تر لاهوره د غزني پاچا کړ (۵۱۱هـ) یا دا چې د سنجري هېواد وېش بالواسطه تر لاهوره ورسېد، همدارنګه سلطان سنجر (لکه چې د غوریانو په احوال کښې به یې راوړو) د هرات د غرو د ناب نومې ځای په درې کنجۍ کښې

له علاء الدین حسین جهانسوز غوري سره جګړه وکړه، علاء الدین یې ونیو او بېرته یې غور ته واستاوه (د ۵۵۰ هـ - ۱۱۵۵ م شاوخوا) تر هغه وروسته د قرخطاطایانو او غزانو نیمې وحشي قبیلې د منځنۍ آسیا له غرو څخه راووتلې او سنجري دولت یې له منځه یووړ (۵۵۲ هـ - ۱۱۲۸م شاوخوا) د افغانستان پر سیمو یې له غزني څخه تر زابل او سیستان پورې یرغل وکړ او خسرو شاه غزنوي یې د لاهور خوا ته پر شا وشاړه، خو د "غز" ګواښ ډېر ژر د غوریانو او خوارزم شاهیانو له خوا له منځه یوړل شو، د سلجوقیانو په وختو کښې د خوارزم شاهیانو د کورنۍ لاس هم پر خراسان او د افغانستان په شمالي او لوېدیزو سیمو بر شو، چې وروسته به وڅېړل شي.

هغه لویه پېښه چې د خوارزمیانو پر مهال منځته راغله هغه د خوارزمشاهیانو او د غوري کهاله "چې له ډېرو وختو یې په غور او بامیان کښې په خپلواکۍ حکم کاوه" جګړه وه چې د غوریانو او خوارزمیانو په احوال کښې به راشي، علاء الدین محمد (د ۶۱۱ هـ - ۱۲۱۴ م) په شاوخوا کښې غور، فیروز کوه او هرات تر غزني پورې ونیول، غوري کهول یې په غور کښې له پښو واچاوه تر هغه وروسته سلطان جلال الدین د خوارزمیانو وروستنی پاچا په افغانستان کښې له چنګیز لښکر سره جګړې وکړې چې په وروستۍ برخه کښې به یې تفصیل راوړل شي.

په دغه وخت کښې افغانستان پر څلورو برخو وېشلی شوی و: شمالي ولایتونه له تخارستانه تر مرْو پورې مستقیماً په سنجري او سلجوقي دربار اړه درلوده؛ د غور، بامیان او ګوزګانان سیمې د هرات تر شاوخوا پورې د غوریانو د کهاله تر لاس لاندې وې، زابل ولایت له هلمنده تر غزني، کابل، ننګرهار، پېښور او لاهور پورې د غزني د محمود کورنۍ په واکمنۍ کښې و او سیستان ولایت له بست او زمینداوره تر زرنج، فراه او نیه پورې



د سیستان په ملکانو اړه درلوده، چې دغو ملکانو د سلجوقیانو، غوریانو، غزنویانو او ان له چنګیزیانو سره هم ښه اړیکي ساتل، چې د صفاریانو او د نیمروز د وطني امیرانو له پایښت (بقایاو) څخه وو چې "د دوی د نومو تفصیل د صفاریانو په مبحث کښې تېر شو او هم د آل کرت ملکانو چې شرح به یې وروسته راشي له تاتاري یر غلګرانو سره لاس یو او هرات او سیستان یې تر لاسه کړي وو، د سیستان د ملکانو او صفاریانو له پایښت څخه لکه د صفاریانو په برخه کښې چې مو وویل یو هم ملك تاج الدین و (د ۴۸۲ هـ شاوخوا) د دغه سړي له نسله په سیستان کښې تر زرو کالو پورې امیران پاتې وو، چې د "ریو" په وینا پر (۱۰۲۸هـ) کال ملك جلال الدین محمود خان د سیستان امیر په (۱۶) پښت عمرولیث صفاري ته رسېږي او هم شاه حسین د ملك غیاث الدین محمد زوی چې د صفاریانو تاریخ یې له پخوانۍ زمانې څخه تر خپل مهاله د "کتاب احیاء الملوك " په نامه لیکلی دی په صفاریانو پورې اړه لري.

اخځلیك: طبقات ناصري، اخبارالدولة السجلوقیه - لب التواریخ - تاریخ سیستان - ابن اثیر - د پاول هورن تاریخ مختصر ایران - د خلیل ادهم دول اسلامیه د زمباور معجم الانساب - راحة الصدور.

(وګورئ ۵۲ نومره نسب پانه.)

# غوریان

## (۴۰-٦۱۲ هـ)

سوریان د خراسان او غور د افغانانو یو ټبر و، چې تر اوسه هم د هرات شمال لوېدیځ د بادغیس د زور آباد (زورابد - یاقوت) په شاوخوا کښې د "زوري" په نامه استوګن دي؛ تر اسلام دمخه هم دغه کهاله د تخارستان، غور، هرات او خراسان په غرو کښې حکمراني کوله او د "غرشاه" په لقب یادېدل، (په دغه لقب کښې د "غر" کلمه پښتو ده) دا کهول لرغوني افسانوي شخصیت "ضحاك" ته منسوب دی (دا نوم فردوسي "ضحاك" بللی او په پښتو سرچینو کښې د تاریخ سوري په حواله "سهاك" دی. طبري، البیروني او ابن بلخي یې "بیور اسپ ازدهاق" یادوي او په مسعودي کښې "ده اك" راغلی چې د طبري په وینا یې معرب ډول "ازدهاق" دی. په اوستا کښې "دهاك - اژی دها" یاد شوی چې په دري کښې "اژدها" او په پښتو کښې "اژدهار" دی، همدارنګه په خراساني نومونو کښې دا نوم ډېر کارېدلی لکه د زین الاخبار د لیکونکی عبدالحی ګردیزي د پلار نوم ضحاك (د ۴۰۰ په شاوخوا کښې) او ضحاك شیباني (د ۲۸۷ هـ شاوخوا) ظاهري فقیه او بامیان ته نژدې "ضحاك" نومې ښار او د "سهاکا" مشهوره پخوانۍ آریایي قبیله چې سکستان د دوی په نامه دی، مغفن صورت یې "سهاك" او "سهاکزی"



د افغاني قبیلو نومونه دي، دا ټول دا ښیي چې دا نوم د لرغوني افغانستان په نومونو کښې پخوانۍ ریښه لري.

د دغه کهاله په نورو نومو کښې یو نوم هم "بسطام" دی چې (د ګستهم - وستهم د پهلوان په مانا معرب ډول دی) چې فردوسي هم هغه یادوي، دغه سړی په شغنان، بامیان، تخارستان او غور کښې حکمراني کړې او تر هغه وروسته په غور کښې له دغه ټبر څخه دوو وروڼو لاس درلود چې یو امیر سول او بل سپه سالار سام و، د سوري ټبر امیران دغه نامه ته منسوب دي چې فردوسي او نورو مورخینو د "ماهوري سوري نژاد" په نامه یاد کړي، بلاذری د "جبل زور" او د هغه ځای د مشهور بت چې هیون تسنګ پر (٦۰۳م) د "شونا" په نامه لیدلی یادونه کوي، ابن فندق هم په تاریخ بیهقي کښې د سلطان مسعود د وختو د خراسان عمید سوري یادوي او په را وروسته وختو کښې نامتو شیر شاه سوري هم په هند کښې له دغه افغاني ټبر څخه را پاڅېدلی دی.

د سوري کهاله له نومیالیو څخه یو هم شنسب د خرنك زوی دی چې د فخرالدین مبارکشاه له نسب نامې څه د منهاج سراج په روایت د حضرت علي (رض) هممهالی او د هغه په حضور یې ایمان راوړی و، عهد او لواېې یې څنې اخیستې وه. له هغه کهاله څخه چې به هر څوك پر تخت کښېناست د حضرت علي‎ﷺ هغه عهد او لوابه ورکول کېده دا چې په اسلامي دوره کښې د غور لومړی حکمران دی چې موږ یې پېژنو او امیر پولاد غوري د ده له زامنو څخه و، چې د غور د غرو شاوخوا یې تر واکمنۍ لاندې وه، د خپلو پلرو نوم یې ژوندی کړ او چې صاحب الدعوت العباسیه ابو مسلم مروزی منځته راووت نو امیر پولاد د غور لښکر د ابو مسلم ملاتړ ته ور ووست، د آل عباس د تقویې له پاره یې ډېر کارونه وکړل د امیر پولاد د حکمرانۍ

مرکز د غور منديش و او د غور پر ټولو غرو او شاوخوا يې حکمراني کوله (د ۱۳۰ هـ - ۷۴۷ م شاوخوا). د امير پولاد يو زوی و چې امير کروړ نومېږ، د کندهار د خلکو د عنعنې او د احمد بن علي بستي د کتاب "تاريخ سوري" په حواله يې د پټې خزانې کتاب د متن له مخې پېژنو چې پر (۱۳۹ هـ - ۷۵۶م) کال د غور په منديش کښې امير و او د "جهان پهلوان" په نامه يې چې د فردوسي د پهلوانانو له القابو څخه دی شهرت درلود.

بالشتان (د کندهار د شمال والشتان) خيسار، تمران او برکوشك (د غور مشهورې کلاوې) د ده په لاس کښې وې، دی داسې غښتلی پهلوان و، چې يوازې له لسو تنو سره جنګېده او له همدغه امله يې کروړ باله چې په پښتو کښې د کلك او سخت په مانا دی. د دغه کهاله واکمنې تر زمينداور، بست او والشتان پورې رسېده، له اموي کهاله څخه عباسي کهاله ته د خلافت د انقلاب په جګړو کښې دی هم د ابو مسلم ملګری و، پټه خزانه د تاريخ سوري په حواله د ده يوه پښتو حماسه رانقلوي او د ښې وينا خاوند يې بولي، په خپلې دې پخوانۍ حماسه کښې امير کروړ جهان پهلوان د خپل حکومت سيمه له مرو او هرات څخه تر جروم (ګرمسير) غرج او تخار پورې ګڼي او وايي چې زرنج (سيستان) مې د توري په زور ونيو.

د ده دا حماسې شعر د خراسان او پښتو يو لرغونی حماسي اثر دی چې د ده د غښتلي روح، ملي غرور جهانګيرۍ او جهان کشايۍ ځرګندويي کوي، په هغه کښې هغه پښتو زاړه لغات او کلمات دي چې اوس په دې ژبه کښې مستعمل او ژوندي نه دي پاتې شوي.

امير کروړ پر (۱۵۴ هـ - ۸۰۰م) کال د هرات لوېديځ لوري ته د پوشنګ په جګړو کښې ووژل شو او تر ده وروسته يې زوی امير ناصر په غور، بست او زمينداور کښې حکومت کاوه (د ۱۶۰ هـ - ۷۷٦ م شاواخوا).



(د دې په زړه پورې تاريخي، ژبنی، او ادبي موضوع د تفصيل له پاره دې د کابل چاپ پټه خزانه کتاب او د پښتو ادبياتو تاريخ دويم ټوك وکتل شي).

منهاج سراج تر امير پولاد وروسته د هارون الرشيد تر وختو (د ۱۷۰ هـ - ۷۸٦ م) تر شاوخوا پورې د دغه کهاله د حکمرانانو يادونه، نه کوي، له ښه مرغه دا خلا پټې خزانې د محمد بستي د تاريخ سوري په حواله ډکه کړې چې په لنډ تفصيل سره د امير کروړ او امير ناصر يادونه کوي او بيا منهاج سراج د دغه کهاله يو بل امير، بنجی د نهاران شنسبی زوی د غور له لويو اميرانو څخه ګڼي او ليکي چې د خپل يوه معاصر غوري امير سره چې د بهرام زوی شيش نومېده د هارون الرشيد دربار ته ورغلل، امير بنجی د "قسيم امير المومنين" په لقب د غور امير او امير شيش د غور د لښکر پهلوان وټاکل شول (د ۱۷۰ هـ - ۷۸٦ م شاوخوا). د غور اميران د همدغه بنجي له نسله او د غور سپه سالاران د شيش له توکم څخه دي، چې د صفاريانو په وختو کښې له آل شنسب څخه په منديش کښې د غور امارت امير سوري ته رسېدلی و، لکه د صفاريانو په احوال کښې چې مو ولوستل د (۲۵۳ هـ - ۹٦۷م) په شاوخوا کښې يعقوب صفاري د نيمروز، بست او د اور ښارونه تر تګين آباد اور خج پورې ونيول، د هغه ځای امير يې له پښتو وغورځاوه، په دغه وخت کښې امير سوري د غرني غور امير و، چې تر هغه وخته لا د غور ټيمايي خلك مسلمانان نه وو، تر دې وروسته امير سبکتګين هم پر غور حملې وکړې، خو د سوري کهاله خپلواکی ته يې ځه تاوان ونه رسولای شو، لکه څنګه مو چې د غزنويانو په احوال کښې ولوستل سلطان محمود هم پر غور يرغل وکړ، خو د غور امير چې پر دغه مهال محمد سوري و، کله به يې اطاعت کاوه او کله نه. تر دې چې د بيهقي (۴۰۵ هـ -

۱۰۱۴م) کال او ابن اثیر په وېناو (۴۰۱ هـ) کال محمود د غور د جنوب له خوا د بست او خوابین له لارې له لوی لښکر سره غور ته ورغی، چې د لښکر په مخ کښې د هرات حکمران التونتاش او د طوس حکمران ارسلان جاذب وو، امیر محمد یې په یوه جګړه کښې د لسزریز لښکر په مرسته د آهنګران په کلا کښې کلابند کړ؛ محمد تر ډېرې مودې وروسته له کلا راووت او سلطان ته تسلیم شو، سلطان دی د ده له کشر زوی شیش سره غزني ته بوت، خو (غزني ته نژدې) د ګیلان په شاوخوا کښې هغه پر لاره زهر وخوړل چې په خپله ګوتمۍ کښې یې ځای کړي وو، ځان یې وواژه خو د یرغملتابه سپکاوی یې ونه مانه.

د پښتو ژبې وطني روایات چې د "لرغوني پښتانه" او "تاریخ سوري" کتابو په حواله په پټه خزانه کښې راغلي پورتنۍ تاریخي پېښې تاییدوي او د محمد د مرثیې پښتو بولله هم راوړي چې اسعد د محمد سوري زوی (چې پر ۴۲۵هـ د زمینداور په بغني کښې مړ دی) ویلي ده، دا شاعر په اهنګران کښې د ده په دربار کښې و، دا بولله چې د ژبني بلاغت او فصاحت له مخې ډېره پخه ده، د محمد د مقام لوړوالی او زړورتوب ښیي؛ د آهنګرانو د جګړې او د محمود له خوا د محمد بندیتوب څرګندوي او دی د سوري کهاله ویاړ بولي، چې د خپل کهاله د پت ساتلو په لاره کښې یې ځان قربان کړ، د شیخ اسعد بولله د پښتو لرغوني ادب له غوره آثارو څخه ده.

د محمد تر مړینې وروسته د سلطان محمود له خوا امیر بوعلي د محمد سوري زوی د غور د منډیش په غرو کښې د پلار پر ځای کښېناست، د سلطان تابع و، په غور کښې یې په مدرسو، جوماتو او مانیو جوړولو لاس پورې کړ او علم دوسته سړی و، ده د محمودي عهد تر پایه حکمراني وکړه،



خو د مسعود په وختو کښې د (۴۲۵ هـ - ۱۰۳۳م) په شاوخوا کښې (د بوعلي وراره) عباس د شیش زوی پورته شو، خپل تره یې بندي کړ او د غور پاچهۍ پر تخت کښېناست. عباس ظالم او بیباکه سړی و او د نجوم علم یې خوښ و، د منډیش ولایت په سنګه کلا کښې یې یوه رصدخانه ودانه کړه، خو خلکو د ده له تادا د سلطان ابراهیم غزنوي دربار ته شکایت وکړ، ابراهیم هم غور ته لښکر ویوست او امیر عباس یې غزني ته بندي بوت، د غور امارت یې د ده زوی امیر محمد ته چې د غزني دربار ته مطیع او عالم پالونکی، عادل او د ښو اخلاقو خاوند سړی و ، وسپاره. (د ۴۵۰ هـ - ۱۰۵۸م شاوخوا) تر محمد وروسته یې زوی قطب الدین حسن د محمد زوی او د عباس لمسی چې ستر پاچا او د غور د پاچاهانو نیکه و پر تخت کښېناست (د ۴۶۰ هـ - ۱۰۶۷ م شاوخوا)، ده د غورياغیان په جګړه د ځان تابع کړل په هغه جګړه کښې چې (د غزني جنوب لوېدیځ ته) دوجیرستان او کوشك په پای کښې یې له یاغیانو سره وکړه ووژل شو (د ۴۹۳ هـ شاوخوا) دده زوی ملك عزالدین حسین د غور پر تخت کښېناست، ده له سنجري دولت سره دوستانه اړیکي درلودل او د ښو اخلاقو څښتن، پر ژمنه ولاړ او عالم پالونکی پاچا و، چې اوو زامنو یې خراسان، غور، زابل، غزني، بامیان او تخارستان په خپلې پاچهۍ پورې تړلي وو او هر یوه پر یوې برخې په لاندې ډول حکومت کاوه:

۱- قطب الدین محمد چې خپل لرغونی هېوادنی لقب (غر شاه) یې رسماً پر عربي "ملك الجبال" واړاوه او ځان ته یې غوره کړ؛ د فیروز کوه د ښار کلا یې ودانه کړه، او د ورشاد (ورساد) په ولایت کښې یې چې د ده سیمه وه له خپلو ورونو سره شخړې جوړې کړې او غزني ته ولاړ، هلته د بهرامشاه غزنوي له خوا ووژل شو (۵۴۱ هـ - ۱۱۴۶م) چې د هغه وژل د

غوري او غزنوي کهولو تر منځ د اختلاف سبب شو.

۲- بهاء الدین سام د غور د مندیش په سنګه کښې و، همدا چې سلطان سوري غزني ته ولاړ فیروز کوه یې هم ده ته پرېښوو، دی پر (۵۲۴هـ ۱۱۴۹ م) کال په فیروز کوه کښې پر تخت کښېناست او د غرجستان له شارانو سره یې دوستي وکړه، د هرات په غرو کښې یې د شیرسنګ کلا، په غرجستان کښې یې د بند روا کلا، د غرجستان او مادین تر منځ یې د فیوار کلا جوړه کړه، او د ګیلان ملك بدرالدین لور (د ګیلان ملکه) یې چې د شنسبانیانو له نسبه وه، ځانته واده کړه، چې د دوو نامتو زامنو سلطان معزالدین محمد سام او سلطان غیاث الدین محمد سام مورده. سلطان بهاءالدین د خپل ورور سلطان سوري د غچ اخیستلو له پاره په جروم او غرجستان کښې لښکرې راغونډې او پر غزني یې یرغل وکړ، خو (د غزني) په ګیلان کښې مړ شو، ده د غزني د سفر په وخت کښې د غور او جبال تخت خپل ورور سلطان علاء الدین حسین ته پرېښی و.

۳- ملك شهاب الدین محمد خرنګ د حسین زوی چې د مادین سیمې په ده اړه درلوده، دا سیمه د غور یو ولایت و، د ده زوی ملك ناصر الدین ابوبکر د (۶۱۸هـ - ۱۲۲۱م) په شاوخوا کښې د ګزیو او تمران د ولایت (د کندهار شمالي خوا ته) حکمران و، د چنګیز تر یرغل وروسته هند ته په ډیلي کښې د التتمش دربار ته ولاړ او هلته د (۶۲۰ هـ) په شاوخوا کښې مړ شو.

۴- ملك شجاع الدین علي د حسین زوی چې د غور د جرماس ولایت حکمران و، تر هغه وروسته یې زوی علاء الدین ابوعلي په غور کښې د ده پر ځای کښېناست، د سلطان غیاث الدین په وختو کښې د غور، بست، وجیر، ګرمسیر، درمشان، روز ګان او غزني سیمې ده ته وسپارل شوې، د



خراسان تر نیولو وروسته په نشاپور کښې حکمران و، سلطان معزالدین دی بوت او د غرجستان او زمینداور حمکران یې وټاکه، پر (۶۰۱ هـ) کال یې د قهستان د ملا حده و د جناباد ماڼۍ ونیوله، خو د سلطان معز الدین تر شهادت وروسته د غرجستان د اشیار په کلا کښې بندي شو.

۵- علاء الدین حسین د حسین زوی د غور په وجیرستان کښې حکمران و او د خپل ورور سلطان بهاءالدین تر مړینې وروسته په فیروز کوه کښې د غور پر تخت کښېناست، د غور او غرجستان لښکرې یې را غونډې کړې او غزني ته یې مخه کړه، سلطان بهرام شاه له غزني څخه د غزني او هندوستان له لښکر سره راووت او د ګرمسیر او تګین آباد له لارې زمینداور ته ولاړ، علاء الدین چې دا جګړه د خپلو دوو وروڼو د غچ اخیستلو له پاره کوله، تګین آباد ته نژدې یې د بهرامشاه له لښکر سره لاس واچاوه، او تر هغه وروسته یې د غزني په شاوخوا کښې دوه خله د غزنویانو مقاومت مات کړ او د غزنوي دولت پایتخت یې ونیو (۵۴۵ - ۵۴۶ هـ)، ده هغه لوی ښار له خاورو سره برابر کړ او اوسېدونکي یې اته ورځې تول ووژل، له هغه ځایه یې بست او زمینداور ته مخه وکړه او د بست ښار یې له محمودي ماڼیو او ښکلیو ودانیو سره چې په خپل وخت کښې یې ساری نه و هم وران کړ، نو ځکه ورته جهانسوز ویل کېږي.

ده تر دې فتح وروسته تخارستان د غور په مرکزي دولت پورې وتاړه او خپل ورور فخر الدین ته یې وسپاره علاءالدین تر دې وروسته له سلجوقي سنجري دولت سره ونښت، سلطان سنجرد هر یو الرود د ناب په سیمه کښې له ده سره جګړه وکړه، څنګه چې خلك له علاءالدین څخه خواشیني وو، د ده شپږ زره خلجي او ترکي سپاره لښکریان سنجر ته تسلیم شول. په خپله علاءالدین د سنجر لاس ته ورغی بندي شو، خو څنګه چې سنجرد غزانو له

لاسه مات شوی و، علاءالدین یې و نازا وه؛ مرسته یې ورسرد وکړه او بېرته یې غور ته واستاوه همدا چې خلکو د ده په غیاب کښې ملك ناصر الدین حسین د محمد زوی له مادین څخه راوستی او د فیروز کوه پر تخت یې کښېنولی و، چې د علاءالدین د راګرځېدو خبر یې واورېدو ناصر الدین یې وواژه او علاءالدین ته تسلیم شول.

ده بامیان تخارستان، جروم (ګرمسیر)، د اور، بست او د هرات د جبال د تولك او غرجستان، مرغاب ښارو نه هم د غور د پاچهي اطاعت ته اړکړل او د ملا حده الموت رسل ته یې هم د غور په غرو کښې لار ورکړه، په پای کې د (۵۵۱هـ - ۱۱۵٦م) په شاوخوا کښې د غور په سنګه کښې مړ شو.

تر ده وروسته یې زوی سیف الدین محمد د فیروز کوه پر تخت کښېناست، د ملا حده ورسل یې وواژه او د غزانو د فتنې د مخنیوي له پاره یې ملا وتړله چې د هرات او قادس شاوخوا ته رسېدلي وو، خو تر یوه کال زیات ژوندی پاته نه شو او د غزانو په جګړه کښې د غوري سپه سالار شیش په لاس ووژل شو (د ۵۵۸هـ - ۱۱٦۳م شاوخوا).

علاء الدین جهانسوز د غور لومړی ستر سلطان دی چې د افغانستان هېواد یې تر یوې اداري لاندې راوست او د فیروز کوه په مرکز پورې یې وتاړه.

٦- سلطان سیف الدین سوري (۵۴۳ - ۵۵۴ هـ، ۱۱۴۸ - ۱۱۴۹م)
د غوریانو لومړی پاچا دی چې د سلطان لقب یې واخیست، د ده د پاچاهي مرکز د غور دا ستیه حصار و هغه وخت چې یې ورور قطب الدین ملك الجبال په غزني کښې ووژل شو، نو سلطان سوري له بهرامشاه غزنوي سره جګړه وکړه او هغه یې د کورم ناوې ته وخغلاوه، په خپله دی د غزني پر تخت



کښېناست او غور یې خپل ورور سلطان بهاءالدین ته پرېښو و، خو د ژمي په وخت کښې چې یې ورور علاءالدین حسین له غزني څخه غور ته ولاړ بهرامشاه د خلجي (غلجي) افغانانو له لښکر سره له ختیز لوري پر غزني یرغل وکړ، او سلطان سوري یې د هغه له وزیر سید مسجد الدین موسوي سره ونیو او د غزني د طاق د پله پر سر یې غرغره کړ، څو چې ورور یې جهانسوز د هغه په کسات کښې غزني وران کړ.

۷- ملك فخر الدین مسعود تر ټولو وروښو مشرو او د غور په کاسي کښې امیر شو، څنګه چې سلطان علاءالدین جهانسوز د غزني تر فتح وروسته تخارستان هم د ځان تابع کړ، نو خپل مشر ورور ملك فخر الدین مسعود یې د بامیان حکمران وټاکه، ده د شغنان او تخارستان غرونه تر درواز، بلور، وخش او بدخشان پورې ونیول او لکه چې د غیاث الدین محمد په احوال کښې یې لولئ د راغ زر په جګړه کښې د خپلو وریرونو په لاس بندي او بېرته بامیان ته واستول شو او هلته مړ شو (د ۵۵۰ هـ - ۱۱۵۵م شاوخوا). تر ده وروسته یې مشر زوی شمس الدین محمد په بامیان کښې امیر و، د فیروز کوه له درباره او د سلطان غیاث الدین له حضوره هم په رسمیت وپېژندل شو، ده بلخ چغانیان، وخش، جروم (ګرمسیر)، بدخشان او د شغنان غرونه لاس ته راوستل اود سلطانشاه خوارزمشاهي د مخنیوي له پاره یې د غور له لښکر سره یو ځای د مرود رودبار په جګړه کښې ګډون کړی و او د سلطان لقب یې وموند، د ده تر مړینې وروسته یې زوی بهاء الدین سام چې لوی او علمدوسته پاچا و د بامیان پر تخت کښېناست (۵۸۷هـ - ۱۱۸۹م) د ده دربار د پوهانو د غونډې ځای و. امام فخر الدین رازي شیخ الاسلام جلال الدین رسا د اوافصح العجم مولانا سراج الدین د ده په دربار کښې وو، د ده پاچهي له کشمیره تر کاشغر، تر مذه او بلخه

پورې او جنوب خوا ته د غور او غرجستان تر پایه پورې رسېدله، غور، غزني او بامیان د ده تر فرمان لاندې وو. هغه وخت چې سلطان معز الدین شهید شو (۶۰۲ هـ - ۱۲۰۵ م) نو د هېواد امیرانو دی غزني ته ور وغوښت خو دی په ګیلان تر ۱۴ کالو پاچهي وروسته مړ شو. بیا یې زوی جلال الدین علي پر ځای کښېناست (۶۰۲ هـ - ۱۲۰۵م) او خپل ورور علاء الدین یې د غزني پر تخت کښېناوه همدا چې د غور، غز او تاج الدین یلدوز لښکر د کرمان درې د کورم له شاوخوا څخه پر علاءالدین یرغل وکړ نو دی له بامیانه د خپل ورور د ملاتړ له پاره راغی او د ده په غیاب کښې یې ترد علاءالدین مسعود د شمس الدین محمد زوی د بامیان تخت ونیو او ورزات یې صاحب وزیر ته ورکړ، خو جلال الدین د غزني تر نیولو وروسته ژر بامیان ته ورغی او خپل اکا یې د هغه له وزیر سره وواژه. بیا چې تاج الدین یلدوز دویم ځل پر غزني یرغل وکړ، د علاءالدین لښکر یې د سقران (شنغران) په رباط کښې مات کړ او دی یې په غزني کښې کلابند کړ، نو جلال الدین له بامیانه د خپل ورور د ملاتړ له پاره ورغی، خو د واړه ورونه د یلدوز لاس ته ورغلل، بېرته بامیان ته واستول شول او هلته مړه شول (د ۶۱۲هـ - ۱۲۱۵م).

دا وه د غوري اوو ورونو لنډه یادونه چې د غور شهنشاهي یې جوړه کړه او تر هغو وروسته سلطان غیاث الدین بن محمد سام بهاءالدین قسیم امیر المومنین چې د غور له لویو پاچهانو څخه دی پاچا شو، دی له خپل ورور معزالدین سره د خپل ترد علاءالدین په امر د وجیرستان په کلا کښې بندي و، خو سلطان سیف الدین د علاء الدین زوی دوی خوشې کړل چې غیاث الدین د غزان په جګړه کښې ورسره و، خو چې سیف الدین د خپل سپه سالار له لاسه ووژل شو، همدغه شیش سپه سالار د غور او غرجستان لښکر راوستل او له غیاث الدین سره یې بیعت وکړ او د فیروز کوه پر تخت



یې کښېناوه (۵۵۸هـ - ۱۱۶۲م)، ده خپل ورور معزالدین د سر جاندار په رتبه دا ستیه او کجوران حکمران وټاکه، ابوالعباس شیش یې چې د سلطان سیف الدین تر وژلو وروسته یې دي ښه پیاوړی کړی و، وواژه. دا مهال د غیاث الدین تره ملك فخر الدین مسعود د بامیان له حکمران ملك علاء الدین قماج سنجري، د بلخ له حکمران او له تاج الدین یلدوز د هرات له حکمران څخه مرسته وغوښتله او د بامیان، بلخ او هرات له لښکرو سره یې پر فیروز کوه یرغل وکړ، په راغ زر نومي ځای کښې له یو بل سره جګړې ته چمتو شول. خو په لومړي سر کښې د غور پهلوانانو ملك یلدوز د هرات حکمران د هغه د لښکر په منځ کښې وواژه او هراتیان یې سره تیت کړل، بیا یې د بلخ لښکر هم مات او د قماج سر یې پرې کړ، د بامیان ملك فخرالدین ته یې ور واستاوه، په خپله یې هغه کلا بند کړ، خپل تره معزالدین او غیاث الدین یې محترمانه ونیول او بېرته یې بامیان ته واستول.

سلطان غیاث الدین تر هغه وروسته ګرمسیر او زمینداور ونیو: قادس، کالیون، فیوار، سیفرود، غرجستان، تالقان او ګرزوان یې هم د غور په سلطنت پورې وتړل او خپل ورور معزالدین یې له جروم (ګرمسیر)، تګین آباد او سیستان څخه د غزني، زاول او کابل خوا ته واستاوه. ده د غزانو لښکر چې په دغه وخت کښې یې غزني نیولی و، په (۵۶۹هـ - ۱۱۷۳م) کال له غزني څخه بېرته وشاړه او د غزنویانو پایتخت یې هم په غور پورې وتاړه، د هرات نیولو ته یې ملا وتړله او بهاءالدین طغرل د سنجر یو مریي چې پر هرات یې لاس بر شوی و، د سلطان تر لښکر دمخه خوارزم ته ولاړ او پر (۵۷۱هـ) کال هرات او تر هغه وروسته پر (۵۷۳هـ - ۱۱۷۷م) کال قوشنج هم د غور له مرکز سره ونښتل.

دا مهال د سیستان ملکانو (چې شرح یې تېره شوه) هم د اطاعت

غاړه کښېښووه او شمالي ښارونه لکه تالقان، اندخود، میمنه، فارياب، پنجده، مرو، دزق او خلم هم فتح شول، خو جلال الدين محمد د ايل ارسلان خوارزمشاه زوی د خطايانو په مرسته د هېواد شمالي شاوخوا ته ګواښ پېښاوه، ځکه نو غياث الدين پر (٥٨٨هـ - ١١٩٢م) کال د غزني لښکر د معزالدين په مشرۍ او د باميان لښکر د ملك شمس الدين په مشرۍ او د سيستان لښکر د تاج الدين حرب په لارښوونه د مرو په رود بار کښې را غونډ کړل، د مرغاب په کڅو (سواحلو) کښې يې خوارزمشاهيان مات او پر (٥٩٦ - ١١٩٩م) کال يې خراسان ونيو، تر نشاپوره پر مخ ولاړ، هغه يې ملك ضياء الدين ابو علي شنسباني ته وسپاره، مرو شاهجهان يې هم ونيول او ملك نصر الدين محمد خرنك يې د هغه ځای په حکمرانۍ وګماره، د سرخص ايالت يې تاج الدين زنګي د فخر الدين مسعود بامياني زوی ته وسپاره.

غياث الدين بيا هېواد ته مرکزيت ورکړ او د منځنۍ اسيا ټولې سيمې يې له هندوستانه تر عراقه او له چينه او جيحونه د هرمز تر سينده پورې د غور د فيروز کوه تر بيرغ لاندې راوستې. دی د خراسان ستر او يوازينی شهنشاه ګڼل کېده، نو د بغداد خليفه الناصر لدين الله هم خپل سفيران ابن ربيع او قاضي مجد الدين قدوه او ابن الخطيب د فيروز کوه دربار ته راواستول او غوري سلطنت يې په رسميت وپېژاند. د غور له درباره هم سراج الدين محمد جوزجاني د سفير په توګه بغداد ته ولاړ او په دغه ډول د فيروز کوه او بغداد د دوو شهنشاهيو تر منځ سياسي تاوده اړيکي ټينګ شول.

سلطان غياث الدين غوري د ختيځ او غور ستر علمدوست او زړه سواند پاچا و چې په دربار کښې يې پوهان راغونډېدل، دی پر ٦٣ کلنۍ د (٥٩٩هـ - ١٢٠٢م) کال د دربيمې خور (جمادی الاولی) پر ٢٧ ورځ د هرات



په ښار کښې وفات او په هغه لوی مسجد کښې چې ده په خپله جوړ کړی و ښخ دی، دا جامع جومات تر اوسه په هرات کښې شته. دی په لومړي سر کښې د خپلو اسلافو په شان د محمد کرام سيستاني په مذهب و، خو وروسته يې شافعي مذهب ومانه. د ده د دربار نوميالي پوهان قاضي وحيد الدين شافعي مرورودی او صدرالدين کرامي نيشاپوري وو. د ده د هېوادو قاضيان قاضي القضات معزالدين هروي او قاضي شهاب الدين هرمابادي او وزيران يې شمس الملك، عبدالجبار ګيلاني، فخر الملك شرف الدين قره‌ري، مجد الملك ريوشاري، عين الملك سورياني، ظهير الملك سجزي او جلال الدين ريوشاري وو. پر دوبي يې دارالملك فيروز کوه او پر ژمي زمينداور و. له خپل لاس ليك سره يې "حسبی الله وحده" ليکل (٥٣ نومره تصوير وګورئ).

د سلطان غياث الدين محمدسام تر مړينې وروسته يې زوی غياث الدين محمود چې يو عياش سړی و، د خپل تره معزالدين له خوا د بست، فراه او اسفزار په حکمرانۍ وګمارل شو، ده لښکر راټول کړ او تر مروشاهجان پورې پر مخ ولاړ، د معزالدين تر شهادت وروسته پر (٦٠٢ هـ) کال يې له بست څخه د زمينداور له لارې پر غور يرغل وکړ او فيروز کوه يې له ملك علاء الدين ابو علي څخه واخيست غور يې له غرجستان تالقان، ګرزيوان، قادس او ګرمسير سره لاس ته راوستل او د خپل پلار او تره د ملك وارث شو. ده تاج الدين يلدوز ته چې د معزالدين محمد له خادمانو څخه و، د غزني د حکمرانۍ چتر او مثال د سند تر سينده پورې ورواستاوه، پر (٦٠٥هـ - ١٢٠٨م) کال يې د هندوستان د هېوادو مثال سلطان قطب الدين ايبك ته ورکړ. په دې توګه يې د غور پاچهي د هند تر پايه بالواسطه ټينګه کړه.

پر (۶۰۷هـ - ۱۲۱۰ع) کال ملك رکن الدین ایرانشاه محمود د ملك علاء الدین ابوعلي زوی له پنځوس زریز غزنوي او کاسي لښکر سره پر غور او فیروز کوه یرغل وکړ، خو غیاث الدین محمود د ده سر پرې کړ، د میمنې او فاریاب تر منځ په سالوره کښې یې له علاءالدین آتسز حسین شنسبي سره چې د سلطان محمود خوارزمشاه په مرسته د بلخ، مرو، سرخس او رود بار له لښکرو سره یې د تالقان له لارې پر غور یرغل کړی و، جګړه وکړه؛ د خوارزمشاه او اتسز لښکر یې مات کړ، تر هغه وروسته څنګه چې علیشاه د تکش خوارزمشاه زوی د خپل ورور له درباره غور ته وتښتېد غیاث الدین محمود دی دبر کوشك په ماڼۍ کښې بندي کړ، د علیشاه نوکرانو دی پر (۶۰۷ هـ - ۱۲۱۰ م) کال وواژه؛ دی سخي، بخښونکی، عادل او حلیم پاچا و، د پلار (۸۰۰) زرعین سندوخه خزانې چې د څلورو سوو او ښانو بارکېده خلکو ته وبخښلې.

د غیاث الدین محمود تر مړینې وروسته د غور امیرانو د ده څوارلس کلن زوی بهاء الدین سام د فیروز کوه پر تخت کېښناوه، درې میاشتې وروسته سلطان علاء الدین اتسز شنسبي د سلطان محمود خوارزمشاه او د هرات امین حاجب ملك خان په مرسته پر فیروز کوه یرغل وکړ او د (۶۰۷م) کال پر درېیمه خور (جمادی الاولی) یې هغه ښار ونیو، بهاءالدین یې د شاهي کورنۍ له ښځمنو سره خوارزم ته وشاړه، تر هغه وروسته علاءالدین اتسز د علاءالدین حسین جهانسوز زوی د فیروز کوه پر تخت کېښناست او تر (۴) کالو پورې یې حکومت وکړ په ګیلان کښې د ملك تاج الدین یلدوز او موید الملك محمد د عبدالله سیستاني زوی د غزني له وزیر سره په جګړه کښې مات شو، وروسته ملك نصیرالدین حسین امیر شکار له غزني څخه پر غور یرغل وکړ او په جرماس کښې یې علاءالدین



اتسز وواژه، غور یې د غزني د پاچهۍ تر اثر لاندې راوست، د (۶۱۱هـ - ۱۲۱۴ع) په شاوخوا کښې تاج الدین یلدوز له غزني څخه علاء الدین "در غور" بېرته د فیروز کوه تخت ته واستاوه، خو علاءالدین پر (۶۱۲هـ) کال د سلطان محمد خوارزمشاه لاس ته ورغی په خوارزم کښې مړشو، ټول غور د خوارزمشاهۍ تر لاس لاندې شو.

د سلطان غیاث الدین محمد بل ورور ابوالمظفر معز الدین محمد بن سام قسیم امیرالمؤمنین، هم د ختیځ او آل شنسب ستر پاچا ؤ چې له خپل ورور سره، سر جاندار (د شاهي ګارډ قوماندان)و، تر هغه وروسته د غور د کجوران او استیه د ولایت حکمران شو(۵۵۸ هـ - ۱۱۶۲ م) او د ګرمسیر ښاورنه یې تر تګین آباد پورې لاس ته راوستل، ده په غزني کښې د غزانو دوولس کلنه واکمني ړنګه کړه، د سلطان غیاث الدین محمد په امر د غزنی پر تخت کښېناست(۵۶۹هـ - ۱۱۷۷م)، پر (۵۷۰ هـ) کال یې ګردیز فتح او ملتان یې له قرامطه څخه ونیو او پر (۵۷۳ هـ - ۱۱۷۷ع) کال یې د سنقران د یاغیانو غورځونه تاوکړل، پر (۵۷۴ هـ) کال د "بهیم د یو نهرواله" په جګړه کې مات شو. پر (۵۷۵ هـ) کال یې فرشور (پېښور) او پر (۵۷۷هـ - ۱۱۸۱م) کال یې لاهور ونیو، تر هغه وروسته د خپل ژوند تر پایه یې ټول هندوستان ونیو او د اسلام په نور یې روښانه کړ.

په افغانستان کښې د ده د وختو له مهمو پېښو څخه په اندخود کښې د خط له کفارو او د ترکستان له ملوکو سره د سلطان معزالدین محمد جګړه وه چې سالار حسین خرمیل د ګرزیوان ملك د ده د لښکر په مخ کښې و، خو څنګه چې د غوریانو لښکر څه ونه کړای شول، نو ملك عثمان سمر قندي چې د ترکستان د آل افراسیاب له ملکانو څخه و، منځګړی شو او روغه یې وکړه، سلطان غزنین ته وګرځېد، په پنجاب کښې د کوکهران ډله

او د جود د غره قبایل یاغیان شول. ځکه نو سلطان محمد د هغو غزا ته و ووت، د هغو تر سر کوټلو وروسته د غزنه پر لار د ملا حده د یوه فدایي له لاسه په دمیك نومي ځای کښې (چې د اوسني پنجاب د جهلم په سیمه کښې دی) د (۶۰۲هـ - ۱۲۰۵م) کال د برات (شعبان) پر ۳مه شهید شو.

سلطان محمد معزالدین غوري هم د خپل ورور په شان د آسیا په زړه کښې یو لوی هېواد وساته او د غور د شهنشاهۍ حدود یې په هندوستان کښې د ګنګا تر سواحلو ورسول او هم یې هند د اسلام په نور روښانه کړ، د ده هېواد ختیځ خوا ته د ګنګا تر کڅو (سواحلو) لوېدیځ پلو ته د خراسان، خوارزم نسا او باور د تر پایه پوري غځېدلی و، جنوب له بحیرهٔ عرب سره نښت، د ده حکمداران په لاندې ځایو کښې دا کسان وو: په غور کښې ملك ضیاء الدین، په بامیان کښې ملك تاج الدین زنګی، په ملتان کښې ملك حسام الدین علی کر ماج، په لاهور کښې ملك قطب الدین ایبك، په غزنه او کرمان کښې ملك تاج الدین یلدوز، په سند هوا چه کښې ملك ناصر الدین قباچه، په بامیان کښې سلطان بهاءالدین سام، په فیروز کوه کښې سلطان غیاث الدین محمود، په سیستان کښې ملك تاج الدین حرب، په مکران کښې ملك تاج الدین، او په وخش کښې ملکشاه.

د ده نومیالي وزیران ضیاءالملك درمشی، مؤید الملك محمد عبدالله سجزي، او شمس الملك عبدالجبار ګیلاني دي. قاضیان یې صدر شهید نظام الدین ابوبکر، سید شرف الدین ابوبکر د صدر شهید زوی او د لښکر قاضي یې شمس الدین بلخي و. د پاچهۍ بیرغونه یې ښۍ خوا سور او کیڼ خوا ته تور وو. منهاج سراج د سلطان په شاهي خزانه کښې د ډېرې شتمنۍ یادونه کوي چې د خواجه اسماعیل خزانه دار په وینا د غزني په خزانه کښې نوازي یو زر او پینځه سوه منه الماس وو.



د پټې خزانې په کتاب کښې د پښتو ژبې محلي روایتونه د پخوانیو کتابو په حواله دا څرګندوي چې د محمد غوري په دربار کښې د پښتو ژبې شاعران وو، چې یو له هغو څخه ښکارندوی د فیروز کوه د کوټوال احمد زوی دی، چې په هند کښې د محمد د فتوحاتو په ستاینه کښې یې یوه ډېره ښه او خوندوره بولله ویلې او په پټه خزانه کښې لیکل شوې ده چې د پښتو ژبې له خورا مهمو ادبي، تاریخي آثارو څخه ګڼل کېږي (وګورئ ۵۴ نومره تصویر).

د معزالدین محمد غوري تر شهادت وروسته هغه لوی هېواد ټوټې ټوټې شو، د افغانستان ختیزه برخه له غزني څخه تر سنده پوري د تاج الدین یلدوز لاس ته ورغله چې د غور د دربار له خدمتګارانو څخه و او د محمد خدمت یې کاوه.

دغه تاج الدین خپله یوه لور ملك قطب الدین ایبك (د هند حکمران) ته او بله لور یې هم ناصرالدین قباچه (د سند حکمران) ته ورکړې وه، غزني یې د سند تر سینده ونیو، خو هغه وخت چې قطب الدین ایبك له لاهور څخه پر غزني یرغل وکړ یلدوز د سند په پنج آب سیند کښې ورسره جګړه وکړه او مات شو، د کرمان د" کورم" ناوې ته ولاړ او له هغه ځایه یې په غزني کښې پر قطب الدین یرغل وکړ قطب الدین په غزني کښې تر څلوېښتو ورځو پاچهي. وروسته بېرته هند ته ولاړ او غزني د یلدوز په لاس کښې پاته شو، لکه چې وویل شول د سلطان غیاث الدین محمود په ملاتړ د هرات په جګړه کښې د سلطان محمد خوارزمشاه په مقابل کښې ودرېد او پر سیستان یې هم لښکر ویوست او له تاج الدین حرب سره یې چې د سیستان ملك و، روغه وکړه (۶۰۲ هـ). ده نه کاله د معزالدین محمد په نامه سکه ووهله چې "عبده" یې پر لیکلي وو. همدا چې د سلطان محمد خوارزمشاه لښکریان له

تخارستانه پر غزني راغلل او تر گردیزه یې ونیول نو تاج الدین یلدوز هندوستان او لوهور ته ولاړ او په هغه جگړه کښې چې په تراین کښې یې له سلطان التمش سره وکړه ونیول شو او په بداون کښې ووژل شو (د ٦١١ هـ، ١٢١٦م شاوخوا) د غوریانو د سلسلې د شلېدلو په وخت کښې (٦١٢ هـ شاوخوا) خوارزمشاهیانو شمالي ولایتونه غور او هرات ونیول او سیستان تر بست، تگین آباد او زابلستان پورې د سیستان د محلي ملکانو لاس ته ورغی. غزني ولایت، کابل او ختیزې سیمې تر سنده پورې په تاج الدین یلدوز پورې اړه ومونده، تر ده وروسته د خوارزمشاهي له درباره ملک کربز په غزني، امین ملک په هرات او اختیار الدین محمد خرپوست په پېښور کښې واکمن وو (د آل شنسب وروستنی پېښې د چنگیز د راوتلو په شرح کښې راوړل کېږي).

د غوریانو په وخت کښې د غزنویانو د دورې مدنیت بشپړ تابه ته ورسېد، د دري ژبې ادبیات د غوري فاتحینو په واسطه تر ډهلي پورې خپاره شول، پښتو ژبه هم د سوریانو په کهانه کښې پالل شوې او د شعر او ادب ژبه شوه، د اسلام دین یې په ټول افغانستان او د هند په زیاته برخه کښې خپور کړ، صنعت او عمران چې بېلگې یې د هرات جامع مسجد، د غور جام خلې (منار) (وگورئ ٥٥ - ٥٦ نومره عکسونه) او د ډهلي قطب منار دي ډېره وده وکړه، علوم او فنون د غوریانو په لوی هېواد کښې له نامتو پوهانو او شاعرانو سره وپالل شول او د (افغان، هند) اسلامي مدنیت چې لودیانو او غزنویانو یې بنسټ اېښی و، پخوالي ته ورسېد.

د غوریانو د دورې نومیالي پوهان او شاعران داوه: امام فخرالدین رازي، نظامي سمرقندي، احمد میداني نیشاپوري (د مجمع الامثال خاوند) علي باخرزي (د دمیته القصر خاوند) قاضي منهاج سراج جوزجاني (د



طبقات ناصري خاوند) قاضي وحیدالدین شافعي مرورو دي، صدر الدین کرامي نیشاپوري، معز الدین هروي، شیخ الاسلام جلال الدین ورساد، مولانا سراج الدین جوزجاني، ابو نصر فراهي، محمد عوفي (دلباب الباب خاوند)، اسعد سوري، شیخ تیمن، تایمني، ملکیار غرشین، قطب الدین بختیار، بنکارندوی (پښتو شاعران) ملک الکلام فخرالدین مبارکشاه (د غوریانو د منظومې نسب نامې خوند) او نور.

د غوریانو درباري ژبې پښتو او دري وې، څنگه چې غوریان د پښتنو له سوري ټبره څخه وو. نو ځکه د دوی په وختو کښې پښتانه د غور او سلیمان له غرو څخه د ترنک، ارغنداو، هیلمند، کابل او هریرود ناوو ته راسر شول، د هند په فتوحاتو کښې یې د پاچهانو په لښکر کښې هم گډون وکړ، د پښتنو د قبیلو زیات خلک او مشران په هند کښې د شهنشاهانو او د هغو له خوا ناستیو سره پاتې شول. چې د هغو پایڅوړ تر اوسه هم په ټول هند کښې ډېر شته لکه لودیان، سوریان، مومندان، شیرانیان، بهریچان (بړیځان) چې زیاتره یې په هند کښې دروهیله یاپټهان په نومو یادېږي، دا خلک ان تر اوسه هم د هند په مختلفو سیمو کښې ځانگړي حکومتونه او د ریاست او نفوذ سیمې لري.

د غور د شاهي کهانه نومیالي

١ - شنسب د خرنگ زوی (د ٤٠ - ٨٠ شاوخوا)
٢ - امیر پولاد د شنسب زوی (د ١٣٠ هـ شاوخوا)
٣ - امیر کروړ د پولاد زوی (١٣٩ - ١٥٤ هـ)
٤ - امیر ناصر د کروړ زوی (د ١٦٠ د هـ شاوخوا)
٥ -امیر بنجي د نهاران زوی (د ١٧٠ هـ شاوخوا)
٦ - امیر سوري د ؟ زوی (د ٢٥٣ هـ شاوخوا)

۷ - امیر محمد سوري (د ۴۰۵ هـ شاوخوا)

۸ - امیر بوعلي د محمد سوري زوی (د ۴۲۵ هـ شاوخوا)

۹ - عباس د شیش زوی او د بوعلي وراره (د ۴۵۰ هـ شاوخوا)

۱۰ - امیر محمد د عباس زوی (د ۴۵۰ شاوخوا)

۱۱ - قطب الدین حسن د محمد زوی ( د ۴۶۰ هـ شاوخوا)

۱۲ - ملك الجبال عزالدین حسین د قطب الدین حسن زوی (د ۵۱۰هـ شاوخوا)

۱۳ - قطب الدین محمد د عزالدین زوی ( په ۵۴۱ هـ کنبي وژل شوی)

۱۴ - بهاءالدین سام د عزالدین زوی ( ۵۴۴ ـ ۵۵۴ هـ)

۱۵ - ملك شهاب الدین خرنك د عز الدین زوی ( د ۵۵۰ هـ شاوخوا)

۱۶ - ملك شجاع الدین د عز للدین زوی ( د ۵۵۰ هـ شاوخوا)

* ۱۷ - سلطان علاءالدین حسین جهانسوز د عزالدین زوی ( ۵۴۴ ـ ۵۵۱ هـ)

۱۸ - سلطان سیف الدین د عزالدین زوی (۵۴۳ ـ ۵۴۴ هـ)

* ۱۹ - ملك فخرالدین مسعود د عزالدین زوی ( د ۵۴۰ هـ شاوخوا)

* ۲۰ - سیف الدین محمد د جهانسوز زوی ( ۵۵۱ هـ)

* ۲۱- سلطان غیاث الدین محمد سام (۵۵۸ ـ ۵۵۹ هـ)

* ۲۲- سلطان معزالدین محمد سام ( ۵۶۹ ـ ۶۰۲ هـ)

* ۲۳ - سلطان غیاث الدین محمود د غیاث الدین محمد زوی (۵۹۹ ـ ٦۰۷ هـ)



* ۲۴ - سلطان بهاءالدین سام د محمود زوی (٦۰۷ هـ)

۲۵ -علاءالدین اتسز د جهانسوز زوی (٦۰۷ ـ ٦۱۱ هـ)

۲٦ - علاءالدین درغور (۵۹۹ ـ ٦۱۲ هـ)

۲۷ -ملك ناصرالدین گزیو د شهاب الدین خرنك زوی (د ٦۱۸ هـ شاوخوا)

۲۸ - سلطان شمس الدین محمد د فخرالدین مسعود زوی ( د ٦۵۰هـ شاوخوا)

۲۹ - سلطان بهاءالدین سام د شمس الدین محمد زوی ( ۵۸۷ ـ ٦۰۲ هـ)

* ۳۰ - جلال الدین ابو علي د بهاءالدین سام زوی (٦۰۲ ـ ٦۱۲ هـ)

۳۱ - علاءالدین مسعود د بهاء الدین سام زوی (٦۰۲ ـ ٦۱۲ هـ)

۳۲ - علاءالدین مسعود د شمس الدین محمد زوی (٦۱۰هـ شاوخوا)

مأخذونه: طبقات ناصری - ابن اثیر - دول اسلامیه - پټه خزانه - آداب الحرب - دایرة المعارف اسلامی - فرشته - شوکت افغانی - معجم الانساب - گزیده - لب التواریخ - فتوح اسلاطین عصامی - (وگورئ ۵۷ نومره نسب لیك).

# خوارزمشاهیان

خوارزم یو زرغون، ودان او مشهور ولایت و چې د آمو له سینده اوبېده، د اتیا فرسخو په شاوخوا کښې یې اوږدوالی درلود، ښارونه یې له بازارو ډك او کلي یې یو بل ته سره نژدې وو، د کرهنې ځمکې او مانۍ یې درلودې، پایتخت یې ګرګانج (جرجانیه) نومېده او له ډېرو پخوانیو زمانو څخه یې د افغانستان د شمالي او مادون النهر له ښارو سره اقتصادي، سیاسي او فرهنګي اړیکي درلودل.

د مارکوارت په وینا ایریانم ویجو (باختر ته تر هجرت دمخه د اریایانو اصلي ټاټوبي) همدا ځای و. دا نوم په اوستا کښې XVARIZEM او په پخواني فرس کښې "هوارزمیش" و، خوارزمي ژبه نورو آریایي ژبو ته یوه نژدې ژبه وه چې په وروستنیو کیندنو کښې یې آثار راوتلي دي. البیروني هم دا ژبه په آثارالباقیه کښې یوه مستقله ژبه ګڼلې ده، د هغې د میاشتو نومونه یې لیکلي دي او وایي چې د خوارزم ملکانو ته "خوارزم شاه" وایي.

د ٣٢ هـ په شاوخوا کښې احنف د قیس زوی عربي فاتح د مادون النهر سیمې له تخارستانه تر تالقان، فاریاب او جوزجان پورې ونیولې او د آمو له غاړو خوارزم ته واوښت. خو ویې نه نیولای شوې د معاویه د زوی یزید په وختو کښې هم سلم د زیاد زوی د خوارزم له خلکو سره په ځلور سوه



زره درهمه روغه وکړه، خو چې یزید د مهلب زوی د حجاج له خوا خراسان ته راغی له خوارزمیانو سره وجنګېد (د ٨٢هـ شاوخوا)، او د (٨٦ هـ شاوخوا) قتیبه د مسلم باهلي زوی هغه فتح کړ.

د البیروني په وینا د خوارزمشاهیانو د کهاله لومړی مؤسس کیخسرو وو او د اسلام له پیله خوارزم د حکومت له پلوه پر دوو برخو ووېشل شو:

شمال برخه چې پایتخت یې "ګرګانج" و، د عربي امیرانو له خوا اداره کېده او جنوبي برخه چې مرکز یې "کات" و د خوارزمشاهانو سیمه وه، د خوارزمشاهانو مشهوره کورنۍ تر اسلام دمخه او وروسته مامونیان و، چې په اسلامي دوره کښې یې مؤسس ابو سعید احمد د محمد زوی و چې د (٣٤٠ هـ په شاوخوا کښې) یې ژوند کاوه، د ده د (٣٦٦ هـ کال) سکې شته له دې کورنۍ څخه ارثموخ خوارزمشاه د هجري سنې د پیل په شاوخوا کښې اوسېده، نسب یې د البیروني په وینا افریغ ته رسېده او چې قتیبه دویم وار پر خوارزم بری وموند خوارزمشاه اسکجموك د ازکاجوار زوی د سبری لمسی د سخر کړوسی او د نوموړي ارثموخ کوسی یې په خوارزمشاهۍ وپېژاند د (٨٦هـ شاوخوا) چې د احمد د نسب سلسله ده ته په لاندې توګه رسېده: احمد د محمد زوی، د عراق لمسی، د منصور کړوسی، د عبدالله کوسی چې هغه بیا د تر کسباثه زوی، د شاوشفر لمسی او د اسکجموك کړوسی و.

دویم: ابو عبدالله محمد د احمد زوی چې د ابن اثیر په وینا پر (٣٨٥ هـ) کال مړ دی.

دریم: مامون د محمد زوی چې کورنۍ یې د ده په نامه "مامونی" یادېږي، د سامانیانو له خوا په ګرګانج کښې د خوارزم والي و، دی له ابو عبدالله خوارزمشاه سره وجنګېد او بریالی شو، د خوارزمشاهۍ لقب یې پر ٣٨٥هـ خپلې کورنۍ ته واړاوه، پر (٣٨٧ هـ) وفات شوی؛ یوه لور یې د

سلطان محمود ماندینه وه.

څلورم: ابو الحسن علي د مامون زوی پر (۳۸۷ هـ) پر تخت کښېناست، د سبکتګین لور حره یې وکړه، په خوارزم کښې یې ابن سینا ته ښه راغلاست وویل او سکه یې شته.

پینځم: ابو العباس د مامون زوی پر ( ۳۹۰ هـ) کال.

شپږم: ابو الحارث محمد د علي زوی او د مامون لمسی چې پر (۴۰۷ هـ) کال یې سکه ووهله او پر (۴۰۸ هـ) کال سلطان محمود له منځه یووړ، د غزنه له درباره یې لوی حاجب التونتاش د خوارزم په حکومت وګمارد، د خوارزمشاه لقب یې ورکړ، د مامونیانو د کورنۍ کمبله ټوله شوه، او تر التونتاش وروسته یې زوی هارون (۴۲۳ هـ) او اسماعیل خندان د التونتاش زوی (۴۲۵ هـ)او شاه ملك (۴۲۹ هـ) په خوارزم کښې حکومت کاوه چې پر (۴۳۴ هـ) کال طغرل بیګ سلجوقي له منځه یووړل.

د خوارزمشاهیانو د دویمې کورنۍ بنسټ د انوشتګین په لاس کښېښنوو شو چې د بلکاتګین له مریانو څخه و، د (۴۷۰ هـ) په شاوخوا کښې یې د سلجوقي دولت په وختو کښې شهرت وموند او د "غرشا" لقب یې واخیست" همدا چې پر (۴۹۰ هـ) اکنجی قچقار د بر کیاروق ګمارل شوی حکمران ووژل شو، نو د خراسان والي امیر داد حبشي د بر کیاروق په تصویب قطب الدین محمد د انوشتګین زوی په خوارزمشاهۍ وټاکه، تر هغه وروسته دا لقب د چنګیز تر راتلو پورې دې کورنۍ ته پاتې شو، چې یو وخت یې د واکمنۍ سیمه تر زمینداوره هم رسېدلې او پر (٦۱۷ هـ) وروستنی خوارزمشاه جلال الدین منکبرنی د افغانستان په خاوره کښې د چنګیز له لښکریانو سره ډېرې جګړې وکړې.

د دغه کهاله نور کسان چې خوارزمشاهۍ ته رسېدلي دادي:



۳ - اتسز د محمد زوی چې پر ( ۵۲۱ هـ) کال پاچا شو، اوسکه یې ووهله، پر (۵۳۳ هـ) یې له سلطان سنجره ماته وکړه خو پر (۵۳۵ هـ) یې د خوارزم تخت بیا د ده ته ورکړ.

د ده په وختو کښې علي چتري په هرات کښې پورته شو، خواتسز د سنجر ټول ملکونه ونیول او دربار یې د فاضلانو د راغونډېدو ځای شو، رشیدالدین وطواط خپل کتاب حدایق السحر د ده په نامه ولیکه، د (۵۵۱هـ) کال پر درېیمه خور (جمادی الاخری) مړ دی.

۴ - ایل ارسلان د اتسز زوی: دی د پلار تر مړینې وروسته پر خوارزمشاهي تخت کښېناست او د قراخطا او قفچاق له قبیلو سره یې روغه وکړه، د سنجري ملکانو پایڅوړ یې له خراسانه وشاړه او یا یې روغه ورسره وکړه او پر (٦۵۸ هـ) مړ شو.

۵ - سلطان شاه ابوالقاسم محمود د ایل ارسلان زوی (۵٦۸- ۵۸۹هـ)

چې له ورور سره د دښمنۍ له امله یې د غور د سلطان غیاث الدین دربار ته پناه یو وړه، خو دا چې د غور دربار له سلطان تکش سره تړون درلود څه مرسته یې ورسره ونه کړه، محمود ماوراءالنهر ته ولاړ، د "خطا له خانه" یې ملاتړ وموند او خراسان یې د غز د امیرانو له لاسه وژغوره، په مرو کښې یې دارالملك جوړ کړ، د هرات ملك بهاءالدین طغرل هم ورسره یو ځای شو، تل به یې د غور بریدونه ګواښل، خو سلطان غیاث الدین غوری په مرورود کښې د غور بامیان او سیستان لښکرې راغونډې کړې او تر شپږو میاشتو یې جګړه وکړه، په پای کښې د غور د سلطان لښکرې له مرغابه پورېوتلې او بهاءالدین یې وواژه او محمود د ماتې په حال کښې پر (۵۸۸ هـ) کال مروته وګرځېد، زهر یې وخوړل او مړ شو (۵۸۹ هـ).

٦ - ابو المظفر سلطان تکش د ایل ارسلان زوی: د ۵۸۹ هـ کال د

لومړی خور (ربیع الاول) پر ۱۲ پر تخت کښېناست، دی لوی عالم او هنرور پاچا و، چې نیم خراسان یې په خپل متې تر لاس لاندې کړ د هېواد وېش یې د هیلمند تر غاړو رسېده. ډېرې سکې یې په داور (زمینداور) کښې وهل شوې او له هغه ځایه لاس ته راغې. تکش د قفچاق او خطا له قبیلو سره روغه کړې وه مازندران او د عراق یوه برخه یې ونیوله، د سنجر وراره سلطان طغرل یې بندي کړ؛ د بغداد خلافت دربار یې، ګوابنه، د بغداد وزیر" ابن القصاب" یې مات کړ د خلافت دربار خپل دوه تنه سفیران ابن الربیع او ابن الخطیب د غور د فیروز کوه دربار ته واستول چې د سلطان غیاث الدین غوري حضور ته د تکش له تېري ګیله وکړي خو سلطان تکش د ۵۹۶ هـ کال د روژې پر ۹ مړ شو.

۷ - علاءالدین محمد د تکش زوی د پلار تر مړینې وروسته خوارزمشاهۍ ته ورسېد او نشاپور یې خپل ورور علیشاه ته (چې پر ۶۰۹هـ وژل شوی) ورکړ د غور او غزنه دربارو ته یې سفیران واستول او روغه یې وغوښته، د غور تر پاچهانو وروسته یې خراسان ونیو، ملك عزالدین خرمیل غوري له ده سره یو ځای شو، تر یوولسو میاشتو کلابندۍ وروسته یې هرات ونیو او بلخ یې هم لاسته راوست، د ده د هېواد سرحدونه تر بلاساغون، کاشغر او خطا پورې ورسېدل "تاینکو طراز" او "ګورخان خانان" په ترکستان کښې د ده اطاعت ته غاړه کښېښوه، د عراق او اذربایجان هېوادونه یې ونیول، سلطان جلال الدین علي سام غوري یې وواژه، پر ۶۱۲هـ یې غزني ته لښکر کښې وکړه؛ تاج الدین یلدوز یې د هند خوا ته وشاړه او د هېواد وېش یې د سند تر سینده ورسېد او خپل زوی جلال الدین منکبرني یې د افغانستان پر حکمرانۍ وګماره، خو پر (۶۱۷ هـ) کال د چګیز لښکر له ختیځ خوا د ده پر هېواد یرغل وکړ، دی د ماتې په حال کښې د آبسکون جزیرې ته



وتښتېد او پر همهغه کال مړ شو.

د علاءالدین له ورونو څخه یو "یونس خان د تکش زوی" د عراق حکمران، بل "ملك خان" د نشاپور او خراسان حکمدار او درېیم علي شاه د عراق او اصفهان حکمران و، څه موده هم د علاءالدین محمد له زامنو څخه ارزلوشاه پر ۶۱۷هـ کال د پلار تر تېښتې وروسته پر تخت کښېناست، خو د چنګیز لښکریانو خوارزم ونیو.

همدارنګه رکن الدین غوریشانستي د علاءالدین محمد زوی څه موده د عراق حکمراني وکړه، خو پر ۶۱۷ هـ کال د چنګیز لښکر دی همهلته وواژه. همداراز "آق سلطان د علاءالدین محمد" بل زوی هم څه موده په کرمان کښې پاچا و، چې د خطایي براق حاجب په لاس ووژل شو.

۸- د سلطان محمد خوارزمشاه مشر زوی او وروستنی زړور پاچا بلال الدین منکبرنی دی چې پر ۶۱۷ هـ کال د خپل تښتېدلي پلار پر ځای کښېناست او د چنګیز له لښکریانو سره یې په مېړانه جګړې وکړې.

دی د پلار پر ژوند د خراسان، غور او غزني نایب السلطنه و چې وزیر یې شهاب الدین الپ سرخسی نومېده، له خپلې خوا یې غزني ملك کربز، فیروز کوه یې مبارزالدین سبزاواري، کرمان یې ملك الامراء او پرشور (پېښور) او بوبکر پور یې ملك اختیارالدین محمد علی خرپوست ته وسپارل.

هغه وخت چې پلار یې پر ۶۱۷هـ کال د چنګیز له یرغله وتښتېد، ده په نشاپور، د خراسان او کرمان په بیابانو او د نیمروز، بست او داور په ښارو کښې جګړې کولې تر هغې چې په غزني کښې ملك خان امین حاجب "د هرات مات شوی حکمران" هم له ده سره یو ځای شو؛ چنګیز خپل زوم قوتو قونوین په دوی پسې وګماره، د پروان په شاوخوا کښې یې درې واره جګړه وکړه او قوتو یې مات کړ، څو چې چنګیز د خراسان له تالقانه د ده

جګړې ته راغی او جلال الدین د پرشور (پېښور) خوا ته پر شا شو. چنګیز د سند د سیند تر غاړو پسې ولاړ. په هغه جګړه کښې چې د سند د اوبو پر غاړه یې وکړه مات شو او خان یې اوبو ته واچاوه دا و چې د ملتان او کرمان له لارې پارس ته ولاړ د (۶۲۱ هـ) د ۶۲۸ هـ کال د شوال پر ۱۵ د کردانو له لاسه ووژل شو، د ده له مړینې سره د دغه کهاله لړۍ پای ته ورسېده. د دې پېښو تفصیل به د چنګیز خان د حالاتو په شرح کښې راشي (د دغه مخ مخامخ ۵۹ نومره نسب لیك وګورئ).

اخځلیکونه: طبقات ناصري، ابن اثیر، معجم الانساب، د پاول هورن د ایران مختصر تاریخ، تاریخ ګزیده، جهان ګشای جوینی، سیره جلال الدین منکبرنی - نفثة المصدور، د بار تولد ترکستان، تاریخ ایران در عهد مغل دعباس اقبال.

# ځلورمه برخه

## د خوارزمشاه وروستۍ ماتې

## او

## د چنګیز منځته راتلك

(۶۱۶ - ۶۴۰هـ)

د چنګیز د منځته راتګ پر مهال د غزنوي او غوري کورنیو واکمني له منځه تللې وه. د هېواد د شمالي سیمو واك د خوارزمشاهي دربار په لاس کښې و. په سیستان کښې د نیمروز سمیه ییزو ملکانو کمزوری حکومت چلاوه، د افغانستان ختیزې برخې هم د هغو امیرانو په لاس کښې وې چې د غور سلاطینو ټاکلي وو، په هرات کښې هم کرت حکمرانانو حکومت کاوه (ال کورت).

پر داسې مهال چې د هېواد ځواکونه پاشلي شوي وو، پر ودان افغانستان او د هغه پر پرمختللیو ښارو باندې د آمو له ها خوا د چنګیز تاړاکګر یرغلونه پیل شول او د (۶۰۰هـ - ۱۲۰۳م) په شاوخوا کښې د چنګیز خان (تموچن د یسو کای بهادر زوی چې د قیات په ټبر کښې پر ۵۴۹

۱۱۵۴م زوکړی و) تر واکمنۍ لاندې د منګولیا په قراقروم کښې یوه لویه امپراتوري جوړه شوه چې بریدونه یې ختیځ لورته د چین له سینده تر پامیره رسېده چې د سلو مېلیونو په شاوخوا کښې منګولیایي وړي او وحشي ټبر د چنګیز تر کلکې اداري او خونړي تېغ لاندې د ده فرمان ته لاس پر نامه وو.

دا مهال سلطان علاوالدین محمد خوارزمشاه له اورګنجه پر ماوراءالنهر او د افغانستان او ایران پر یوې سیمې واکمني درلوده. ده د سمرقند د ترکانو او قرا خطائیانو دولت چې د خوارزمي دولت او چنګیزي ځواکونه تر منځ پروت و، ونړاوه او هم یې د افغانستان غوریان چې ملاتړي یې وو او د افغانستان له غزني او نورو سیمو یې د وحشي غزانو په پوپنا کولو کښې لوړتیا ښودلې وه، له پښو واچول همدا راز خوارزمشاه د بغداد له خلیفه ناصرالدین سره هم دښمني لرله چې د هغه نوم یې هم له خطبې او سکې غورځولی و، نوموړي خلیفه د یوه لیك په واسط چنګیز دې ته راوپاراوه چې پر خوارزمشاه یرغل وکړي (۵۷۵-۶۲۲هـ) په خپله د سلطان درباریانو هم له چنګیز سره لیکنۍ اړیکه درلوده، د هېواد په چارو کښې د سلطان د مور ترکان خاتون له لاسه هم ګډوډي او ورانۍ راغلې و. تر دې چې د دې ستمګرې ملکې له لاسه د هېواد ټول مشران ډېر تنګ وو، په دې توګه له دننه او د باندې د خوارزمشاهي دولت د نړېدو سببونه راغونډ شوي وو.

د چنګیز امپراتوري له خوارزمشاهي دولت سره پر (۶۱۶هـ ۱۲۱۹م) کال ونښته، چې سلطان خوارزمشاه تاتار تجارتي کاروان تالا او د چنګیز سفیر یې وواژه. چنګیز له ډېره قهره له دوو سوو زرو تنو لښکر سره د توپاني سېلاب په څېر د خوارزمشاه پر هېواد راوخوت او تر شا یې یو ملیون نور ملا تړ هم درلود. د ده لښکر تر سیحون راپورېووت او د سلطان محمد لښکر یې مات کړ په یوه داسې زور او وحشت چې په تاریخ کښې یې ساری نه شته



پر اسلامي ودانو ښارو لکه بخارا، سمرقند، بناکت، خجند، جند او د ماوراءالنهر پر نورو ښارو یې یرغل وکړ او دا ښارونه یې په خورا دهشت وران او وګړي یې ووژل (۶۱۷-۱۲۲۰ م).

خوارزمشاه چې د چنګیز له زورورو یرغلو څخه تر جیحون راپورېوتی او په بلخ کښې ناست و، د ماوراءالنهر د ورانۍ د خبر تر اورېدلو وروسته مخامخ طوس ته وتښتېد او دا ښارونه یې دغو لاندینیو امیرانو ته وسپارل چې د چنګیز مخه ونیسي: ترمذ د سیستان لښکر مشر امیر زنګي ابي حفص ته، د تخارستان ولخ امیر سرهنګ سام ته، د بامیان کلا امیر عمر باوردي ته، پېښور او غزني ملك اختیارالدین خرپوست ته، د غور سنګه ملك حسام الدین سر زراد ته د غور نوري کلاوې ملك قطب الدین حسن، د هرات کالیون اختیار الملك دولت یار، هرات شمس الدین جوزجاني، د غرجستان فیوار پهلوان اصیل الدین نشاپوري، د تالقان نصرت کوه د ملك شمس الدین اتسز باوریانو ته، د (جوزاجان) ګرزویوان د الغ خان خدمتګارانو ته، د غرجستان کلاوې عید پهلوان شروان ته، فیروز کوه ښار مبارزالدین سبز واري او د تولك کلا یې امیر حبشي نیزه ورته و سپارل.

خو د چنګیز لښکرې د جبه سبتای او تغاجار په مشرۍ د (۶۱۷هـ-۱۲۲۰م) کال پر لومړۍ خور (ربیع الاول) له جیحونه راپورېوتې او د بلخ تر نیولو وروسته یې په خوارزمشاه پسې د هرات لاره ونیوه د هرات حکمران امین ملك یې کلا بند او تر پوشنجه پورې یې خلك ټول ووژل په ډېره چټکۍ یې ځانونه طوس ته ورسول، خو محمد خوارزم شاه په ډېره ناهیلۍ د آبسکون جزیرې ته وتښتېد، د (۶۱۷هـ) کال د کوچني اختر (شوال) پر میاشت په داسې حال کښې چې کفن یې نه لاره مړ شو او چنګیز خان یې هډوکي وسیزل تر هغه وروسته د چنګیز لښکر د خوارزمشاهانو مرکز (جرجانیه

اورګنج) چې د آسیاءخورا ودان ښار او د پوهې او ادب زانګو وه، وران او خلك یې له یوه سره ووژل (د ٦۱۸هـ - ۱۲۲۱م کال د صفرې میاشت). د محمد خوارزمشاه مور د هغه کهاله له نورو غړیو سره د چنګیز لښکر لاس ته ورغله، زوی یې جلال الدین د نشاپور او زوزن له لارې بست ته راغی او خان یې هرات ته ورساوه له هغې خوا په خپله چنګیز د آمو غاړې "ترمذ" ته راغی او تر یوولس ورځنی جګړې وروسته یې د هغه ښار او د بلخ خلك ټول ووژل. زوی یې (تولي) د خراسان ښارونه له مرو او نسا څخه نیولې تر هرات، فیروزکوه، استیه او تولك پورې ونیول او وران یې کړل، یوازې د مرو په لوی ښار کښې یې تر دوو ملیونو زیات خلك ووژل (٦۱۸هـ - ۱۲۲۱م) د هرات خلکو چې د شمس الدین جوزجاني په مشرۍ له تولي سره جګړه کوله تر اوو ورځو کلابندۍ وروسته تسلیم او په سوونو زره تنه یې ووژل شول او یوازې سل زره نجونې یې بندیانې شوې.

تر هغه وروسته چنګیزیانو جوزجان ولایت، اندخود، میمنه او فاریاب تر تالقانه پورې ونیول، د تالقان نصرت کوه کلا لس میاشتې کلابنده وه او ټولو اوسېدونکو یې تر وروستۍ سلګۍ پورې مقاومت وکړ، خو ټول ووژل شول تر هغه وروسته یې بیا پر بامیان یرغل وکړ، خو هلته چې د چغتای زوی موتوجن ووژل شو چنګیز له ډېره قهره پر انسانانو سربېره د بامیان ځاروي هم ووژل او هغه ښار یې ماوبالیغ (بدمرغه ودانی) وباله او داسې یې له بیخه ونړاوه چې استوګن په کښې پاتې نه شول. تر هغه وروسته یې د تخارستان ښارونه ونیول (٦۱۸هـ -۱۲۲۱م) پر دغه مهال جلال الدین منکبرني خوارزمشاه له هراته غزني ته راغی، د افغانستان وطني مشران لکه امین ملك له خپل دېرش زریز لښکر سره، سیف الدین اغراق اعظم ملك او مظفر ملك افغاني مشران هم له ده سره یو ځای شول او په پروان (د کابل



شمال خوا ته په اوسني جبل السراج کښې) یې د چنګیز له ۴۵ زرو لښکریانو سره چې د قوتوقو په مشرۍ جنګېدل جګړه وکړه، تردوو ورځو جګړو وروسته یې چنګیزي لښکرو ته سخته ماته ورکړه، چنګیزیانو د تخارستان د ولخ کلا پرېښوه او وتښتېدل.

خو د جلال الدین د بریالي لښکر مشران یو تر بله دښمن او پښتنو ته ستانه شول، هلته یې تر دریو میاشتو پورې یو بل واژه چنګیزخان بیا د پروان د ماتې د غچ اخیستو له پاره د تالقان د نصرت کوه تر نیولو وروسته د بامیان له لارې پر غزني یرغل وکړ، جلال الدین له غزني څخه ووت او د ګردیز خوا ته پر شا شو. چنګیز غزني ته راغی، وروسته تر هغه چې هلته یې خپل حاکم کښېناوه، د سند خوا ته پر مخ ولاړ او (د اټك جنوبي خوا ته) د نیلاب پر ګودر یې جلال الدین چې تر سینده پورېووت ونیو، اته کلن زوی یې ور وواژه، جلال الدین خپله مور او ماندینه او د حرم نور غړي په سیند کښې ډوب او په خپله له اوو سوو تنو سره د چنګیز د لښکر په مقابل کښې جنګېده، خو په پای کښې پر یوه آس سپور د سند له دریابه ژوندی پورېووت. چنګیز د سلطان پاتې خپلوان او ملګري ووژل او درې میاشتې یې په پښتنو او د پنجاب پر وېش هم خلك ووژل، بیا یې د سند پر ښۍ غاړه تر چتراله یرغل وکړ، تر هغه وروسته یې خپل دوه زامن اوګدای او چغتای په هغو سیمو کښې پرېښوول، خپله د کابل او بامیان له لارې د جیحون غاړې ته ستون شو (٦۱۸) پر شوال) او درې کاله وروسته پر (٦۲۱) کال تربي نوین د چنګیز د لښکر سردار، ناصرالدین قباچه یې په ملتان کښې ځلوېښت ورځې محاصره او بېرته ناکامه راوګرځېد.

د جلال الدین منځته راتګ په ټول خراسان کښې د چنګیز پر خلاف خلك زړور کړل، په مرو، هرات او نشاپور کښې د ده د کوټوالانو پر وړاندې

راپورته شول، خو د چنګیز لښکر "مرو" په تش داګ بدل کړ هراتیان یې چې د ملك مبارزالدین سبزواري په مشرۍ جنګېدل ټول د (۶۱۹هـ) کال پر وروستۍ خور (جمادیالاخری) ووژل او ښار یې د چنګیز د لښکر د افسر "ایلچیګدای نویان" په امر وران کړ، پر (۶۲۰هـ) یې د غرجستاني امیرمحمد چې د غور د ملکانو خوریه و او د اشیار په کلا کښې یې مقاومت کاوه ووژه. په غزني کښې هم "اوګدای" له کسبګرو پرته نور ټول خلك بیابان ته و کوچول او هلته یې تر تېغ تېر کړل، آن دا چې فیروزکوه یې پر (۶۱۹هـ) کال داسې وران کړ چې اوس یې ځای پېژندنه هم ناشونې ده، همدا شان چغتای د سند مکران او کرمان (په فتحینو د کورم په ناوه کښې) ولایتونه چور او رنګ کړل.

چنګیز چې (د سند د سیند پر غاړه د اوبو او هوا د خرابۍ له امله ناروغ شو، ځکه نو دی او زامن یې پر (۶۱۹ هـ - ۱۲۲۲م) کال ماوراءالنهر ته ستانه شول او پر (۶۲۱هـ -۱۲۲۴م) کال د خپلي کورنۍ اصلي چونۍ (اردوګاه) ته ورسېد، چنګېز دا مدهشه بلا د (۶۲۴هـ -۱۲۲۶م) کال په روژه کښې د (۷۲) کلنۍ پر عمر د تنګت په دښته کښې مړشو او ګڼ شمېر خلك یې له وحشت او تېري څخه بچ شول. "د چنګیز د فتوحاتو څېړل او د نړۍ په نورو سیمو کښې د ده وراني د افغانستان په تاریخ پورې اړه نه لري.) خو جلال الدین خوارزمشاه هغه ننګیالی مېړه چې پر ډېره بې وسۍ سربېره یې خپله متره ونه بایلله، څه مهال یې د سیند کېنې خوا ته په ځنګلو کښې تېر کړ او ژر یې یوه ډله، له ځان سره یو ځای او د سند له واکمن "ناصرالدین قباچه" سره یې ډغرې ووهلې، د ډهلي له لوی پاچا "سلطان شمس الدین ایلتمش" (۶۰۷ هـ - ۶۳۳م) څخه یې مرسته وغوښته، خو هغه په دې پلمه چې د ډهلي هوا ښه نه ده، و یې نه منله. جلال الدین په لاهور کښې د هند



د یوه راجا لور وکړه او د هغه په ملاتړ یې "ناصرالدین قباچه" مات کړ او ډېره ولجه یې لاس ته ورغله، د "تهنه" او "دیبل" تر ښاره پر مخ لاړ. سلطان شمس الدین ایلتمش د جلال الدین له ورځ پر ورځ مخ پر ډېرېدو اتلوالې څخه وډارېد او دېرش زریز لښکر یې د هغه د مخنیوي له پاره واستاوه.

که څه هم چې د جلال الدین د لښکر یوه مشر د ډهلي لښکر مات کړ، خو جلال الدین له څلورو زرو ملګریو سره پر (۶۲۱هـ -۱۲۲۶م) کال د مکران له لارې د ایران کرمان ته ولاړ؛ تر تفیلس، خلاط، ګرجستان او ارمستان پورې ځایونه یې ونیول، پر (۶۲۸هـ) کال په میافارقین کښې د کردانو له لاسه ووژل شو او د ده له مړینې سره د خوارزمشاهي کهاله وروستۍ ډیوه مړه شوه (د جلال الدین منکبرنی د فتوحاتو او احوال نوره څېړنه د افغانستان په تاریخ اړه نه لري).

د چنګیز لښکریانو په جلال الدین پسې د ایران تر پایه وځغستل، په خراسان کښې د بقیة السیف ښارو او کرېدلیو خلکو د ساتنې له پاره لږو عسکروته اړه وه پر غزني، بامیان او غور کښې د چنګیز له خوا د (۶۲۲هـ له شاو خوا څخه بیا تر ۶۳۳هـ-۱۲۳۶م) پورې سیف الدین حسن قرلغ حکمران و، همدغه سړی پر (۶۲۲هـ)کال د بغداد د خلیفه الظاهر په نامه سکه وهلې ده، پر (۶۲۶هـ - ۱۲۳۱م) کال چې اوګتای قاآن پر تخت کښېناست، د خراسان خلك د قراچه ویغان سنقور په مشرۍ د دوی کوټوالانو او حاکمانو ته راپورته شول، اوګتای په بادغیس کښې له اوسېدونکیو لښکریانو څخه یوه برخه د طایر بهادر په مشرۍ ور واستوله او قراچه یې تر دوو کالو پورې د سیستان د ارګ په کلا کښې بند وساته، داسې خوځښتونه په ټول افغانستان کښې راوټوکېدل، ځکه نو تاتاریانو دویم ځل د غور، هرات، غرجستان، سیستان، کالیون فوار، تولك، سیفرود، خیسار

او غزني په ښارو او جنګي کلاو کښې د هغو خلکو په وژلو لاس پورې کړ چې د دوی له تېغه ژوندي پاتې شوي وو او هم يې بيا هغه ودانۍ چې د دوی له ورانۍ څخه خوندي پاته وې وراني کړې، تر هغه وروسته جنتمور د خراسان په حکمدارۍ وټاکل شو (۶۳۵هـ ۱۲۳۲م) ده بيا ملك بهاءالدين د خراسان امير وټاکه، تر هغه وروسته د (۶۳۵هـ-۱۲۳۷م) په شاوخوا کښې نو سال او د (۶۳۸هـ - ۱۲۴۰ م) په شاوخوا کښې ګرګوز و، له (۶۴۱هـ تر ۶۵۴هـ۱۲۴۲-۱۲۵۶م) پورې امير ارغون د چنګيزيانو له درباره د خراسان حکمرانان وو او د کرت ملکانو د دوی تر اطاعت لاندې پر هرات، فيروزکوه او غرجستان (د افغانستان پر لوېديزو مهمو برخو) باندې حکومت کاوه او دا بلا وهلي ښارونه يې د تاتار له بلا څخه وساتل. لکه د (۶۴۳هـ-۱۲۴۵م) په شاوخوا کښې چې هولا کو (۶۳۹هـ -۶۴۹هـ، ۱۲۵۱م) د چنګيز لمسی خراسان ته راغی امير ارغون د هرات د پاچا ملك شمس الدين کرت په ملګرتيا د هغه د اطاعت منلو په توګه ورغلل.

په ماوراءالنّهر کښې استو ګنو چغتايانو د افغانستان ولايتونه: تخارستان، بلخ، ميمنه، جوز جان، غرجستان، غور، هرات، بادغيس، سيستان، زابل تر غزني او کابل پورې مستقيماً د تېغ په زور او يا بالواسطه اداره کول، دوی دېرش کاله هغه لوی ښارونه چې په آسيا کښې د مدنيت، ثقافت او اسلامي علومو مهم مرکزونه وو، وران کړل. خلك يې په بېرحمۍ يو مخيز ووژل؛ په زرګونو ستر کتابتونونه يې وسېزل، څکه نو د ثقافت، مدنيت، صنايعو، پوهنو، تجارت او ادب بازار سوړ شو، خراسان د سند تر غاړو پورې يوه ويروونکې کنډواله شوه، ټول تاريخ ليکونکي په ګډه دا مني چې د چنګيز ناتار د نړۍ له خورا زړه بوګنوونکيو پېښو څخه ګڼل کېږي. د ابن اثير په وينا ټولو خلکو ته يې زيان ورسېد، د چنګيزيانو اردو چې هر



ځای ته رسېدلی نو د لښکر مشران يې د خلکو باداران وو، څکه نو د افغانستان د خلکو په مدنيت کښې چې تر هغه وخته يې د لرغونې آريايي او اسلامي عربي مدنيتو يوه ګډه ښه درلوده او ساماني، غزنوي او غوري لويو پاچهانو پاللې و يو بل نوی مغولي عنصر هم ور ګډ شو، مغولي آدابو او ژبې په دري ژبه کښې چې رسمي او درباري ژبه وه اغېزه وکړه، د ژوندانه خويونه. اخلاق او کالي هم د دوی په پېښو واړول شول.

(د هغو سيمه ييزو ملکانو يادونه به په راتلونکي مبحث کښې وشي چې د چنګيزيانو په دربار کښې په آزاده توګه او يا د اطاعت له لارې اوسېدل)

سره له دې چې په خراسان کښې د چنګيزيانو ګډوډيو او وينو تويولو، پوهان، مدرسې او کتابتونونه له منځه يوړل، خو بيا هم په دغه دوره کښې داسې شاعران او عالمان وو چې اسلامي فرهنګ يې له خراساني ټولنيزو ځانګړتياو سره ساته، ځينې هم د وحشت او سفاکۍ له دغه ډګره د هند او روم ښارو ته وتښتېدل.

په خراسان کښې د مغولي دورې پوهان او شاعران دادي: حضرت مولوي بلخي (د مثنوي خاوند)، شيخ نجم الدين دايه (د مر صادالعباد څښتن)، خواجه نصيرالدين طوسي (نامتو حکيم)، معين الدين جويني (د نګارستان خاوند)، شيخ عطار نيشاپوري (نامتو صوفي او د تذکرة الاوليا څښتن)، پور بهاء جامي (شاعر)، امامي هروي (شاعر)، امير حسيني غوري (د نزهة الارواح خاوند)، ابن يمين فريومدي جويني (شاعر)، سليمان ماکو (د پښتو تذکره اوليا- ۶۱۶ هـ په شاوخوا کښې).

د چنګيزيانو په وخت کښې اداري او سياسي تشکيلات او اصطلاحات له هغه شکله چې د خلفاوو، غزنويانو او غوريانو په وخت کښې

وو، په بل ډول واړول شول په دې مانا چې په ټولو نیول شویو هېوادو کښې د چنګیز لښکري سپه سالارانو د یاسا (د چنګیزی احکامو او قوانینو) په اساس په ډېر شدت حکم کاوه، په یاسا کښې د لښکرکښیو، د ښارو د ورانولو، د ملك د مصالحو د شوری د ترتیب، د جزاګانو د ډولو او د تاتاریانو د ژوندانه د دودونو قاعدې لیکل شوې وې، چې هغه ته یې لکه آسماني کتاب په درنه سترګه کتل او توره (د قومي آدابو او نیکه ګانو دساتیرو مجموعه) یې هم ورته ویل. همداراز د فرانسوي ختیځ پوه کاترمر په وینا (د جامع التواریخ رشیدي په سریزه کښې) چنګیزي پاچهانو هر یوه د حاجب په عنوان اسلامي سلا کاران هم لرل، چې د هغو په واسطه او د قاضي القضات په حکم یې د مسلمانانو تر منځ اسلامي احکام او آداب ساتل، د دوی په منځ کښې د "بخشی وتوین" په نامه کشیشان هم وو، چې د کوډو او سحر مخنیوي یې کاوه، دوی او یغوری لیك دود کاراوه. د مغولي دورې کارمنو ته دا رتبې وې: قورچي (وسله وال)، چربي (د وره ساتندوی، دربان)، اخته چي (د اسو ساتونکي) داروغه (د خاصه قراول امر)، کشیکچی (ګارډ). بهادر (مبارز). د دربار لویان دا وو: نوین یا نویان (شهزاده) او الغ نویان (لوی شهزاده) . ترخان (عسکر افسر) په خپله پاچا ته یې خان، قاآن او خاقان ویل، لښکر یې په لس زریز (تومان) ویشلی شوی و، چې هر زرو تنو ته یې "هزاره" او سلو تنو ته یې "صده" ویل، د جګړې په ډګر کښې په جرنغار (میسره)، برنغار (میمنه)، قول (قلب چې د خان دریځ و)، چنداول (ساقه)، هراول (مقدمه) او قراول (کشاف) باندې وېشل کېده.

عسکر یې بنه، ارزاق او ښځې یې "اغروق" بللې. پر لویو لارو یې د مسافرانو له پاره سرایونه (یام) ودان کړي وو، چې په هر یام کښې دولتي چاپار آسان د "الاغ" په نامه موجوده وو او د هغو په واسطه یې شاهي



مخابرات او مواصلات اجرا کول. قضایي محکمې یې "یرغو" او قاضي یې "یرغوچي" او د محکمې د حکم سند یې "مو چلکا" بلل، حشر (اشر) یعنې عسکري او اجباري کار او خدمت یې هم په خلکو کاوه. د پاچا مهر ساتونکي ته یې "تمغاچي" او مهر ته یې "تمغا" ویل، هر یرلیغ (فرمان) چې دا مهر به وربانديې و، "واجب‌الاطاعة" ګڼل کېده، دا فرمانونه د ایلچي په لاس استول کېدل، زیات وختونه به د سردارانو شوری چې "قوریلتای" نومېده جوړېده، د لښکر چونۍ "یورت یا اردو" به په ییلاق (صیفیه) او قشلاق (شتائیه) کښې وه. افسرانو ته یې "یورتیچي" ویل. په دغه عصر کښې د چین د نقاشۍ فن په منځنۍ آسیا کښې ښه وده وکړه، دا صنعت ډېر پر مخ ولاړ، همدارنګه کاشي کاري، معماري، وریښمینې نساجي، زرینو جامو، مرصع، زربفت غالیو او الیچي اوبدلو هم پرمختګ وکړ، چین مغول او هند تجارتي اړیکي د خراسان له لارې له ایران، عراق او روم سره زیات شول، مشهوره وریښمن لار چې د وریښمنو د تجارت په مناسبت په دغه نامه یاده شوې ده، له چین څخه خراسان ته او له هغه ځایه به لوېدیزو هېوادو ته تله. د پېښور، کابل، بلخ یا کندهار، هرات او سیستان له لارې د هند او سند لارې د چنګیز د امپراتورۍ تجارتي روابط پراخ کړي وو، دا ځکه چې مغولي خانان هم د خراسان له لارې اروپا ته تلل، خو دا تجارتي پراختیا هغه وخت منځ ته راغله چې چنګیز مړشو، څه نه څه دده د اولاد او لمسیو زور زیاتۍ لږ شو. چنګیز پاچهانو پر دغو کالو پر افغانستان حکومت کړی دی:

* ۱ - چنګیز (په افغانستان کښې) (۶۱۶ - ۶۱۸هـ)
* ۲ - اوګدای د چنګیز زوی (۶۱۸ هـ)
* ۳ - چغتای د چنګیز زوی (۶۱۸ - ۶۳۹ هـ)
* ۴ - تولی د چنګیز زوی (د ۶۲۰ هـ شاوخوا)

* ۵ - قراهولاگو د تولوی زوی او د چنگیز لمسی (۶۳۹ - ۶۴۹ هـ)

* ۶ - ارغون د اباقا زوی او د هولاگو لمسی (۶۴۳ هـ).

مآخذونه: طبقات ناصری - جامع التواریخ رشیدی - جهانکشای جوینی - تاریخ وصاف - ابن اثیر - دول اسلامیه - د پاول هورن تاریخ ایران، د عباس اقبال از چنگیز تاتیمور - حبیب السیر - تاریخ گزیده - د محمد نسوی سیرة جلال الدین- تاریخ سند - د براون تاریخ ادبیات ایران - د پښتو ادبیاتو تاریخ ۲ - روضة الصفا - د ابن عربي مختصرالدول.

## د چنګیزیانو په وخت کښې د کرت اولاده او افغاني امیران

(۶۰۰-۷۸۳هـ)

د سلطان غیاث الدین محمد سام غوري په وخت کښې (۵۵۸-۵۹۹هـ) دوه ورونه یو تاج الدین عثمان مرغنی او بل عزالدین عمر مرغنی د غور د سلطان د تره زامن د دربار مخور سړي وو په اسلامي دایرةالمعارف کښې د لانکورت دیمز په وینا، دوی د هغه امیرمحمد غرجستانی اولاد دی، چې پر (۶۲۰ هـ - ۱۲۲۳م) کال د اشیار په کلا کښې د مغولو په لاس وژل شوي وو (خو دا وینا د څېړلو وړ ده)، عزالدین د سلطان وزیر و، د هرات سیمه ده ته سپارلې شوې وه، ده غرجستان حسام الدین علي عمر مرغنی او خیسار تاج الدین عثمان ته سپارلی و، چې وروستني د سرجاندار منصب درلود، د عزالدین لور عایشه خاتون د سیستان د ملك ناصرالدین عثمان حرب ماندینه وه (د ۶۱۲هـ - ۱۲۱۵م پر شاوخوا). دا دوه ورونه د ملك ابوبکر کرت کړوسیان وو چې د غور د ملکانو په وخت کښې یې شهرت درلود، ملك رکن الدین محمد د تاج الدین عثمان زوی و او د خیسارکوټوال د سلطان غیاث الدین محمود (۵۹۹-۶۰۷هـ) لور کړې وه، نامتو مورخ مهناج سراج د ده له درباریانو څخه و، دی د چنګیز له ایلچیانو سره په نرمۍ چلېده او

چې د چنګيز له خوا د خيسار غور او د هغې سيمې نور اړوند ښارونه ده ته وسپارل شول، نو خپله خور يې ملك شمس الدين محمد مهين ته ورکړه او هغه يې خپل وليعهد او د چنګيز خان مصاحب وټاکه، له دې امله د چنګيزيانو په دربار کښې مقرب او د اعتبار خاوند شو، خو چې پر (٦۴٣هـ ۱۲۴٥م) کال رکن الدين مړ شو، شمس الدين محمد مهين يې پر ځای کښېناست. ده پر (٦۴۴هـ) کال له سالين نوين سره چې د چنګيزيانو سپه سالارو، پر ملتان ور ودانګل، د لاهور او ملتان ملکان يې د خان تابع او د لاهور په حکمرانۍ وګمارل شو، خو چنګيزيان د مسلمانانو د پلوۍ له امله پرې په قهر شول، ده تاتاري حکمران طاير بهادر ته پناه يو وړه او (د کندهار په شاو خواکښې) د تګين اباد حکمران شو، دا چې د افغانستان (دا نوم په تاريخ کښې لومړی وار له همدغه وخته ياد شوی - د سيفي تاريخ هرات ۱٦٣مخ ) د خلکو په پلوۍ تورن و، ځکه نو له هغه ځايه د منګوخان حضور ته ورغی (٦۴٥هـ-۱۲۴٧م ) منګوخان د ده د تېر کهاله د قدردانۍ له مخې د ټول هرات، جام، باخزر، کوسويه، فوشنج، تولك، غور، فيرزو کوه، غرجستان، مرغاب، فارياب، مرجق، د آمو تر سينده، فراه، سجستان، تګين اباد، کابل، تيراه، بست او افغانستان د سند تر سينده ده ته پرېښوول او د خراسان (اوسني افغانستان) د سند تر غاړې خپلواك حکمران وګڼل شو، د (٦۴٦هـ - ۱۲۴۸م) په شاو خوا کښې يې د خپل دربار سرداران مامور کړل چې د غور او هرات حکمران شرف الدين بيتکچی چې پر خلکو يې ظلم کاوه ونيو او د هغه له تابعينو سره يې وواژه. تر هغه وروسته پر (٦۴٧ هـ) کال ملك فخرالدين د تالقان، ملك شمس الدين د اسفزار، محمد عوض د خواف، ملك شمس الدين (په ميمنه کښې) د ګرزيوان، ملك عزالدين، حسام الدين او شمس الدين د تولك، ملك علي مسعود ازابی او ملك تاج الدين د فراه



حکمرانان او هم له سيستانه ملك علي مومن او نصرالدين نيهی د شمس الدين مهين حضور ته راغلل او د اطاعت غاړه يې کښېښووه، خو د غرجستان ملك سيف الدين داسې ونه کړل، ځکه نو ملك مهين د خپل لښکر سرداران غرجستان ته واستول، سيف الدين يې ونيو او د هرات په ښار کښې ووژل شو (٦۴٧هـ) يو کال وروسته شمس الدين مهين له هراته فراه ته راغی، د سيستان لښکر يې هم له ځانه سره مل کړ، د خيسار کلا ته ولاړ، له هغه ځايه د غور له لښکر سره تګين آباد ته لاړ، غوښتل يې چې افغانستان ونيسي. (په هغه وخت کښې د غزني او کندهار تر منځ بيا تر سنده پورې افغانستان بلل کېده) د دې سيمو لوی اميران دا وو:

۱ - فخر الدولة والدين ملك شاهنشاه لوی افغاني حکمران چې له خپل پايتخت مستنګ ځخه يې (چې په اوسني بلوچستان کښې و) ده (د هغه وخت) پرټول افغانستان حکومت کاوه او د مغولو ماليه يې منلې نه وه.

۲ - ملك ميرانشاه د شاهنشاه زوم.

٣ - ملك بهرامشاه د شاهنشاه زوی.

۴ - ملك تاج الدين هرموز (د کندهار شمال ته) په تيری کښې.

٥ - حسام الدين جاول په زاول کښې.

٦ - پهلوان جلم.

٧ - سندان افغان.

۸ - احمد توری.

۹ - مهتر کيورا.

۱۰ - مهتر سيورا.

۱۱ - رانا کنجر.

۱۲ - جمال الدين بهروز کهيرايي.

افغاني امير شهنشاه چې تر اوسه يې په مستنګ کښې خپلواك حکومت لاره ملك شمس الدين ته وړانديځ وکړ چې کالني ماليات دې وټاکي چې ور واېې ستوي او د ده وطن ته دې لښکر نه راولي، خو شمس الدين د مستنګ تر بريده پرمخ ولاړ او پر (۶۵۱ هـ - ۱۲۵۳م) کال ملك تاج الدين د ميرانشاه (د افغانستان له خاورې ځخه د ۵۰ فرسخه ځمکې حکمران) ورور او نور افغاني ملکان هم ده ته تسليم شول، شمس الدين پر (۶۵۲هـ) کال مستنګ کلابند کړ خو امير شهنشاه، بهرامشاه او ميرانشاه له پينځو زرو جګړنو سره د خاسك کلا ته پناه يو وړه، تر اوو جګړو او څلورو کلابنديو وروسته شهنشاه او بهرامشاه له نوي تنو خپلوانو سره ووژل شو، خو ميرانشاه په ډېره مېړانه د شمس الدين د لښکر پر زړه (قلب) حمله وکړه، ترې ووت او سيستان ته يې پناه يووړه، پر (۶۵۸ هـ - ۱۲۵۹م) کال بيا مستنګ ته راغی او د شمس الدين مهين له لښکريانو سره په يوه جګړه کښې ووژل شو.

د افغانانو بل مرکز د تيرې حصار و، چې اوس هم د کندهار شمال ته څلوېښت ميله ليرې په همدغه نامه يادېږي د دغه حصار امير المار افغان و، چې د طاير بهادر، قرانوين او سالی نوين لښکرې يې څو واره ماتې کړې وې او د چنګيزيانو اطاعت ته يې غاړه نه وه ايښې، په دغه وخت کښې چې شمس الدين مستنګ ونيو د تيرې پر حصار يې هم يرغل وکړ، المار يې تر سختې جګړې وروسته وواژه او حصار يې امير حسام الدين جاول (د زاول مرادف) ته وسپاره (د ۶۵۳هـ، ۱۲۵۵م صفره) همدارنګه شعيب نومي پښتون چې يو نوميالی افغان و، د (۶۵۳ هـ) کال د برات مياشتې پر لومړنيو ورځو له کشميره را ورګرځېد د تګين آباد په شاوخوا کښې يې د آل کرت پر حکمران يرغل وکړ، خو شمس الدين مهين له خيساره ژر راورسېد او دی يې د کهيرا په حصار کښې وواژه، تر هغه وروسته يې د شعيب د تره زوی سندان



افغان ته چې په ختيه سوراني و، پام شو، هغه يې (د اوسني بلوچستان) د دوکي په حصار کښې تر سختو جګړو وروسته د جګړې په ډګر کښې وواژه، په دې جګړو کښې خورا لوی جنګيالي لکه د تولك ملك عزالدين، د بغني ملك تاج الدين او ملك تاج الدين کرد د آل کرت د لښکر په مشرتابه جنګېدل (۶۵۴هـ - ۱۲۵۶م کال منځ) په دې جګړې پسې لښکري مشران د سليمان غره تر لمنو پورې په خپلو مخالفينو پسې لاړل چې په لاس به ورتلل وژل يې. د ساجي حصار يې چې د سرحد د نورو پښتنو اميرانو مرکز و، هم تر سختو جګړو وروسته ونيو. (۶۵۵هـ) او شمس الدين په تګين آباد کښې، پهلوان مبارز الدين محمد نهی حکمران وټاکه، په خپله هرات ته ولاړ، خو يو کال وروسته يې چې دسيستان ملکانو د خپلواکۍ غږ پورته کاوه د مسعود زوی ملك علي وواژه او د هغه وريرونه ملك نصر الدين او ملك علاء الدين يې مستنګ ته وشړل سيستان يې ټول ونيو بې وسلې يې کړ (۶۵۶هـ ۱۲۵۸م) او چې ټول سرکښان يې وټکول نو پر (۶۵۷هـ) کال يې د سند رود پر غاړه د بهکر حصار محاصره کړ او د لسو زرو دينارو او ډېرو ولجو تر اخيستو وروسته بېرته راوګرځېد. په دې توګه شمس الدين مهين ټول افغانستان د هرات تر مرکزيت لاندې راوست او تر غوريانو وروسته يې د هېواد يووالی بشپړ کړ. سره له دې چې دغه ويرليدلي هېواد د چنګيزيانو له لاسه ډېر مادي او مانيز تپونه ليدلي وو، خو بيا هم دغه ننګيالي پاچا پر هغو تپو د سياسي يووالي د ملهم پټی کښېښوه.

پر (۶۵۹ هـ - ۱۲۶۰ م) کال چې ملك تاج الدين کرد ياغي شو او د امير هرموزتيري او امير هوبو پښتنو سردارانو په ملاتړ د مستنګ کلا ته راغی، ور سره د کرت د لښکر افسرانو ملك اختيار الدين د تولك، محمد نهی او د بغني تاج الدين جګړې وکړې، شمس الدين تر (۶۶۵ هـ - ۱۲۶۶ م)

کال پورې ایران او نورو ځایو ته د چنګیزي پاچهانو په سفرو کښې اخته پاتې شو، پر (٦٦٦هـ) کال یې د افغانستان په خاوره کښې تر تیرا پورې جنګونه وکړل، هغه خلك یې د ځان تابع کړل او باج یې پرې ومانه. دا چې هرات په همدغو وختو کښې د چنګیز شهزادګانو د جګړې ډګر و، نو ځکه شمس الدین مهین ډېره وکړه او د خیسار په کلا کښې یې ځان ګوښه وساته، همدا و، چې د آباقا لښکر شهزاده براق مات او بیا د پخوانیو ولایتو فرمان د شمس الدین مهین په نامه صادر شو، دی یې هرات ته راوست (٦٧۴هـ - ۱۲۷۵م) خو ځنګه چې چنګیزي شهزاد ګانو ونه غوښتل چې پر خراسان باندې دې د هغه خپل یو غښتلی سړی حکومت وکړي، په تېره بیا چې شمس الدین مهین خراسان او افغانستان ته سیاسي وحدت هم ورکړی و، ځکه نو له ده څخه وبړېدل، اصفهان ته یې وغوښت او په تبریز کښې یې پر (٦٧٦هـ ۱۲۷۸م) کال زهر ورکړل او ویې واژه.

تر شمس الدین وروسته یې زوی ملك رکن الدین (د شمس الدین کهین په لقب) پر (٦٧٧هـ) کال په هرات کښې د پلار پر ځای کښېناست، د هرات او خراسان په ودانولو کښې یې زیار ویوست او د عدل او نیاو چارې یې پیل کړې تر (٦٧٨هـ) پورې یې د غور، خیسار او نورې تولې کلاوې ونیوې او پر (٦٨٠ هـ - ۱۲۸۱ م) کال یې د کندهار کلا هم ونیوه، خپل زوی ملك علاء الدین یې په هرات کښې خپل نایب پرېښوو او په خپله د غور د خیسار په کلا کښې کښېناست (٦٨٢ هـ - ۱۲۸۳م) د پلار غونډې یې له چنګیزي شهزادګانو سره د ملګرتیا اړیکي ټینګک کړل، تاتاري هندونوین یې چې د هرات په سیمو کښې یې خلك آزارول ونیو او هرات بیا د شهزاد ګانو د یرغلو او کورنیو جګړو له کبله وران شو، ملك شمس الدین کهین په همدغو حالاتو کښې پر (٧٠٥ هـ) کال مړ شو. خو یو کال د مخه پر (٦٨٣هـ



۱۲۸۴م) کال د ده مشر زوی ملك فخرالدین چې پلار بندي کړی و، له بندیخانې ووت او له خیساره هرات ته ولاړ، له هغه ځایه یې خواف فراه او د خراسان نور ښارونه ونیول (٦٨٥هـ - ۱۲۸٦م) پر (٦٩٧هـ - ۱۲۹٧م) کال په هرات کښې پر تخت کښېناست، غازان خان د ده حکومت له هراته د سند تر اوبو او امو پورې په رسمیت وپېژاند.

فخرالدین علم پالونکی، عمران دوسته او ادیب پاچا و، خطیب پوشنجي ربیعي "کرت نامه" کتاب د ده په نامه نظم کړی دی. ده پر (٧٠١هـ - ۱۳۰۱م) کال خوواره پر اسفزار یرغل وکړ، خو چې چنګیزي اولجایتو پاچا شو، دی یې له هراته مبارکی ته ورنغی، ځکه نو اولجایتو دانشمند بهادر له لسو زرو سپرو سره د ده د سر ټکولو له پاره هرات ته واستاوه، فخرالدین د غوریو زړور جمال الدین سام د هرات د کلا ساتلو ته وګماره او په خپله د امانکوه کلاته ولاړ، نوموړي سام دانشمند بهادر وواژه او د هغه لښکر یې مات کړ؛ او لجایتوله ډېره غضبه امیر یساول بوجای د دانشمند بهادر زوی له دېرشو زرو سپایانو سره په منډه ورواستول، په دغه وخت کښې فخرالدین مړ شو (٧٠٦ هـ - ۱۳۰٧م). د سردارانو اختلاف او کاختی سام غوری هم اړ کړ چې کلا تسلیم کړي په دې توګه په خپله دی او ملګري یې د یساول په حکم ووژل شول.

اولجایتو د هرات، اسفزار، فراه، غور او غرجستان حکومت د فخرالدین ورور ملك غیاث الدین محمد ته وسپاره (٧٠٧ هـ) دی چې د اولجایتو له حضوره هرات ته ورسېد؛ نو غور، خیسار او اسفزار یې هم ونیول، خو ځینو امیرانو اولجایتو د ده په اړه بد ګمان کړ، ځکه یې نو پر (٧١١ هـ - ۱۳۱۱م) کال خپل اردو ته وغوښت او تر (٧١۵ هـ - ۱۳۱۵م) پورې یې د بېرته تلو اجازه ورنه کړه، د ده تر شا دلدای اوبو جای د بلواله

وبرې پر هراتیانو زور زیاتی کاوه. له تاتاري شهزاده ګانو څخه یو عادل شهزاده چې داود خواجه نومېد غزني، بست، زابل او تګین آباد لاس ته راوړي وو، خو غیاث الدین محمد پر (۷۱۵هـ - ۱۳۱۵م) کال بیا د اولجایتو له درباره د افغانستان تر پایه او د آمو تر وېش پورې د هرات په حکمرانۍ وګمارل شو، دا مهال چنګیزي شهزادګان او د بدخشان ملك. غیاث الدین علیشاه د آمو پر غاړه سره ونښتل او له بدخشان څخه تر بلخ او مرغاب پورې د جګړې ډګر شو، په دې جګړې کښې د دانشمند بهادر زوی بوجای ووژل شو او پر (۷۱٦ هـ) کال د نکو دریان امیر آوجی بلا د غیاث الدین له لاسه ووژل شو، خپل نور مخالفین یې هم پر سر وټکول، او د خراسان او سیستان کلاوي یې ونیولې په اسفراز کښې یې ملك قطب الدین، په فراه کښې یې ملك ینا لتګین، د زره باخرز په حصار کښې یې ملك عبدالعزیز او په تولك کښې یې ملك فرخ زاد وترټل، او پر (۷۲۱ هـ - ۱۳۲۱م) کال یې خپل زوی شمس الدین محمد په هرات کښې پر خپل ځای کښېناوه او په خپله حج ته ولاړ، همدا غیاث الدین و، چې پر (۷۲۷ هـ - ۱۳۲٦م) کال یې امیر چوپان وواژه پر (۷۲۸هـ) د ابو سعید دربار ته ولاړ او پر (۷۲۹ هـ - ۱۳۲۸م) کال چې له حج څخه راغی په هرات کښې مړ شو.

د ملك غیاث الدین تر مړینې وروسته یې زامن ملك شمس الدین محمد (۷۲۹ - ۷۳۰ هـ)، ملك حافظ (۷۳۰ - ۷۳۲ هـ) او ملك معزالدین حسین (۷۳۲ - ۷۷۱ هـ) پاچهۍ ته ورسیدل، ملك معز الدین د آل کرت له نومیالیو او د علم او ادب له پالونکیو څخه و، چې مولانا سعدالدین تفتازانی خپل مطول د ده په نامه ولیکه او امیر مسعود (د خراسان سربدارانو (۷۳٦ - ۷۸۸هـ) د سلسلې د موسس) خواجه عبدالرزاق باشتینی ورور په زاوه کښې له ده سره جګړه وکړه او مات شو (د ۷۴۳ هـ - ۱۳۴۲م



کال د صفری پر ۱۳) حسین بری وموند او خپل دښمن ته یې کلك ګوزار ورکړ تر هغه وروسته یې په بادغیس کښې د اندخود او شبرغان امیران مات کړل، چې امیر قزغن د آمو د شاخوا څخه راغی هرات یې کلابند کړ، نو پر (۷۵۲ هـ - ۱۳۵۱م) کال یې له هغه سره روغه وکړه، بل کال چې ماورالنهر ته لاړ، د ده په غیاب کښې یې ورور امیر باقر د پاچهۍ دعوه وکړه، خو حسین ژر راوګرځېد او باقر یې بندي کړ معزالدین حسین تر ۳۹ کالو پاچهۍ وروسته پر (۷۷۱ - ۱۳٦۹م) کال مړ شو او زوی یې ملك غیاث الدین پر (۷۷۱هـ - ۷۸۳ هـ) د ده پر ځای کېناست، دی د سبزوار د سربدارانو په جګړه کښې بریالی شو، خپل زوی پیرمحمد ته یې د امیر تیمور خورزه وکړه، خو پر (۸۳۰هـ - ۱۳۸۱م) چې امیر تیمور هرات ونیو، نو غیاث الدین د هغه له زوی پیر محمد او ورور محمد سره مارواءالنهر ته تبعید او پر (۸۳۴ هـ - ۱۳۸۵ م) کال وواژه او د آل کرت لړۍ پای ته ورسېده.

په سیستان کښې د نیمروز ملکان د آل کرت هممهالي وو، چې د هغوی څرنګوالی مو د صفاریانو د څېړلو په پای کښې راوړی دی، بل کهول چې د آل کرت هممهالی و، د ترنك رود د غاړې د امیرانو کورنۍ هوتکیان، (د راتلونکي افغاني هوتکي دولت اسلاف) وو، چې د غلجیو د کلات د ترنك رود غاړې په غرو کښې یې حکمراني کوله، د چنګیزیانو د یرغلو مخه یې نیوله، چې یو له هغو څخه بابا هوتك د تولر زوی (چې پر ٦٦۱هـ زېږېدلی او پر ۷۴۰ هـ مړ دی) د پښتنو نومیالی عارف او شاعر او د چنګیزیانو په مقابل کښې ستر جنګیالی و، تر هغه وروسته یې زوی شیخ ملکیار د (۷۴۹ هـ - ۱۳۴۸م) په شاوخوا کښې نومیالی امیر او د پښتو ژبې شاعر و، چې د ترنك رود پر غاړه یې د دښمنانو په مقابل کښې جګړې کولې، همدغه کهاله پر دوولسمه هجري پېړۍ د کندهار هوتکي دولت جوړ

کړ (په دغه کتاب کښې دې د هوتکیانو شرح حال وکتل شي) شیخ متي خلیل (۶۲۳ - ۶۸۸ هـ) د پښتو صوفي شاعر و، محمد د علي بستي زوی د تاریخ سوري مؤلف، احمد د سعید لودي زوی د اعلام اللوذعی فی اخبار اللودی ـ مؤلف (۶۸۶ هـ) شیخ کته متي زی خلیل (د ۷۵۰ هـ په شاوخوا کښې) د لرغوني پښتانه مؤلف هم د افغانستان د دې دورې له علمي کسانو څخه و.

ال کرت علمدوسته، فاضل پالونکي او ودانپال پاچهان وو، د دوی په وخت کښې د چنګیزیانو له چور او چپاو سره سره علم، ادب او صنعت ګردسره وده وکړه، د دوی دربار د پوهانو او شاعرانو د راغونډېدو ځای و، د ربیعی پوشنجي کرت نامه، د تفتازانی مطول، د هرات تاریخ، دسیفی هروی مجموعهٔ غیاثی از سامنامه، او د امیر حسینی غوری نزهة الارواح او زاد المسافرین د آل کرت د دربار له مشهورو مؤلفاتو څخه وو.

د هرات د کرت اولاده:

۱ - ملك کرت د (۵۰۰ هـ) شاوخوا.

۲ - تاج الدین عثمان مرغنی د (۶۰۰ هـ) شاوخوا.

۳ - عز الدین عمر مرغنی د (۶۰۰ هـ) شاوخوا.

۴ - ابوبکر کرت د (۶۰۰ هـ) شاوخوا.

۵ - رکن الدین خیسار د (۶۴۳ هـ) شاوخوا.

۶ - ملك شمس الدین محمد مهین د ابی بکر کرت زوی (۶۴۳ - ۶۷۶هـ).

۷ - ملك رکن الدین ملقب په شمس الدین کهین د ابی بکر کرت زوی (۶۷۷ ـ ۷۰۵ هـ).

۸ - ملك فخر الدین د کهین زوی (۷۰۵ ـ ۷۰۶ هـ)



* ۹ - ملك غیاث الدین محمد د کهین زوی(۷۰۶ ـ ۷۲۹ هـ)

۱۰ - ملك شمس الدین د غیاث الدین محمد زوی( ۷۲۹ ـ ۷۳۰هـ)

۱۱ - ملك حافظ د غیاث الدین محمد زوی( ۷۳۰ ـ ۷۳۲ هـ).

* ۱۲ - ملك معزالدین د غیاث الدین محمد زوی(۷۳۲ ـ ۷۷۱ هـ).

۱۳ - باقر د غیاث الدین زوی( ۷۵۳ هـ).

* ۱۴ - ملك غیاث الدین پیر علی د معز الدین زوی (۷۷۱ - ۷۸۳هـ).

(۶۱ شجرې ته دې وکتل وشي).

اخځ:

تاریخ هرات د سیفی - د "تعدیل در نسب نامهٔ آل کرت" مقاله د آریانا په مجله کښې د حبیبي په قلم - تاریخ ایران در عصر مغول د عباس اقبال ـ پټه خزانه ـ لب التواریخ ـ تاریخ سیستان ـ تاریخ ادبیات ایران ۴ ټوك د براون ـ تاریخ ادبیات پښتو ۲ ټوك ـ تزك تیموری ـ حبیب السیر ـ روضة الصفا ـ طبقات ناصري.

# پنځمه برخه

## د هرات تیموریان

### ( له ۷۷۱ ـ تر ۹۲۰ شاوخوا پورې)

تیمور (په پخوانۍ املا تمر د اوسپنې په مانا) مشهور په کورګان یعنې زوم او "تیمور لنګ" د "تراغای برلاس" زوی، د چنګیز کهاله ته منسوب د قرا جارنوین له کوله د ماوراء النهر د کش په ښار کښې د ۷۳۶ هـ کال د برات پر ۲۷ د (۱۳۳٦م د اپریل پر ۱۱) زېږېدلی او د نرۍ له سترو خونړیو پاچهانو څخه و. تیمور پر (۷٦۱ هـ ـ ۱۳۵۹م) شهرت ته ورسېد چې د (۷۷۱هـ ـ ۱۳٦۹ م) کال پر برات یې د ماوراء النهر حکمران امیر حسن نسکور او "صاحبقران" نوم یې وګاټه، خو د ماوراء النهر د سیمو تر نیولو وروسته پر (۷۸۲ هـ - ۱۳۸۰ م) کال د آمو تر سیند راپورېووت، اندخود، سرخس او پوشنج یې ونیول، هرات نیولو ته یې ملا وتړله او د آل کرت وروستنی حکمدار غیاث الدین پیر علي یې له منځه یووړ. د تیمور بل یرغل د (۷۸۵هـ ۱۳۸۳ م) په شاوخوا کښې د افغانستان پر سبزوار او فراه پیل شو، زره او سیستان یې چور چپاو او اوسېدونکي یې ټول ووژل ودانۍ یې داسې ورانې کړې چې کنډوالې یې تر اوسه لېدل کېږي ډېر کله منارونه یې



جوړ کړل، په دغه سفر کښې یې بست او کندهار هم وران کړل. تیمور د خپل ژوندانه تر پایه ۳۵ ځله له چینه تر مصره له ډهلي تر استانبول او مسکوه پورې لښکرې وویستې او وینې یې وبهولې چې نور فتوحات یې د افغانستان په تاریخ پورې اړه نه لري، خو پر (۸۰۰ هـ - ۱۳۹۷م) کال چې د هند نیولو په نیت راووت د افغانستان پر ستم لېدلي هېواد یې بیا یرغل وکړ او هغه ښارونه چې تر چنګیزي چور او چپاو وروسته د آل کرت په وختو کښې بېرته ودان شوي وو، بیا وران کړای شول.

پر همدغه کال تیمور خراسان له فیروز کوه څخه تر ری پورې خپل زوی شاهرخ ته وسپاره او کابل، غزني او کندهار یې خپل لمسي پیر محمد ته ورکړل، پیر محمد په سلیمان غره کښې د سند تر سینده پورې له اوغانانو (افغانانو) سره جګړې وکړې، دا چې یې کلا بند کړ او د سارنګخان له ګمارل شویو کسانو سره یې لاس واچاوه او ملتان یې هم تر شپږو میاشتو کلابندۍ وروسته ونیو، تیمور هم د اندراب پر لار له هندوکوشه راواوښت او د کابل تر نیولو وروسته د لغمان سهول ته ووت، له هغه ځایه د شمال خوا ته د "کیتر"(۱) له تورکالیو (سیاه پوشو) کافرانو سره یې جګړې وکړې او د چغان سرای په شاوخوا کښې یې د خپلو فتوحاتو یو ډبرلیك په غره کښې وکینده چې تر اوسه شته، تر هغه وروسته یې هند ته مخه کړه او د (۸۰۱ هـ کال د محرم په ۱۲ او د ۱۳۹۸ م کلا د سپتمبر پر ۲۴) د سند د نیلاب له ګودره پورېووت او هندوستان یې تر ډهلي پورې چور او یو لك تنه یې ووژل په دغه سفر کښې دوولس زره پښتانه د ملك بهاء الدین جلواني، ملك یوسف

(۱) د کوچینو کوشانیانو د لقب "کداره" ـ قیدار یو شکل دی چې اوس هم په دې نامه یادېږي.

سرواني او ملك حبيب نيازي په مشرۍ له ده سره وو. تيمور تر ورانيو او دا لويې امپراتورۍ تر جوړولو وروسته (۸۰۷ هـ - ۱۴۰۴ م) کال د برات پر ۱۷ د ۷۱ کلنۍ په عمر مړ او په سمرقند کښې ښخ شو.

د تيمور د مړينې پر وخت د تيمور لمسی پير محمد د غياث الدين جهانګير زوی له آمو او بلخ څخه د سند تر سينده د کابل حکمران و. ده په لهو او فسق ژوند تېراوه، ځکه نو په سمرقند کښې د تيمور لمسي د ميرانشاه زوی خليل د چارو واګې په لاس کښې ونيول او تر (۸۱۲ هـ - ۱۴۰۹م) پورې يې د ماوراء النهر پر ځينو برخو حکم چلاوه، خو شاهرخ د تيمور زوی د (۸۰۷ هـ) کال پر روژه په هرات کښې پر تخت کښېناست، دی د ختيځ له لويو، علم دوستو او عمران خوښونکيو پاچهانو څخه و، چې تر شلو کالو يې زياته په هرات کښې پاچهي وکړه. په افغانستان کښې يې د چنګيزي او تيموري فتوحاتو پر ټولو هغو ټپو ملهم کښېښوو، چې د چنګيز او تيمور د يرغلو له امله منځته راغلي وو. ښکلې ودانۍ، مدرسې او خانقاوې يې جوړې کړې چې تر اوسه يې هم په هرات او ټول خراسان کښې لکه د مشهد د بقعه رضوی ماجت او نورې نخښې شته. د ده او د ملکې يې "ګوهرشاد" نومونه په علمدوستۍ، ادب پالنه، ودانۍ او عدالت مشهور دي، ده د خپل سلطنت پر لومړي کال د سلطان علي سبز واري ښورښت آرام کړ، او پر ۸۰۸ کال يې د تيمور لمسی سلطان حسين او امير سليمانشاه وځپل. د ده زوی ميرزا الغ بيګ اندخود او شبرغان ونيول د ټول خراسان حکمراني تر طوس او نشاپور پورې ورته وسپارل شوه. ملك صالح د ملك اسماعيل زوی چې له هنده غور ته راغی او د محمد سپهبد غوري په ملتيا يې هلته ښورښت پيدا کړ نو امير لقمان برلاس او امير حسين جاندار د هغې پېښې مخه ونيوه (۸۰۹ هـ - ۱۴۰۶ م) او يو کال وروسته شاهرخ د پير علي تاز د



مخنيوي له پاره بلخ ته مخه وکړه، پير علي هندوکوش ته وتښتېد او شاهرخ تر تخارستان او ختلان پورې د افغانستان ټولې شمالي سيمې ونيوې (۸۱۰هـ). پر (۸۱۱ هـ) کال يې په فراه کښې "ينا لتګين"، "شاه سکندر" او "پهلوان شمس دراز" تر کلابندۍ وروسته د خان تابع او د اوك او جوين کلا يې ونيوه، شاه قطب الدين د ملك محمود زوی يې بېرته د سيستان په زره کښې کښېناوه او هغه ولايت يې پهلوان جمال ته وسپاره د کندهار، غزني او کابل ولايتونه يې تر سند پورې خپل زوی ميرزا قيد و او بلخ، تخارستان او بدخشان ولايتونه يې ميرزا ابراهيم نومي ته وسپارل، شيخ زين الدين خوافي يې د سيستان امارت ته واستاوه (۸۱۲ هـ) او چې په کندهار کښې د دوو وروڼو امير تومان کندهاري پير محمد د امير کتلو زوی مشهور په پيرك او د مودود ګرمسيري تر منځ مخالفت پېښ شو، دواړه هرات ته راغلل، په نتيجه کښې د هغه ځای حکومت پيرك ته وسپارل شو او مودود د هرات په دربار کښې مقرر شو (۸۱۳ هـ - ۱۴۱۰م).

د (۸۱۴ هـ - ۱۴۱۱ م) په سر کښې د هند د پاچا له خوا د ملتان قاضي خضرخان د سفير په حيث د شاهرخ دربار ته راغی او په بادغيس کښې يې ورسره وکتل، د عبدالرزاق سمرقندي په وينا په هند کښې د شاهرخ په نامه خطبه ويل شوې او سکه وهل شوې وه.

پر (۸۱۵ هـ - ۱۴۱۲م) کال د بدخشان حکمران شاه بهاء الدين ياغي شو او د شاهرخ لښکريانو له بغلان او اشکمش څخه پر بدخشان يرغل وکړ په بهاء الدين پسې تر پاميره ولاړ او د هغه ولايت حکومت يې د بهاء الدين وروشاه محمود ته ورکړ، خو څلور کاله وروسته ميرزا سيورغتمش د بدخشان حکمران شو پر (۸۱٦ هـ - ۱۴۱۳ م) کال د هرات ښار د اختيارالدين حصار چې فخرالدين کرت جوړ کړې او د تيمور په يرغلو کښې

وران شوی و، د شاهرخ په امر بېرته ودان شو پر (۸۲۰ هـ - ۱۴۱۷ م) چې د دوو محلي حاکمانو د سیفل کندهاري د زوی او ملك محمد تر منځ شخړه پېښه شوه او د کندهار پښتنو د سند تر سینده او ګرمسیر پورې بلوا وکړه شاهرخ صدرالدین ابراهیم صدر عالي د هزاره سیمې ته ولېږه او د هغه ځای مشران یې د پاچا خدمت ته راوستل، د بدخشان لښکریان له زاسیو غتمش سره او سیستان سپایان له ملك قطب الدین سره یو ځای شول او د شاهرخ تر رکاب لاندې یې پر کندهار یرغل وکړ، د هزاره ګانو امیران د پرمل افغان له مشرانو سره د خواجه لقمان (نعمان) تر مشرۍ لاندې د غزني له شاوخوا ځخه راغلل او اطاعت یې ومانه کابل میرزا قیدو ته وسپارل شو او شاهرخ د هلمند د غاړې دا غرق له لارې بېرته هرات ته ولاړ امیر عبدالصمد یې د ګرمسیر پر حکومت او امیر حسام یې د کندهار پر کوتوالۍ وټاکل، چې میرزا قیدو یاغي شو، د اوبي د ناب تر جګړې وروسته ګرفتار او په هرات کښې بندي شو، نو شاهرخ د کابل، غزني او کندهار ولایت او افغانستان د هند او سند تر بریدو پورې ځپل زوی میرزا سیورغتمش ته ورکړ (۸۲۱ هـ) نه کاله د ټول افغانستان حکمران و، څو چې د (۸۳۰ هـ - ۱۴۲٦ م) کال د حرم پر میاشت د کابل په ښار کښې مړ شو او شاهرخ هغه ټول ولایت د هغه زوی میرزا سلطان مسعود ته وسپاره. شاهرخ پریوارت هېواد له سیحونه د عرب تر بحیرې او دفارس له لوېدیزو څنډو د سند د سیند تر غاړو پورې پنځوس کاله په برې سره واکمني لرله، او یو اویا کلن د (۸۵۰ هـ - ۱۴۴٦م) کال د ذیحجی د میاشتې پر ۲۵ په رې کښې مړ شو. د شاهرخ تر مړینې وروسته د ده په ارث هېواد کښې د تیموري شهزادګانو تر منځ شخړې منځته راغلې او په سمرقند کښې د ده عالم او منجم زوی الغ بیګ (د زیج الغ بیګ او او لوس اربعه مؤلف) او د سمرقند درصد ګاه ۸۴۱ هـ موسس) د



ده پر ځای کښېناست. له خپل لښکر سره بلخ ته راغی او د افغانستان شمالي ولایتونه یې ونیول، خپل زوی میرزا عبدالطیف یې د هغو ولایتو حکمران وټاکه او په خپله سمرقند ته ولاړ (۸۵۱ هـ) خو همدا مهال میرزا علاء الدوله د بایسنقر زوی او د شاهرخ لمسي هرات لاس ته راوست او د عبدالطیف د مقابلې له پاره یې پر بلخ او شبورغان یرغل وکړ، خو بې له دې چې خپل مقصد ته ورسېږي تر چور، چپاو او ورانولو وروسته هرات ته ستون شو (۸۵۱هـ - ۱۴۴۷ م) الغ بیګ په ماوراءالنهر، ختلان، کندوز، بدخشان، میمنې او فاریاب پورې لښکر راغونډ او د هرات خوا ته پر مخ ولاړ، خو میرزا علاء الدین له خپل لښکر سره د منجاب د کوتل له لارې مقابلې ته ورووت. د هرات پر ۱۴ فرسخۍ په تر ناب کښې سره ونښتل، د میرزا علاء الدوله لښکر مات شو او په خپله مشهد ته وتښتېد. خپل ورور میرزا ابو القاسم بابر ته ورغی، الغ بیګ سید عماد الدین ته یې وزارت او مولانا قطب الدین احمد اساسي ته یې د قضای اعلی منصب ورکړ، په خپله یې د مشهد خوا ته مخه وکړه (۸۵۲ هـ). د ده تر شا امیر زاده یار علي او امیر سلطان ابو سعید چې د هرات د نره تو په حصار کښې بندیان وو، له زندانه ووتل او په هرات کښې یې اړودوړ جوړ کړ، الغ بیګ له مشهده بېرته د هرات خوا ته مخه کړه او د ښار د باندې یې چور کړ د هغه ځای حکمراني یې میرزا عبدالطیف ته پرېښووله او په خپله تر آمو پورېووت (۸۵۲ هـ) میرزا عبدالطیف پېنځلس ورځې وروسته هرات میرزا ابوالقاسم بابر ته چې له سرخس څخه پر مخ راته پرېښوو او په خپله بلخ ته وتښتېد. بابر میرزا هرات ونیو او امیر زاده یارعلي یې وواژه (۸۵۲ هـ پای).

تر هغه وروسته بابر میرزا سیستان او نیمروز هم په خپل هېواد پورې وتړل، خو ورور یې علاء الدین په بلخ او بدخشان کښې ورته پورته

شو، بابر د هرات له لښکر سره د بدخشان د غرو خوا ته وخوځېد، شمالي ولایتونه یې له بدخشان څخه تر مرغاب پورې امیر ناصرالدین او امیر مبارزالدین هزار اسپي ته وسپارل (۸۵۴ هـ) بابر میرزا تر (۸۶۱ هـ - ۱۴۵۸م) پورې پر هرات او سیستان او د افغانستان پر شمالي ولایتو باندې تر بدخشان او خراسان پورې سلطنت وکړ او پر همدغه کال مړ شو، خو عبداللطیف په بلخ کښې د خپل پلار پر خلاف بیرغ پورته کړ، پر (۸۵۳ هـ - ۱۴۴۹ع) یې خپل پلار الغ بیگ او خپل ورور عبدالعزیز ووژل او یو کال وروسته دی په خپله هم ووژل شو (۸۵۴ هـ - ۱۴۵۰م).

د هرات د تیموریانو نومیالی سلطان ابو سعید گورگان د سلطان محمد زوی، د میرانشاه لمسی او د تیمور کړوسی دی چې پر (۸۶۱ هـ ـ ۱۴۵۶ م) کال د هرات د سلطنت پر تخت کښېناست ده هم پر زابلستان د خراسان او توران تر پایه حکم وچلاوه او د شاهرخ نومیالۍ ملکه گوهرشاد یې پر (۸۶۲ هـ) کال ووژله، تر لسو کالو پورې یې په کامرانۍ سره حکومت وکړ. د کابل، غزني او د افغانستان ولایتونه یې د هندوستان تر وېش پورې خپل زوی میرزا الغ بیگ ته ورکړي وو، د دغه شهزاده ځینې سپاهیان د ملتان تر دروازې هم ورسېدل (۸۷۳ هـ).

خو د بدخشان په ولایت کښې د ابو سعید بل زوی میرزا سلطان ابوبکر (۸۶۵ - ۸۸۴ هـ) حکومت کاوه، چې د بدخشان یوه محلي شهزاده وربانديې حمله وکړه خو نوموړی شهزاده هم ووژل شو، همدا شان د کندهار او گرمسیر ولایت یې خپل بل زوی میرزا سلطان مراد ته ورکړي وو، چې پر (۸۷۳ هـ - ۱۴۶۸ م) کال په یوه جگړه کښې د اوزون حسن لاست ته ورغی او ووژل شو.

د ابوسعید له لویو مخالفینو څخه یو هم سلطان حسین د منصور



زوی، د بابر لمسی، د عمر شیخ کړوسی او د تیمور کوسی دی چې علم دوسته فاضل پاچا و، ده په ایران او ماوراءالنهر کښې تر اوږدې حکمرانۍ وروسته د بېرې لوړې ژورې ولیدې همدا چې سلطان ابوسعید د ایران د شمال اران د قراباغ په اوو فرسخۍ کښې د امیر حسن بیگ د لښکر په مقابل کښې مات، بندي او ووژل شو (۸۷۳ هـ درجب ۱۴) نو سلطان حسین د (۸۷۳ هـ - ۱۴۶۸ م) کال د روژې پر لسمه د جمعې پر ورځ په هرات کښې د پاچهۍ پر تخت کښېناست، د ده پاچهي هم د شاهرخ د دورې په څېر د علم ادب او صنعت د روزنې دوره وه، د ده نامتو وزیر امیر علي شیر نوايي د علم او ادب او جهاندارۍ په کارو کښې ساری نه لاره (د ۹۰۶ هـ. ۱۵۰۰م د جمادی الثاني ـ څلورمې خور پر ۱۳ مړ دی) واعظ کاشفي، علامه جلال الدین دواني، مولانا جامي نامتو عالم او صوفي، میر خواند، خواند میر او عبدالرزاق سمرقندي د دې دورې نومیالي تاریخ پوهان دي.

د هرات انځور گر بهزاد د ده په عصر کښې اوسېده د سلطان حسین بایقرا له عمراني نخښو څخه د بلخ په خواجه حیران کښې د هغه مزار ودانول دي چې حضرت علي ته منسوب دي (د افغانستان په شمالي سیمه کښې اوسني مزار شریف) د ده پر وخت کښې امیر ابو اسحاق تر خان د بلخ حکمران او میرزا سلطان حسین د شبورغان حاکم و، هغه وخت چې هغه دواړه مړه شول میر مغول په بلخ او ملك یحیی په سیستان کښې والیان شول د (۸۷۴هـ - ۱۴۶۹ م) پر شاوخوا میرزا محمد عمر چې له تیموري شاهزاده گانو څخه و، له هراته د گرمسیر د نیولو له پاره واستول شو. نظام الدین احمد برلاس چې د کندهار حاکم و تسلیم او میرزا محمد عمر د هغې سیمې حکمران شو، همدا رنگه په خپله سلطان حسین د نره تو کلا ونیوه او د مرغاب له غاړو یې مخالفین ورك کړل. خو پر (۸۷۵ هـ - ۱۴۷۰ م) کال چې

سلطان حسین د خراسان په شاوخوا کښې له تورکمنو قبیلو سره په جګړه اخته و، د ده ورور یادګار میرزا هرات ونیو، هغه و چې سلطان حسین له زرو سپرو سره له میمنې او فاریاب څخه ورتېر شو او یادګار یې په هرات کښې د خوب په حال کښې ونیو او ویې واژه، په خپله سلطان حسین تر ۳۹ کالو پاچهي وروسته د (۹۱۱هـ - ۱۵۰۵م) کال د ذیحجې میاشتې، پر ۱۱ مه پر اویا کلنۍ مړ شو. (وګورئ ۶۲ -۶۳ عکس).

دا مهال د هرات دولت سیاسي او علمي اغېزه تر استانبول او جنوبي هندوستان پورې رسېدلې وه، له استانبوله د آل عثمان سلاطینو او له جنوبي هنده د اسلامي دولت نامتو ادیب وزیر محمود ګاوان د هرات له دربار او مولانا جامي سره سیاسي او علمي لیکنې لرلې.

د سلطان حسین میرزا تر مړینې وروسته د هرات غښتلی مرکزي دولت د بدیع الزمان میرزا او مظفر حسین میرزا شاهزادګانو په لاس کښې و، خو له بده مرغه هغه مدنیت دوسته او عمران پسنده دولت چې هرات یې د آسیا د علم، ادب او صنعت مرکز ګرځولی و، د سند له غاړو د ایران تر پایه او د سیحون له سینده تر عرب بحیرې پورې یې سیاسي نفوذ غوړېدلی و، بیا د چنګیز نژاد ته منسوب د یوه سړي شیبک خان په لاس وران او برباد شو، د ازبکانو او صفویانو په جګړو کښې سني او شیعه مذهبي اختلافاتو د هرات ښایسته ښار وران کړ.

د هرات تیموري پاچهان:

* ۱ - تیمور د تراغای زوی (۷۷۱ ـ ۸۰۷ هـ)
* ۲ - شاهرخ د تیمور زوی (۸۰۷ ـ هـ ۸۵۰ هـ)
* ۳ - الغ بیګ د شاهرخ زوی (۸۵۰ ـ ۸۵۳ هـ)
* ۴ - عبداللطیف د الغ بیګ زوی (۸۵۳ ـ ۸۵۴ هـ)



* ۵ - ابو القاسم بابرد بایسنقر زوی او د شاهرخ لمسی (۸۵۴-۸۶۱هـ)
* ۶ - ابو سعید کورګان د محمد میرانشا زوی او د تیمور لمسی (۸۶۱ ـ ۸۷۳هـ)
* ۷ - سلطان حسین د غیاث الدین منصور زوی، د بایقرا لمسی، د عمر شیخ کړوسی او د تیمور کوسی (د تیموریانو د نسب شجره وګورئ).

ماخذونه:

ریاض الانشاء د محمود ګاوان، مطلع السعدین د عبدالرزاق سمر قندی، تاریخ ایران، تارخ ایران در دورۀ مغول د عباس اقبال، تاریخ ادبیات ایران بعهد مغل د براون، رهنمای افغانستان، دایرة المعارف اسلامي، حبیب السیر، روضة الصفا.

# د کونړ حکمرانان

# او یوسفزیان

## (د ۸۰۰ - ۹۰۰ هـ شاوخوا)

د (۸۰۰ هـ - ۱۳۹۷م) پر شاوخوا چې د افغانستان پر خاوره د تیمور یرغلونه جاري وو، د کونړ په درو کښې یوې سیمه ییزې کورنۍ حکمراني کوله چې حکمران یې (سلطان) باله. دغه کهاله د کونړ په پیچ دره کښې مرکز درلود او کلیوالي افسانو دوی د ذوالقرنین زوزاد ګڼل. د دغه کهاله له نومالیو څخه یوسلطان پکهل او بل د هغه ورور سلطان بهرام و، چې دوی بیا د سلطان کهجامن زامن او د هندو لمسیان وو. سلطان پکهل له لغمانه تر کونړ، باجوړ، سوات او کشمیره پورې حکومت کاوه، (د پېښور د هزاره ضلع) پکهلی نومي ځای همده ته منسوب دی. د کونړ په درو کښې د ده لیکنې (ډبرلیکونه) پاتې دي تر ده وروسته یې زامن په سوات کښې سره ونښتل او لویه جګړه یې وکړه.

خو سلطان بهرام لغمان او ننګرهار ونیول او خپل یوه برخه مخالفان یې پېښور ته وشړل، د ده د واکمنۍ مرکز د سپین غره په لمنه کښې پاپین و. تر ورور وروسته یې د هغه د حکمرانۍ ځمکې تر کشمیر پورې هم ونیولې او له کابله تر کمشیره یې پر یوه هېواد باندې حکم کاوه، تر ده وروسته



"سلطان تومنا" د حکمرانۍ واکې په لاس کښې ونیول، خو د دې کورنۍ حکمراني د شینوارو، کونړ، سوات او باجوړ په غرو کښې د هزاره تر ضلع او کشمیر پورې محدوده پاتې وه، د کابل، ننګرهار او پېښور په غرو، رغو او د غرو په لمنو کښې د کندهار د سیمو او د ارغستان د رود د غاړو د پښتنو مهاجرتونه د تیمور د اولادې په وختو کښې پیل شول د کند او زمند ټبرونه د ګاونډیانو داختلاف او د څرڅایو د لړوالي له امله د کندهار له سیمو څخه د کابل خوا ته را وکوچېدل، د ګومل او نورو ځایو خلک له دوی سره یو ځای شول او د کابل په درو کښې اوسېدل، د دوی حکمرانان مداد، مدو او شیخ عثمان وو، د (۸۷۰هـ - ۱۴۶۵م) پر شاوخوا کښې چې میرزا الغ بیګ د سلطان ابو سعید کورګان زوی د کابل حکمدارو، د دغه ټبر ټول مشران یې له ملك سلطان شاه سره یو ځای راغونډ او ویې وژل، خو د سلطان شاه یوسفزي وراره (احمد) له دې وژنې بچ پاتې شو، تر کلانی خلك یې په لغمان کښې مېشت کړل، خو په حصارك کښې د یوسفزیو او مهندزیو تر منځ لویه جګړه پېښه شوه، چې په نتیجه کښې یې مهمندزیو د ننګرهار سیمې ونیولې او یوسفزیانو د باجوړ، بونیر او سوات خوا ته مخه کړه، د هغه ځای بومي خلك (د لازاك) وتښتېدل، پر شور (پېښور) ته یې پناه یووړه او یوسفزیو د شلمانیو مشر چې جلو نومید وواژه او د پېښور د شمال د اشنغر او دوابه پر ټولو ځمکو یې قبضه وکړه له ناوګۍ څخه یې د (باجوړ) تر ارهنده ونیول. دا مهال د یوسفزیو حکمرانان ملك احمد او ملك ملي وو، دا شیخ آدم مشهور په (ملي) د یوسف زوی د پښتنو له سړبني ټبر څخه دی چې د یوسفزیو د قوم ستر مشر، لاربنود، واکمن، نامتو مقنن (law Giver) او په تقوی او فضیلت مشهور سړی و، ده د (۸۲۰هـ - ۱۴۱۷م) پر شاوخوا کښې د شیخ ملي دفتر په نامه د ټولنیزو قوانینو، قومي دودونو او د ځمکو د وېش په اړه یو کتاب

ولیکه، چې یوسفزیانو له هغه وخته تر وروسته څلور پیړیو پورې هم خپلې میراثې ځمکې د هغه دفتر د قوانینو په لارښوونه ویشلې، په دغو قوانینو کښې د کرهنې، څړ د اوسېدو ځمکې د عدالت او مساوات له مخې وېشل شوي او تر لسو کالو وروسته د کورنیو د غړیو د زیاتوالي یا لږوالي له کبله نوی وېش کېده، داکتاب د پښتنو د تېرو د نسبو له شرح سره لیکل شوی و.

تر شیخ ملي وروسته د یوسفزیو واکمني کجوخان رانې زی ته ورسېده (د ۹۰۰هـ ۱۴۹۴م شاوخوا) کجوخان هم یو کتاب ولیکه چې د شیخ ملي د دفتر پایڅوړ یا بشپړوونکی ګڼل کېږي. په هغه کښې یې د یوسفزیو د تاریخ شرح او د شیخ ملي د وضع کړیو قوانینو سمون او تکمیل راوړی و. ډېره موده د دغه قوم مشر او واکمن و او د (۱۲) زرو سپرو په مرسته یې په شیخ پتور کښې له غوریه خېلو سره جګړه وکړه او مات یې کړل. د یوسفزیو بله مهمه جګړه په لنګرکوټ کښې له دلازاک سره وه چې د لازاك ته یې وروستنی ماته ورکړه، ترکجو خان وروسته د یوسفزیو دوه تنه شاه منصور د ملك سلیمان زوی او سلطان ویس سواتي د هغو سیمو حکمرانان وو چې د (۹۱۰هـ ۹۲۵) پر شاوخوا محلي واکمنان ګڼل کېدل، د شاه منصور یوه لور بي بي مبارکه د بابر ماندینه وه او همدارنګه سطان علاء الدین سواتي او طاووس خان د بابر له همهالیو نومیالیو څخه وو چې ده په خپله دا نومیالي یاد کړي دي.

۱- سلطان پکهل د کونړ د کهجامن زوی او د هندو لمسی (د ۸۰۰هـ) شاوخوا.

۲- سلطان بهرام د کهجامن زوی (۸۱۰هـ شاوخوا)

۳- سلطان تومنا (۸۱۵هـ شاوخوا)

۴- ملك احمد یوسفزی د(۸۱۵هـ شاوخوا)



۵- شیخ آدم ملی د یوسف زوی (د ۸۲۰هـ شاوخوا)

٦- کجو خان رانی زی (۹۰۰) هـ شاوخوا)

۷- شاه منصور د ملك سلیمان زوی (۹۱۰هـ شاوخوا)

۸- سلطان ویس سواتی (د ۹۱۰هـ شاوخوا)

۹- سلطان علاء الدین سواتی (د ۹۱۰هـ شاو خوا)

۱۰- طاووس خان د (۹۱۰ هـ شاوخوا)

اخځ: تاریخ مرصع، تذکرة الابرار و الاشرار، تاریخ پشاور، حیات افغاني، نسب نامهٔ افاغنه مجلهٔ آثار عتیقهٔ هند، د افغانستان کالنی، پټه‌خزانه، د پښتو ادبیاتو تاریخ ۲ ټوك، خورشید جهان، صولت افغانی، بابرنامه.

# د هند تیموریان

## د ارغونیانو، اوزبکو او صفویانو اغیزه

(۹۱۰ - ۱۱۵۱هـ)

د هرات د تیموریانو د دورې په پای کښې، ظهیر الدین محمد بابر د عمر شیخ میرزا زوی او د هرات د پخواني سلطان ابو سعید کورګان لمسی د (۸۹۹ - ۱۴۹۳م) کال د روژې میاشتې پر پېنځمه د فرغانه په اند جان کښې پر یوولس کلنۍ پر تخت کښېناست. دا وخت د هرات شهزاده ګان په خپلو مینځو کښې سره نښتي او اخته وو او د هرات سلطنت کمزوری شوی و، بابر د پلار او مور له خوا چنګیز او تیمور ته منسوب و، دی سره له دې چې کوچنی و، خو بیا یې هم وکړای شول چې پاچهي وساتي، دا مهال د ده اکا سلطان احمد میرزا په سمرقند کښې او سلطان محمود میرزا د بدخشان په کندوز کښې حکومت کاوه، له بابر سره یې مخالفت درلود د بابر ورور جهانګیر میرزا هم د ده مخالف و چې دغو مخالفینو او د ده نورو رقیبانو د ده ورور له اندجانه ویوست او شیباني خان (۹۰۵ - ۹۱۶هـ) د ابراهیم زوی چې د چنګیز د زوی جوجي له کوله و سمرقند ونیو، له بابر سره ونښت چې هغه پېښې د افغانستان په تاریخ پورې اړه نه لري.

بابر تر (۹۰۹ هـ - ۱۵۰۳ م) پورې له شیباني سره جګړه وکړه او چې



خپل بله (حریف) یې غښتلی ولید نو د افغانستان خوا ته یې مخه کړه پر همدغه کال له جیحونه راپورېووت او د بدخشان حکمران خسرو شاه ته چې په کندوز کښې و، ورغی؛ لږ مهال وروسته یې د خسرو د لښکر اته زره سپاره او پلي خپل پلویان کړل. خسرو یې د میمنې خوا ته وشاړه چې تیموري شهزاده بدیع الزمان میرزا ته یې پناه یووړه. په خپله بابر د خسرو مالونه خپل کړل او د خسرو له لښکریانو او دریو څلورو زرو مغولي کورنیو سره یې له کندوزه کابل ته مخه وکړه. دا مهال د کابل حکمران عبدالرزاق میرزا دالغ بیګ میرزا کوچنی زوی و، چې د حکومت چارې یې د شیرم زکه (زکي) نومي په لاس کښې وې، د کابل مشرانو امیر محمد یوسف، محد قاسم بیګ او امیر یونس علی دی په سلطاني دیوانخانه کښې وواژه. په همدغو وختو کښې د افغانستان د جنوبي سیمو د کندهار او ګرمسیر حکمراني د میر حسن د زوی امیر ذوالنون ارغون په کهاله پورې اړه درلوده، دا امیر ارغون (چې په بلوڅي روایاتو کښې په زنو مشهور دی) د ابو سعید کورګان له نوکرانو څخه و، چې سلطان حسین بایقرا د غور، غرجستان او زمینداور پر حکمرانۍ ټاکلی و، ده پر (۹۰۴ هـ) کال د هزاره او نکدرې قبیلې ایل کړې او د دغه خدمت په پاداش کښې یې د فراه، غور او کندهار حکومت وموند، پر (۹۰۲هـ - ۱۴۹۶ م) کال یې شهزاده بدیع الزمان ته خپله لور ورکړه او له هغه سره یې په هغه یاغي تابه کښې چې له خپل پلار سلطان حسین بایقرا څنې یې کړی و، مرسته وکړه او پر (۹۰۴ هـ - ۱۴۹۸ م) کال یې هرات ونیو، بدیع الزمان چې پر بلخ بری وموند، ارغون سیستان ونیو، سلطان حسین بایقرا چې پر (۹۱۱ هـ) کال مړ شو، نو د ارغون واک لاپسې ډېر شو له کندهاره یې د شال، بولان او مستنګ (اوسني بلوچستان) پر ولایت د سند تر غاړو پورې، لاس بری وموند، په خپله د هرات په کلا بندۍ

او د شیباني په جګړه کښې ووژل شو (د ۹۱۳ هـ - ۱۵۰۷ م شاوخوا) تر ده وروسته یې دوو زامنو شاه بیګ او محمد مقیم ارغون له کندهاره د سند تر سینده حکم کاوه، د هرات تر نیولو وروسته یې له شبیاني خان سره روغه وکړه. خو چې زکي ووژل شو او د کابل چارې ویجاړې شوې نو محمد مقیم ارغون د کندهار له ګرمسیره پر کابل یرغل وکړ پر (۹۰۸ هـ) کال یې میرزا عبدالرزاق د لغمان خواته پر شا وشاړه؛ کابل یې ونیو او دالغ بیګ لور یې وکړه. بابر چې د شمال له خوا تر هندوکوش را تېر شو او محمد مقیم له کابله کندهار ته ولاړ نو بابر کابل ونیو (۹۰۹ هـ - ۱۵۰۳ م).

محمد مقیم په کندهار کښې لښکر راغونډول پیل کړل او بابر د غزني خوا ته حووت. د غلجیو تر کلات پورې پر مخ ولاړ، خپل ورور جهانګیر میرزا ته یې د غزني حکومت ورکړ (۹۱۱ هـ - ۱۵۰۵ م)؛ یو کال وروسته د افغانستان ټول تیموري شهزادګان د شیباني د ورځ پر ورځ زیاتېدونکي ځواک پر وړاندې د مرغاب پر غاړه سره غونډ شول او بابر یې هم وروغوښت بابر چې د سلطان حسین د مړینې خبر اورېدلی و، په خپله د ده په وینا په زړهٔ کښې یې د هرات خرخښه وه، نو د هزاره او اویماق له لارې مروچاق ته ولاړ، د کل باغان په پړاو کښې له نوموړیو شهزادګانو سره یو ځای شو (د ۹۱۲ هـ ځلورمه خور - جمادی الاخری - ۱۵۰٦ م) دا چې شیباني جنګ ته راوړاندې نه شو او له بلې خوا له کابل څخه هم د خرپړتیا خبر بابر ته راورسېد، نو بابر بیرته پر سره ژمي کابل ته راغی او په لار کښې درانه تلفات ورپېښ شول، ځکه چې د ده تر شا د کابل ځینو مشرانو د بابر تره جان میرزا په پاچهي منلی و، خو چې بابر کابل ته راورسېد تره یې کندهار او سیستان ته وتښتېد، دا مهال شیباني پر بدخشان یرغل وکړ او د بابر کشر ورور ناصر میزا یې د کابل خوا ته وشاړه.



بابر په افغانستان کښې تر چنګیز او تیمور وروسته غښتلی پاچا و، دی له هغو افغاني قبایلو سره ونښت چې په غرو او رغو کښې یې کوچیاني ژوند لاره هغه درانه تلفات یې چې د هرات په سفر کښې لیدلي د غزني د جنوب ختیز غلجیو قبیلو په چور او چپاو تلافي کړل (۹۱۳ هـ).

پر همدغه کال چې شیباني خان د هرات او فراه تر یرغل وروسته ګرمسیر ته ورسېد، نو بابر له کابله ور ووت او د کندهار په خالیشك نومي ځای کښې یې له شاه بیګ او محمد مقیم ارغوني سره جګړه وکړه، د خپل دوه زرریز لښکر په مرسته یې کندهار ونیو شاه بیګ مستنګ او مقیم زمینداور ته وتښتېدل، بابر کندهار ایالت خپل ورور ناصر میرزا ته وسپاره او په خپله کابل ته راغی، خو د ارغون زامن چې شیباني ته یې پناه وړې وه د شیباني په ملاتړ یې بېرته پر کندهار یرغل وکړ او ناصر میرزا یې کابل ته وشاړه، شیباني کندهار شاه بیګ ته وسپاره او په خپله بېرته خراسان ته ولاړ (۹۱۳ هـ).

وړاندې مو وویل چې میرزا عبدالرزاق د محمد مقیم له لاسه مات شو او له کابله د افغانستان ختیځ ته وتښتېد، په ننګرهار کښې یې د علي شبکور سیستاني، محمد علي شیباني، عبدالله صف شکن، نظر، یعقوب او نورو په مرسته د پاچهۍ بیرغ پورته کړ، بابر پر (۹۱۴ هـ - ۱۵۰۸ م) کال پر هغه حمله وکړه او له خپلو دریو ځلورو زرو تنو لښکرو سره په ننګرهار کښې وجنګېد، عبدالرزاق یې ووژاه او هم یې زبیر راعي چې په بدخشان کښې یې له بابر سره مقابله کوله د خپل تره جان میرزا په واسطه له منځه یووړ، دا مهال چې بابر په کابل او بدخشان کښې بوخت و، په هرات کښې د تیموري شهزادګانو حکومت د شیباني په لاس رنګ شو او ټول خراسان تر کندهار پورې لاس ته ورغی، ځکه پر (۹۱٦ هـ - ۱۵۱۰) کال صفوي پاچا شاه

اسمعیل مرو ته لاړ او شیباني یې هلته کلابند کړ، شیباني د برات میاشتې پر ۲٦ له پینځلسو زرو تنو سره پر صفویانو یرغل وکړ، په دې جګړه کښې لس زره اوزبك په خپله له شیباني سره ووژل شول او شاه اسمعیل د (۹۱۷ه ۱۵۱۱م) کال پر پسرلي تر آمو پرمخ ولاړ او بېرته هرات ته راغی، همدا چې د صفویانو په جګړه کښې د بابر لوی رقیب شیباني خان ووژل شو، نو بابر له شپېتو زرو تنو سره له کابل او بلخ څخه پر ماوراء النهر یرغل وکړ او تر ډېرو فتوحاتو وروسته تر (۹۲۰ هـ - ۱۵۱۴ م) پورې یې هغه نیولي ښارونه بېرته له لاسه ووتل او ناکامه کابل ته راوګرځېد بابر چې په ماوراء النهر کښې له ډېر وغښتلیو او کلکو رقیبانو سره مخامخېده نو ځکه یې تر هغه وروسته هغې سیمې ته پام وانه ړاوه او ویې غوښتل چې د هند د ارتو ملکو په نیولو لاس پورې کړي، د دغه کار لومړني کارونه یې په کابل کښې تر سره کړل او پر (۹۲۵ هـ - ۱۵۱۹م) یې پر هند خپل لومړی یرغل پیل کړ، د سند د نیلاب له ګودره د پنجاب تر بهره پورې ورسېد، هغه سیمې یې حسن بیګ اتکه ته وسپارلې او د کهکران پر ولایت او د پرهاله پر کلا یې حمله وکړه، د بهره او سند تر منځ ولایت یې محمد علي ته وسپاره بیرته کابل ته راغی او په لاره کښې یې د پېښور د شمال د یوسفزیو ډېرې قبیلې د ځان پر خوا کړې د یوسفزیو د یوه مشر شاه منصور لور یې وکړه.

په دې وسیله یې وکړای شول د سبکتګین په څېر (چې د محمود مور یې د زابل له پښتنو څخه کړې وه) د پښتنو زړور او ننګیالي قبایل د ځان پلوي کړي او د هغو په مرسته او ملاتړ د هند راتلونکي امپراتور شي، ځکه چې یوسفزیان د خیبر او سند تر منځ په ارته سیمه کښې پراته و نو دا ناشوني برېښېده چې د دوی له مرستې پرته دې څوك له کابله د سند اخوا هند ته واوړي.



په دې توګه د بابر کار اسان شو، نو پر دویم یرغل چې د (۹۲۵ه) کال په پای کښې یې وکړ تر اټك پورېووت چې بېرته را وګرځېد نو په لاره کښې یې د حضر خیل قبیلې چور کړې، په درېیم یرغل (۹۲٦ هـ - ۱۵۱۹م) د پنجاب تر سیالکوټه پر مخ ولاړ، سید پور یې وران او خلك یې قتل عام کړل کابل ته راغی. شاه بیګ ارغون چې له سنده پر کندهار یرغل کاوه، نو ځکه بابر کندهار کلابند او له شاه بیګ سره یې روغه وکړه بیرته کابل ته ستون شو (د ۹۲٦ هـ - ۱۵۱۹م رجب)، بل کال یې بیا کندهار کلابند کړ او شاه بیګ یې د شال خواته پر شا وشاړه د (۹۲۸ هـ، ۱۵۲۱ م) کال د کوچني اختر د میاشتې پر ۱۳ یې د کندهار ښار په روغه ونیو او شهزاده کامران یې د هغه ځای حکمران وټاکه.

د بابر څلورم ځل تګ پر (۹۳۰هـ - ۱۵۲۳م) کال تر لاهور او سیالکوټه پورې و او په پینځم ځل تګ یې (د ۹۳۲هـ د رجب پر ۸) د پاني پت په جګړه کښې سلطان ابراهیم لودي وواژه او (د ۹۳۲ هـ ۱۵۲۵م د رجب پر ۱۲) د ډهلي پر تخت کښېناست، همدا مهال د پېښور، کوهاټ او بنو خوا د یوسفزیو لویو قبیلو مهاجرتونه بشپړ شول او هم د بلوڅو لویو قبیلو د سند سیمه د غازي خان تر ډېرې او د پنجاب تر جنوبه ونیوه.

تر هغه وروسته کابل، بدخشان او کندهار له ډهلي څخه د بابر له خوا اداره کېدل خواجه کلان د غزني او ګردېز حکمران (۹۳۲ه)، شهزاده همایون د کابل او بدخشان حکمران (۹۳۳ هـ - ۱۵۲٦م) او شهزاده کامران د کندهار حکمران و. همدارنګه همایون چې پر (۹۳۵ه) کال هند ته ولاړ، سلطان سعدي خان کاشغری پر بدخشان حمله وکړه، خو د بابر زوی هندال میرزا هغه مات کړ او بابر د بدخشان حکمراني سلیمان میرزا ته وسپارله.

کندهار تر کامران وروسته شهزاده عسکري ته وسپارل شو، ده پر

(۹۳۰هـ) تر ۱۵۲۳م) د کندهار د چهل زینې په دالان جوړولو او ډبرلیك لیکلو پیل وکړ چې تر (۹۵۳ هـ - ۱۵۴٦م) پورې یې بشپړ کړل.

د افغانستان په تاریخ کښې بابر یو نومیالی، زړور، خونړی، پوه او مؤلف پاچا و، چې پر بلخ، بدخشان، کابل او کندهار یې تر ډهلي پورې پر یو لوی هېواد حکومت کاوه ده په پارسي او تورکي شعر وایه او څو مهم تالیفونه هم لري. د (۹۳۷ هـ ۱۵۳۰م) کال پر ځلورمه خور - جمادی الثانی په اګره کښې مړ او د ده د وصیت له مخې د کابل په بابر باغ کښې ښخ شو. د ده هدیره پر (۱۰۵٦ هـ - ۱٦۴٦ م) شاهجهان جوړه کړه چې تر اوسه په کابل کښې مشهوره ده (وګورئ ٦۵ او ٦٦ نومره عکس) تر هغه وروسته یې زوی نصیر الدین همایون د ډهلي پر تخت کښېناست، پنجاب پښنور، لغمان، کابل، کندهار او بامیان یې د خپل ورو شهزاده کامران د حکمرانۍ سیمه وبلله او بدخشان یې د بابر د جان میرزا زوی میرزا سلیمان (د بابر تره) ته وسپارله؛ د (۹۴۲ هـ - ۱۵۳۵م) کال په شاوخوا کښې صفوي سام میرزا له هراته پر کندهار یرغل وکړ او د کندهار ښار یې د میرزا کامران د حکمران له لاسه ویوست، هغه وو چې کامران له لاهوره کندهار ته راغی، سام میرزا یې مات او کندهار یې خواجه کلان بېګ ته وسپاره او په خپله لاهور ته ولاړ، د بل کال په سر کښې په خپله صفوي شاه طهماسپ کندهار بیا له خواجه کلان څخه واخیست او میرزا بداغ خان قاجار ته یې وسپاره، خو هغه وخت چې شاه طهماسپ ایران ته ولاړ، بیا کامران له لاهوره راغی او کندهار یې ونیو (۹۴۳ هـ - ۱۵۳٦م).

خو همایون په هندوستان کښې ونه شو کړای چې د خپل پلار د پاچهۍ مقام وساتي دا ځکه چې بابر د لودیانو شهنشاهي برباد کړې او په هند کښې یې د افغاني تاریخ عظمت ته صدمه رسولې وه، له دې کبله



افغانان د خپل تاریخي برم د راژوندي کولو په تکل وو، د هند شهنشاهي یې خپل موروثي ملك ګاڼه او سلطان ابراهیم لودی چې د ناوړې ادارې او ناپوهۍ له امله یې افغاني قوت تیت کړی و او نتیجه یې د پاني پت په جګړه کښې د بابر په مقابل کښې ولیده، نو ځکه دا مهال یو نابغه هوښیار پښتون فرید خان مشهور په "شېرشاه" په هند کښې د سوري له ټبره منځته راووت، ده په هند کښې افغاني تیت ځواکونه سره راټول او د افغاني برم نغری یې بیا تود کړ، د پښتنو د چارو تر سمون او د دوی تر یووالي وروسته یې پر همایون حمله وکړه، همایون مات شو او د هند د شاهنشاهۍ مقام بېرته د هغه د تاریخي خاوندانو لاس ته ورغی؛ د ماتې پر همدغه کال د (۹۴۷ هـ - ۱۵۴۰م پر رجب) همایون د سند عمر کوټ ته ورسېد او د شال او مستنګ او د افغانستان د جنوبي ګرمسیر او سیستان له لارې هرات او مشهد ته ولاړ، صفوي دربار ته یې پناه یووړه. خو میرزا کامران په کابل، میرزا عسکري او میرزا هندال په کندهار کښې پناه واخیسته، تر څه مودې وروسته میرزا کامران له کابله هڅه وکړه او په نارین کښې یې د هغه ځای له حکمران سلیمان میرزا سره جګړه وکړه، هغه یې په زړو د خان تابع کړ او تر هغه وروسته یې پر کندهار یرغل وکړ، کندهار یې د هندال میرزا له لاسه ویوست او میرزا عسکري ته یې وسپاره. هندال د (جلال آباد) جوی شاهي ته مقرر شو او په افغانستان کښې خطبه او سکه د کامران په نامه جاري شوه، ده تر هغې جګړې وروسته چې پر (۹۴۸ هـ - ۱۵۴۱ م) کال یې په اندراب کې له سلیمان میرزا سره وکړه ټول بدخشان یې له خپل هېواد سره یو ځای کړ، له بدخشانه تر کندهاره او له کابله د سند تر سینده یې حکم کاوه چې د حکومت مرکز یې کابل و.

خو همایون هم له صفوي درباره مرسته واخیسته او پر (۹۵۱ هـ -

۱۵۴۴م) کال له دېرشو زرو تنو سره د هرات له لارې د هلمند غاړې ته راورسېد او په بست کښې يې د کامران حکمرانان شاهم علی او میر خلج کلابند کړل او ډېر ژر يې کندهار تر شپږو میاشتو کلابندۍ وروسته پر (۹۵۲هـ) کال له میرزا عسکري څخه ونیو، له هغه ترون سره سم چې له صفوي پاچا سره يې کړی و، هغه ښار يې شهزاده مراد صفوي ته وسپاره، خو چې هغه کوچنی شاهزاده په کندهار کښې مړ شو، نو همايون هغه ښار بیرم خان ته وسپاره، صفوي لښکریان يې بېرته رخصت او په خپله يې کابل ته مخه وکړه، د شاه کامران حکمرانانو ورته تسلیم شول اود (۹۵۳ هـ - ۱۵۴۶م) کال په روژه کښې کابل هم د همايون لاس ته ورغی، کامران غزني ته وتښتېد او له هغه ځایه يې د سند ارغونیه حکمرانانو ته پناه يووړه.

همايون پر همدغه کال سلیمان میرزا د هندوکوش له شمالي ولایاتو څخه ماوراء النهر ته وشاړه او هغه ولایتونه يې هم د خان کړل، بیا همايون په ډېر تلوار له شمالي سیمو څخه راغی او د (۹۵۴ هـ - ۱۵۴۷ م) کال پر لومړۍ خور (ربیع الاول) يې کامران مات کړ چې هغه بدخشان ته وتښتېد او کابل د همايون لاس ته ورغی.

همدا چې کامران په بدخشان، تالقان او بغلان کښې پښې کلکې کړې نو همايون بې له ځنډه په تالقان کښې هغه تسلیمېدو ته اړ کړ او د کولاب ولایت ته يې واستاوه، میرزا ابراهیم يې په هغه ولایت کښې پرېښوو په خپله کابل ته راغی (۹۵۴هـ - ۱۵۴۷ م). خو کامران په کولاب کښې یوه ډله راټوله کړه او د پیرمحمد خان په مرسته يې بدخشان ونیو، څکه نو همايون دربیم ځل د هندوکوش شمالي سیمو ته ولاړ او د هغو سیمو تر نیولو وروسته يې د ختلان او کولاب سیمې میرزا کامران، د ظفر او تالقان کلا يې میرزا سلیمان او ابراهیم، کندز، اشکمش او نارین يې میرزا هندال ته ورکړل



او په خپله کابل ته راغی (د ۹۵۵ هـ - ۱۵۴۸ م کال د روژې دویمه ورځ).

د همايون څلورم تګ بلخ ته د پیر محمد خان په مقابل کښې و، خو ناکام را وګرځېد (۹۵٦ هـ - ۱۵۴۹م). پر (۹۵۷هـ) کال چې کامران بیا په شمالي ولایتو کښې لږ څه ځواکمن شو همايون پېنځم ځل هغې خوا ته ولاړ، خو د غوربند په جګړه کښې مات او کامران بیاکابل ونیو، خو همايون ډېر ژر لښکر راټول او په شتر ګرام کښې يې له کامران سره جګړه وکړه، کامران لغمان ته وتښتېد ، همايون کابل ونیو او میرزا عسکري يې چې په دغه جنګ کښې نیول شوی و، بدخشان او بلخ ته واستاوه، چې له هغه ځایه عربستان ته ولاړ او هلته مړ شو (۹٦۵ هـ). خو کامران بیا د پښتنو مهمندو او خلیل قبیلو لښکر جوړ کړ او د جلال اباد د چهار باغ کلا يې محاصره کړه، خو همايون هغه په یود جګړه کښې له خیبره پېښور ته وشاړه او بیا پر (۹۵۸هـ ۱۵۵۱م) کال په چپرهار کښې د دغو دوو وروڼو تر منځ جګړه پېښه شوه، میرزا هندال ووژل شو، کامران هند ته وتښتېد ، مګر سلطان آدم ککهر هغه ونیو او پر (۹٦۰ هـ ۱۵۵۲ م) کال يې همايون ته وسپاره همايون هغه په بې رحمۍ ړوند کړ.

دا مهال چې د بابر کهول په افغانستان کښې په خپلو منځو کښې سره اخته وو او همايون خپل وروڼه له منځه ایستل نو د افغانستان خاوره په وینو لړلې وه، په هند کښې شیر شاه سوري د مدنیت، نظم، ودانۍ او جهانداری ګټور بنسټونه کېښېښوول، خو دا مدنیت پال شهنشاه د (۹۵۲ هـ ۱۵۴۵م) کال د لومړۍ خور - ربیع الاول پر لسمه ورځ د کالنجر کلا په یوه ناوړه اور پېښه کښې شهید شو، کهاله يې ونه شو کړای د ده په څېر د افغاني پرتم نغری تود وساتي. افغاني مشرانو چې پوه لاربنود يې نه درلود نوسره خواره واره شول. (وګورئ ٦٧- شکل)

له دې خوا همایون ځان د وروڼو له جنجاله وزګار کړ، خپل ورور شهزاد محمد حکیم یې په کابل کښې حکمران پرېښوو او په خپله د (۹٦۲هـ) کال د صفرې پر میاشت د پېښور له لارې د هند نیولو په تکل وخوځېد، د (۹٦۲ هـ) کال د روژې په سر کښې د ډهلي پر تخت کښېناست او د (۹٦۳ هـ - ۱۵۵۵م) کال د لومړي خور (ربیع الاول) پر پېنځمه په ډهلي کښې مړ شو. (وګورئ ٦۸ نومره عکس).

د ده پر ځای یې دیارلس کلن زوی جلال الدین محمد اکبر د (۹٦۳هـ -۱۵۵۵م) کال د دویمې خور (ربیع الثانی) پر ۱۲ د جمعې پر ورځ په لاهور کښې پاچا شو، همدا چې د همایون د مړینې خبر کابل ته ورسېد، میرزا سلیمان او زوی یې محمد ابراهیم کابل ته راغلل او محمد حکیم یې د کابل په ښار کښې څلور میاشتې کلا بند کړ، خو چې د اکبر لښکر کابل ته راورسېد سلیمان پرته له دې چې کابل ښار ونیسي، بېرته بدخشان ته ولاړ (۹٦۳ هـ) او د کابل د چارو واګې د شهزاده محمد حکیم مور "مېرمن ماه چوچك" په لاس کښې ونیول. دغه مهال ټول چارواکي په شخړو اخته وو، چې پر (۹۷۰ هـ - ۱۵٦۲م) کال د اکبر له درباره منعم خان خانان کابل ته وګمارل شو، دی د جلال اباد په چهار باغ کښې د کابل له لښکر سره مخامخ شو ماته یې وکړه او هند ته وتښتېد، څنګه چې همایون کندهار د کلات غلجي شاه محمد ته سپارلی و، نو ځکه صفوي شاه طهماسپ یو لښکر د شاه اسمعیل صفوي د لمسي سلطان حسین میرزا په مشرۍ کندهار ته راوخوځاوه او پر (۹۴٦ هـ) کال یې د کندهار ښار له شاه محمد څخه ونیو.

همدارنګه پر (۹٦۷ هـ - ۱۵۵۹ م) کال میرزا سلیمان له بدخشانه د بلخ نیولو په تکل لښکر راویوست او د ګازران پر چینه یې د پیر محمد خان له لښکر سره جګړه وکړه، خو مات شو او زوی یې محمد ابراهیم د



دښمن په لاس ووژل شو.

تر هغه وروسته ابوالمعالي ترمذي د (۹۷۱ هـ - ۱۵٦۳م) کال په شاوخوا کښې د اکبر له درباره کابل ته راوتښتېد، د محمد حکیم خور یې وکړه او د شهزاده مور یې له ځینو نورو امیرانو سره ووژله، شهزاده او د کابل مظلومینو د بدخشان له حکمران میرزا سلیمان څخه مرسته وغوښته، میرزا د غوربند له پله سره د ابوالمعالي او د کابل له لښکر سره مخامخ شو، ابوالمعالی یې وواژه او د (۹۷۱ هـ - ۱۵٦۳ م کال د روژې پر ۱۷ یې کابل ونیو سلیمان کابل خپل زوم شهزاده محمد حکیم او میرزا سلطان امید علی ته پرېښوو، په خپله بدخشان ته ولاړ، محمد حکیم د اکبري دربار په ملاتړ له کابله د سند تر سینده او له کندها. د د هندوکوش تر سلسلې پورې خپلواك حکمران شو او د میرزا سلیمان نفوذ له منځه ولاړ (۹۷۲ هـ - ۱۵٦۴م) محمد حکیم چې په کابل کښې غښتلی شو، نو د خپل ماما فریدون په لمسانه یې له پېښوره پر لاهور یرغل وکړ، خو پر (۹۷۴ هـ ۱۵٦٦م) کال اکبر شاه له اګرې څخه لاهور ته راغی او محمد حکیم یې بېرته پېښور ته پر شا وشاړه.

میرزا سلیمان د محمد حکیم په غیاب کښې له بدخشانه راغی، کابل یې کلابند کړ، خو چې د محمد حکیم د راتګ خبر یې واورېد کابل یې پرېښوو، بدخشان ته ولاړ او له هغه ځایه د خپل لمسي شاهرخ د ابراهیم میرزا د زوی له لاسه چې په بدخشان، اندراب، تالقان او کندز کښې غښتلی شوی و، د کابل له لارې هند ته وتښتېد، او د بدخشان حکمراني د شاهرخ میرزا شوه (۹۸۳ هـ - ۱۵۷۵م) خو سلیمان له هنده د بیت الله د زیارت په پلمه ایران ته ولاړ او له هغه ځایه کندهار او کابل ته راغی پر (۹۸۷ هـ ۱۵۷۹ م) کال یې د محمد حکیم په مرسته پر بدخشان او خپل لمسي یرغل وکړ؛ شاهرخ ورسره روغه وکړه له تالقانه تر هندوکوشه یې سلیمان ته

پرېښوو او په خپله یې په بدخشان اکتفا وکړه (۹۸۸ هـ).

تردې روغې وروسته شهزاده محمد حکیم له کابله د پېښور او لاهور خوا ته لښکر ویوست او دا ښار یې کلابند کړ، خو د (۹۸۹هـ - ۱۵۸۱م) کال پر محرمه اکبر دی د لاهور له شاوخوا پر شا وشاړه او په خپل ورور پسې تر کابله ولاړ، دا د ده لومړی سفر و، خو کابل او زابلستان یې بېرته محمد حکیم ته وسپارل او د (۹۸۹ هـ کال د صفر پر ۱۴) له هغه ځایه هندوستان ته وګرځېد. خو په بدخشان کښې د میرزا سلیمان او شاهرخ اختلاف ورك نه شو، له دغه اختلافه د بلخ حکمران عبدالله اوزبك ګټه واخیسته دواړه یې کابل ته پر شا وشړل او بدخشان یې د هندوکوش تر لړۍ پورې له بلخ سره یو ځای کړ.

شهزاده محمد حکیم د (۹۹۳ هـ - ۱۵۸۵ م) کال د برات پر ۱۲ په کابل کښې مړ شو، اکبر پاچا د کابل ساتنې له پاره کنورمان سنګه له نوي ځواك سره راواستاوه او زین خان کوکه یې د دغه ځای حکمران وټاکه، کابل مستقیماً د اکبري هېواد برخه شوه (۹۹۵هـ - ۱۵۸۶م) د اکبر لښکرې د سوات او باجوړ په سیمو کښې د پښتنو له توریالیو قبیلو سره ونښتې او په خپله اکبر هم پر (۹۹۷ هـ -۱۵۸۸م) کال پېښور ته راغی دا کابل ته د ده دویم سفر و، په کابل کښې یې تر یوې میاشتې تېرېدو وروسته د کابل حکمراني کابلي قاسم خان ته ورکړه او په خپله پېښور ته وګرځېد، خو د روښاني حکمدارانو او د بایزید له زوی جلال الدین سره یې د افغانستان په جګړه کښې خلوېښت زره شاهي سپاره او د اکبري دربار مهم غړي راجه بیربل د پښتنو له لاسه ووژل شول، غزني د روښانیانو لاس ته ورغی چې تفصیل به یې د روښانیانو تر سرلیك لاندې راشي.

لکه دمخه چې مو ولیکل کندهار ښار د صفوي شهزادګانو په لاس



کښې و چې له اکبري هېواده بېل شوی و، ځکه نو پر (۹۹۹هـ - ۱۵۹۰م) کال خان خانان د بلوچستان له لارې پر کندهار حمله وکړه او کابلي شاه بیګ خان دا ښار بیا د اکبري هېواد یوه برخه کړه (۱۰۰۳هـ - ۱۵۹۴م). دی د اکبر د دورې تر پایه د کندهار حکمران و، پر (۱۰۱۱هـ - ۱۶۰۲م) کال یې د بدخشان شاهرخ زوی میرزا حسن چې پر کندهار یې یرغل کړی و، غورته پر شا وشاړه. پر (۱۰۱۴ هـ-۱۶۰۵م ) کال د هند شاهنشاه جلال الدین محمد اکبر له دنیا ولاړ. (وګورئ ٦٩ نومره عکس).

د جلال الدین اکبر له مړینې وروسته یې زوی نورالدین جهانګیر پر ځای کښېناست، دا وخت د هرات صفوي حکمران حسین شاملو د سیستان د حاکم په مرسته پر کندهار حمله وکړه، خوشاه بیګ خان په کلا کښې بندي کړ پښې یې ټینګې کړې جهانګیر هم له هنده ملاتړ لښکر را واستاوه او صفوي لښکر ناکام وتښتېد. د کندهار، سند او ملتان حکمراني د جهانګیر له درباره غازي خان ته ورکړ شوه (۱۰۱۴هـ - ۱۶۰۵م).

جهانګیر پر (۱۰۱۵ هـ۱۶۰٦م) کال کابل ته لاړ په دغه ښار کښې یې شاه بیګ خان د افغانستان د شمالي سیمو حکمران وټاکه او تر پېنځو کالو وروسته پر (۱۰۲۰هـ - ۱٦۱۱م) کال چې روښاني احداد پر کابل یرغل وکړ، نو جهانګیر د شاه بیګ خان پر ځای قلیچ خان د کابل په حکمرانۍ وګماره (له اکبر او جهانګیر سره د روښانیانو د جګړو تفصیل دې د روښانیانو په فصل کښې ولوستل شي).

کندهار چې تل د صفوي او بابري پاچهانو د جګړې ډګر و، اوس نو د جهانګیر لاس ته ورغلی و، خو پر (۱۰۳۱هـ - ۱۶۲۱م) کال بیا شاه عباس صفوي ونیو، سره له دې چې جهانګیر پر (۱۰۳۵هـ ۱۶۲۵م) کال کابل ته خپل دویم سفر وکړ، خو برې یې ونه موند چې کندهار ته لښکر وباسي، ځکه

بې خواجه ابوالحسن د کابل او بنګښ له سیمو د سند تر سینده حکمران وټاکه او په خپله هند ته ولاړ د (۱۰۳۷هـ - ۱۶۲۷م) کال د صفر پر ۲۸ د یکشنبې پر ورځ په لاهور کښې مړ شو (۷۰ عکس) د ده پر ځای یې زوی شهزاده خرم د هند پر تخت کښېناست، چې په شهاب الدین محمد شاه جهان مشهور شو. د بایزید روښان د کهاله جنګونه چې په تیرا، پېښور، کابل، غزني او بنګښ کښې د همایون او اکبر له مهاله پیل شوي وو، د شاهجهان د پاچاهۍ تر مهاله ونه دریدل، ځکه نو د ډهلي د دربار حکمرانان د افغانستان په سیمو کښې له سختو مقابلو سره مخامخ وو (شرح به یې د روښانیانو تر سرلیك لاندې راشي) جهانګیر چې له دنیا ولاړ د افغانستان حکمران ظفر خان له روښاني احداد سره په جګړه اخته و، دا مهال د بلخ حکمدار نذر محمد خان فرصت غنیمت وګڼه او د بامیان د ضحاك پر کلا یې یرغل وکړ د افغانستا ن د شمالي ولایاتو د ټولو سیمو تر نیولو وروسته تر هندوکوش راتېر شو او کابل یې په خونړیو جګړو درې میاشتې کلا بند کړ، شاهجهان خواجه ابولحسن او مومند لښکر خان له ۱۵ زرو سپرو سره او سپه سالار مهابت خان له شلو زرو سپرو سره افغانستان ته راواستاوه (د ۱۰۳۷ هـ - ۱۶۲۷م) کال د ذیعقدې میاشت) نذر محمد د غور له لارې بلخ ته پرشا شو او کابل د لښکر خان لاس ته ورغی (د ۱۰۳۸هـ -۱۶۲۸م کال د محرمې میاشت) د دغه کال په پای کښې د شیخ رکن الدین افغان زوی کمال الدین د اټك له غاړو بیاتر کابل پورې پښتانه قبایل له ځان سره یو لاس کړل او د ډهلي حکومت پر خلاف پورته شو، پېښور یې کلا بند کړ، خو د کابل حکمران اسمعیل خان پورته شوی خلك سره تیت کړل او پېښور یې وساته (د ۱۰۳۸ هـ - ۱۶۲۸ م کال د ذیحجې میاشت).

په اکبري عصر کښې حسن خان ترین د اوسني بلوچستان د پښین



د سیمو له غټو مشرانو څخه و، چې زوی یې شېرخان ترین د صفوي او د ډهلي د تیموري حکومتو تر منځ خپلواك اوسېد، پر (۱۰۴۱هـ - ۱۶۳۱م) کال یې د سیوستان د نیولو هڅه هم وکړه دا مهال د کندهار صفوي حکمران علي مردان پر پښین یرغل وکړ او شېرخان د دوکې او چیټالې کلا وته پناه یوړه، خو شاهجهان د (۱۰۴۷ هـ - ۱۶۳۷ م) کال پر منځ د کندهار خواته لښکر راواستاوه، صفوي حکمران علیمردان خان تسلیم او کندهار یې د شاهجهان لښکر ته وسپاره، د کندهار محلي مشران ملك مغدود او کامران (په همدغه کتاب کښې ـــ د ابدالیانو شرح وګورئ) د شاهجهان له درباره رسماً د کندهار حکمداران وپېژندل شول او د شاهجهان لښکر د هلمند تر غاړو، زمینداور، بست او ګرشك پورې سیمې ونیولې (د ۱۰۴۸هـ - ۱۶۳۸م کال دریمه خور - جمادی الاولی) او د (۱۰۴۹هـ) پر محرمه شاهجهان کابل ته خپل لومړی سفر وکړ او د یوسفزیو غورځنګ د مخنیوي له پاره یې چې په نوښار او پېښور کښې یې د شاهجهان غټ حکمرانان وژلي وو، علي مردان خان وګماره (۱۰۵۰هـ) او سعید خان یې په کابل او قلیچ خان یې په کندهار کښې مقرر کړل نیم افغانستان یې له هندوکوشه تر کندهاره د ډهلي تیموري دولت برخه کړه، پښتانه ملك اودل او ملك حمزه چې په هلمند او سیستان کښې یې خپلواکي ساتله د (۱۰۴۹هـ) کال پر برات یې د هلمند پر غاړه د شاهجهان له لښکر سره جګړه وکړه، خو مات شول او له منځه ولاړل، شاهجهان پر کندهار باندې د صفوي حملو د مخنیوي له پاره شهزاده د اراشکوه له پنځوسو زرو سپرو سره وګماره او بیا ځنګه چې د کندهار صفوي قواو او د هندوکوش د شمالي ولایاتو حکمران نذر محمد خان کابل ګواښه، نو ځکه شاهجهان د (۱۰۵۵ هـ - ۱۶۴۵ م) کال پر ذیحجه شهزاده مراد بخش له پنځوسو زرو سپرو، لسو زرو پلیو او درنې توپخانې سره راوخوځول، دی

په خپله هم د (۱۰۵٦ هـ) کال پر دویمه خور کابل ته راورسېد او بې ځنډه یې د پروان او هندوکوش د درو له لارې پر شمالي ولایاتو یرغل وکړ، ټول بدخشان یې تر بلخ پورې ونیو او د ډهلي د تیموري هېواد وبش یې تر آمو سینده ورساوه، خواص خان یې د کندهار په صوبه دارۍ وټاکه، خواجه عبدالرحمن یې په بدخشان، سعادت خان یې په ترمذ، اسدالله یې په زمینداور او ذوالفقار خان یې په کابل کښې وګمارل په خپله پېښور او لاهور ته ولاړ، خو د نذر محمد خان زوی عبدالعزیز خان د توران والی پر (۱۰۵۷هـ ۱٦۴۷م) کال بیا پر بلخ یرغل وکړ د ده حملې د هندوکوش تر کلاو پورې ورسېدلې، ځکه نو شاه جهان کابل ته دریم سفر وکړ، شهزاده اورنګ زیب له خپلو لښکرو سره د هندوکوش په شمالي سیمو کښې د اوزبکو د حملو د مخنیوي له پاره تر بلخ، اندخود او میمنې پورې پر مخ ولاړ، څنګه چې د هندوکوش د شمال ساتنه سخته وه، ځکه نو شاهجهان بلخ نذر محمد خان ته وسپاره او په خپله هند ته ولاړ (د ۱۰۵۷هـ - ۱٦۴۷م کال د رجب میاشت).

صفویانو کندهار هېرنه کړ او پر (۱۰۵۸ هـ) کال یې لومړی د کندهار ښار د غوښتلو په اړه د دوستۍ له لارې یو لیك شاهجهان ته واستاوه او ترهغه وروسته په خپله شاه عباس ثاني له لوی لښکر راو پنځو بالیمز توپو سره له اصفهانه را ووت پر کندهار یې یرغل وکړ او دا ښار یې په ژمي کښې د پنځوسو زرو سپرو په مرسته کلابند کړ، د ډهلي له درباره شهزاده اورنګزیب له اویا زریز لښکر سره له لاهور او کابل څخه کندهار ته متوجه شو، خو صفوي پاچا تر خونړیو جګړو وروسته کندهار ونیو او محراب خان یې له لسو زرو سپرو سره هلته پرېښوو، په خپله دې هرات ته ولاړ، شهزاده اورنګزیب د (۱۰۵۹هـ - ۱٦۴۹م) کال پر درېیمه خور (جمادی الاولی)، محراب په کندهار کښې کلابند کړ او په خپله شاهجهان هم څلورم



ځل کابل ته لاړ خو دا چې څه کار یې و نه کړای شو نو اورنګزېب ته یې د کندهار د څلور میاشتنۍ کلابندۍ د پرېښوو او لاهور ته د تګ امر وکړ. دوه کاله وروسته شاه جهان کابل ته پېنځم سفر وکړ او شهزاده اورنګ زیب یې له پنځوسو زرو سپرو او پلیو، شلو کلانړوونکیو توپو، شلو منځنیو توپو او لسو مستوجنګي پیلانو سره کندهار ته واستاوه، سعد الله خان یې هم له نور لښکر سره د شهزاده د ملاتړ په توګه وګماره، دغه پیاوړی ځواك چې کندهار یې بیا کلابند کړی و، تر دوو میاشتو پورې یې هیڅ ونه شو کړای او بې نتیجې کابل او لاهور ته ولاړ (۱۰٦۱هـ - ۱٦۵۰م د روژې میاشت) بل کال بیا شاه جهان یو لوی لښکر د شهزاده دارا شکوه په مشرۍ د کندهار درېیم وار کلا بندۍ له پاره راواستاوه چې په دغه لښکر کې یو سل او پنځوس زره سپاره، څلورپنځوس غټ او کوچني توپونه، یو سل اویا جنګي پیلان او د توپ دېرش زره ګولۍ وې. د کندهار کروړ حکمران محراب خان بیا ځان ټینګ او د کندهار کلا یې پېنځه میاشتې وساتله شاه جهان بې له دې چې کندهار ونیسي دریم وار هم ناکام هند ته ولاړ، په دې توګه یوازې کابل او غزني د شاه جهان په لاس کې پاتې شول، د هغو د ساتنې له پاره یې بهادر خان افغان وګمارد، کندهار، سیستان او هرات د صفویانو په لاس کښې وو، شمالي ولایات له میمنې او اندخود څخه نیولې تر بلخ، تخارستان او هندوکوش پورې د توران په حکمدارانو پورې چې د نذر محمد خان او لاده وه اړه درلوده. شاهجهان چې پر (۱۰٦۸هـ - ۱٦۵۷م) کال د خپل زوي اورنګزیب له خوا بندي شو او پر ځای یې اورنګزیب د ډهلي پر تخت کېښناست، نو اورنګزېب مهابت خان د کابل حکمران، شمشېرخان د غزني حاکم او سعید خان د افغاني کوهستان او پېښور پوځدار وټاکه. (وګورئ ۷۱ او ۷۲ نومره عکسونه).

د عالمگیر عصر د افغانستان په تاریخ کښې له شوره ډکه دوره وه چې د هېواد سیمې له اټك څخه تر کابله د ډهلي دربار د لښکرو او افغانانو تر منځ د جګړو ډګرو.

لومړی د پېښور د شمال یوسفزیو د باکو، ملا چالاك او سلطان محمود ګدون په مشرۍ پر پکهلي یرغل وکړ، عالمگیر پر (۱۰۷۷هـ - ۱٦٦٦م) د اټك پوځدار کامل خان ته د هغوی مخنیوی وسپاره، خو (۱۰۷۹هـ ۱٦٦۸م) کال په شاوخوا کښې ایمل خان مومند (چې د ایمل شاه په نامه یې سکه وهله) په خیبر کښې د نومیالي پښتون او د پښتو نامتو شاعر "خوشحال خان ختك" په ملګرتیا د عالمگیر د قوا پر خلاف ډېرې جګړې وکړې) عالمگیر په خپله د دوی د مخنیوي له پاره درې کاله په حسن ابدال کښې کې پروت و شهزاده محمد اعظم په کابل کښې و، آغر خان له پښتنو سره خونړۍ جګړې وکړې، تر هغې چې عالمگیر د تهترې، دوآبه، نوښار، ګنداب او خاپښ تر پېنځو جګړو او تقریباً د داوړو خواو د یو لك تنو تر وژلو وروسته ونه شو کړای چې د افغانانو نهضت له منځه یوسي، نو له دې اوږدې جګړې څخه یې زړه تنګ شو ډهلي ته ولاړ (۱۰۸۱هـ) خو ایمل خان په لغمان کښې له آغرخان سره خورا لویه خونړۍ جګړه وکړه، پر (۱۱۰۲هـ= ۱٦۰۹م) کال آغر د افغانانو له خوا ووژل شو او د عالمگیر د دورې په پای کښې شهزاده محمد معظم بهادر شاه په کابل او پېښور کښې واکمن ؤ، چې پر (۱۱۱۴هـ- ۱۷۰۲م ) کال یې د افغاني قبایلو یو غټ مشر پردل خان چې له خیل لښکر سره لهٔ خوسته کابل ته راتلو، د کابل او پېښور د لارې د بندیدو او بلوا له وېرې ووژه.

عالمگیر چې پر (۱۱۱۸هـ ـ۱۷۰٦م) کال مړ شو معظم له کابله لاهور ته ولاړ او د پاچهۍ بیرغ یې پورته کړ، د ډهلي د بابري دورې په پای



کې ناصر د کابل او پېښور او باقر خان د غزني حکمرانان وو او کندهار تر پښین، مستنګ او ډېره جاتو پورې د هوتکي پاچاهانو په لاس کښې و، څو چې پر (۱۱۵۱ - ۱۷۳۸م) کال نادر افشار د بابر د پاچهۍ کمبله تر (۲۴۰) کالو وروسته له افغانستانه ټوله کړه. په افغانستان کښې د ډهلي د امپراتورۍ، د ایران د صفویانو او د ماوراء النهر د توراني پاچاهانو د درېو لویو څواکو د مخامخېدو او یو ځای کېدو نقطه وه، ځکه یې د پاچاهانو له مدنیت روزلو او صنعت او ادب پاللو څخه ګټه وانه خیسته. دوه نیمې پېړۍ له بهرنیو یرغلګرو سره د کورنیو آزادۍ غوښتونکیو په سختو جګړو وران شو په دې توګه پرته له جګړې وینې تویدنې او جاسوسۍ د بابري مدنیت له ودانیو کومه نخښه و نه لیدل شوه.

په افغانستان کښې د بهرنیانو د دغو دوو نیمو پېړیو د ورانیو منظره ډېره دردوونکې ده او هغه څه چې د چنګیز او تیمور تر چور او چپاو وروسته د هرات د تیموریانو دولت جوړ کړي او د مدنیت، صنعت او ادب آثار یې منځته راوړي وو هغه په دې موده کښې وران شول، خو همدا دوره د افغان ملت د خپلواکۍ غوښتلو او له وطن سره د مینې لرلو د حس خورا ښه ښکارندویه ده چې دوه نیمې پېړۍ د درویو مدهشو قوتو سره وجنګېد او پر دې قوتونه یې پرې نه ښوول چې د دوی پر هېواد په خوښۍ او آرامۍ واکمني وکړي.

دا مهال د ډهلي تیموري پاچاهانو په کابل او کندهار، صفوي پاچاهانو په هرات او سیستان او توراني پاچاهانو په بلخ او بدخشان کښې سکه وهله، خو افغاني قومونه چې له درېو خواو څخه تهدیدېدل ځکه نو په دوی کښې د مقاومت روح او دا تونومي ساتل تقویه کېدل، دا مهال پښتو ادبیات نضج او پوخوالي ته ورسېدل، د آزادۍ او خپلواکۍ غوښتلو لار

خوښوونکیو لکه پیر روښان، خوشحال خان او نورو په پښتو ژبه ډېر ارزښتمن آثار ولیکل، د همدې دورې یوه ځانګړتیا دا هم ده چې په پښتو ادبیاتو کښې د هند د پردیو بابري پاچاهانو د واکمنۍ په مقابل کښې یو راز سخته کرکه او تنفر پیدا شو.

په افغانستان کښې د ډهلي د تیموریانو ملکي او لښکري تشکیلات د هند د لودیانو او سوریانو غوندې وو، د مستر سمت او دولافوز په وینا شېر شاهي مدني بنستونه یې ارت کړل، افغانستان یې پر څلورو صوبو وېشلی وو: چې له هغې جملې څخه کابل صوبې د بابر د شاهنشاهۍ له پیله بیا د نادرشاه افشار تر فتح پورې په ډهلي اړه درلوده خو دویمه صوبه کندهار کله په ډهلي او کله د ایران په صفویه اړه درلودلي وه، دریېمه صوبه بدخشان د ډهلي د تیموریانو، هندیانو او د هغو د پلرنیو خپلوانو تر منځ د شخړو ځای ؤ، څلورمه صوبه بلخ هم کله د ډهلي په بابري کهاله اړه درلوده او کله یې د توران په پاچاهانو پورې. د کابل صوبې د بابر په وخت کښې د ده په وینا شل محله درلوده او عایدات یې شل لکه شاهرخۍ وې چې له یو کروړ اته ویشت لکه دام سره برابرې وې، همدا صوبه د ابو الفضل په وینا له پامیر، ګلګت، سوات، بونېر او باجوړ څخه تر کندهار او زابلستان پورې غځېدلې وه او په اکبري عصر کښې پر دوه سر کاره (کابل او کندهار) وېشل شوې وه، د کابل سرکار (۲۲) محله وو، (۴٦۵ . ۸۰۵۰۷) دام نغدی، (۱۷۸ ، ۱۳۷) دام مالیه، (۲۸،۱۸۷) سپاره، (۷۰۰ و ۲۱۲) پلي او په خپله کابل ښار (۱۲،۷۵۸،۴۱۰) دام نغد عایدات درلوده.

خو د کندهار سرکار (۲۴) محله، (۸۱۱۴) تومان (د کلیو مجموعه)، (۲۹،٦۰۰) نغد دیناره، (۴۵،۷۷۵) پسونه (۴۵) بلوڅي آسان او (۳،۷۵۲،۹۷۷) خرواره غله، (۴۲۰) منه وریجې، دوه خرواره اوړه، (۲۰)



منه غوړي، (۱۳،۸۷۵) سپاره او (۲۷،۲٦۰) پلي، دولتي عایدات وو.

لاهوري عبدالحمید د شاه جهان په وخت د بابر د اولادې د هېواد له ۲۲ صوبو څخه د افغانستان څلور صوبې او د هغوی دولتي عایدات داسې شمېرلي دي: کابل شپاړس کروړه دام، کندهار شپږ کروړه دام، بلخ اته کروړ دام، بدخشان څلور کروړ دام (هر پېنځه دامه له "۲" آنوسره برابر دي).

د ابو الفضل په وینا هره صوبه پر څو سرکارو، ښارو، کلاو او تانو وېشل کېده، صوبه دار ملکي او نظامي آمر و، چې تر دوو لسو کروړو دامه پورې یې تنخا رسېده. د صوبه دار تر امر لاندې یو کومکي (موقتي نظامي آمر)، تعینات (دایمي نظامي آمر)، پوځدار (د لوی نظامي افسر مرستیال) تانه دار او کوتوال په مهمو مرکزو کښې د هېواد د ښارو، لارو او نظامي کلاو عامه امنیت اداره کاوه او کله هم یوه صوبه د تیول (اقطاع) په توګه یوه امیر او شهزاده ته ورکول کېده چې هغه ته به یې تیولد اروایه، په هره صوبه او ښار کښې مامور محاسبه او د مالي چارو دیوان و، د شرعي محکمو او عدلیه چارې هم قاضي اداره کولې، چې د لښکر له پاره (د اردو عدالت) یو ځانګړی عسکر قاضي موجود و، بخشي یو مامور و چې د لښکر تنخا او لوازم یې تهیه کول واقعه نویس د استخبار او جاسوسي چارې اداره کولې، چې په هر ځای کښې یې د (هرکاره) په نامه جاسوسان درلودل، کله هم د ډهلي د بابر د اولادې په دربار کښې د ناظم او نظامت په نامه هم فوق العاده تنظیمه رییسان په موقتې توګه د ځینو مهمو چارو له پاره ټاکل کېدل، د دغو ټولو دولتي کار کوونکیو رتبې او تنخاوې دا ډول وې: لومړی لس زرې (ده هزارې) چې (۷۰۰) اسان، دوه سوه پیلان، دوه سوه بار وړونکې څاروي او (۳۲۰) ګاډۍ یې تر امر لاندې وې پر میاشت یې تر (٦۰) زرو روپیو تنخا اخیستله.

دا رتبې له لس زري (ده هزاري) څخه تر لس باشي (ده باشی) پورې (٦٦) رتبو ته رسېدلې او هر منصب له کښتنۍ خوا له پينځه زري څخه د تنخاه له حیثه درې مرتبې درلودلې مثلاً لومړی پينځه زري او دویم دریم پينځه زري.

د ډهلي د تیموري دورې له پاتیو ودانیو څخه په افغانستان کښې:

یو د کندهار د اوسني ښــــار لوېدیځ خوا ته د سرپوزې پـــه غره کښې د چهل زینې دالان دی چې د هغه د لیکنې له مخې د هغه ځای ودانۍ پر (۹۳۰هـ) کال میرزا کامران، میرزاعسکري او میرزا هندال، پیل کړې او پر (۹۵۳هـ) کال یې پای ته رسولې تر هغو ورسته یوه اکبري منصبدار میر معصوم نومي پر (۱۰۰۴هـ کال) هلته د ماهرو ډبرو توږوونکیو په واسطه په څلورو کالو کښې د همایون او اکبر په نامه یو ډبرلیك کیندلی دی. بله لیکنه د کندهاري بابا حسن ابدال د خوریې سید حسن زنجیر پا د مزار ډبرلیك دی چې همدغه میر معصوم پر (۱۰۰۱هـ) کال کیندلی دی. همدا راز د کندهار شمال خوا ته څلوېښت میله لرې په خاکریز کښې د سید عبد الجلیل (مشهور په شاه مقصود) د سلطان خلیل زوی او د سلطان محمد لمسی (۸۵۴ مړ) د مزار ودانۍ او ډبرلیك دی چې پر (۱۰۵۵هـ) کال د سید معصوم د زوی میر بزرګ له خوا ودانه شوې او کیندل شوې ده:

د هاغه وخت بل ډبرلیك د سید محمد مشهور په سید شیر قلندر د امیر انصاري د زوي د مزار ډبرلیك دی چې د تاریخ معصومي په وینا د ۹۳۳هـ کال پر محرمه وفات شوي او پر (۱۰۰۵) کال نوموړي میر معصوم د کندهار د پنجوایي د سپېروان په غره کښې کیندلې او ودانۍ یې پرې جوړه کړې ده بل د کندهار چارباغ دی چې د ابو الفضل په وینا د بابر له ودانیو څخه و.



خو په کابل کښې د شهر آراء باغ، چارباغ، د جلو خانې باغ اور ته باغ، صورت باغ، مهتاب باغ او د آهو خانې باغ د عبدالمجید په وینا د بابر د ودانیو له پاتې شونیو څخه دي چې جهانګیر یې په خپل تزک کښې هم ستاینه کړې ده. همدا شان د پغمان باغ چې میرزا الغ بیګ او بابر جوړ کړی) او د بابر تخت چې په خپله د ده په امر پر ۹۱۴ هـ کال جوړ شوي او پر (۱۰۱٦هـ) کال جهانګیر د کابل جنوبي خوا ته بشپړ کړ، همدا راز د کابل چار چته (مشهور بازار چې علیمردان خان جوړ کړی و) د شور بازار مسجد (چې اورنګزیب ودان کړی و) علیمردان باغ، صفا باغ (د جلال آباد په بهسود کښې چې بابر جوړ کړی دی)، وفا باغ چې پر (۹۱۴هـ بابر ودان کړ) شهباز کلا (چې د ابو الفضل په وینا پر ۹۹۸هـ کال اکبر جوړه کړې وه)، استالف باغ، د بابر د مزار مرمرین مسجد او د مېملې باغ (کابل ختیزې خوا ته په ۱۰۵٦هـ کال ودان شوی) د شاه جهان له ودانیو څخه دي.

د کابل حصار چې له پخوا موجود و د جهانګیري تزك په وینا میرزا کامران ترمیم کړی او د بالاحصار ودانۍ د (۱۰۱۵هـ) کال پر سفر کښې د جهانګیر په امر ودانې شوې، خو د کندهار ښار حصار چې پر (۱۱۵۱هـ) کال نادرشاه وران کړ له پخوانۍ زماني موجود ؤ، د عبدالمجید په وینا شاجهان هغه د اته لکو روپیو په لګښت ترمیم کړ د کابل شمالي خوا ته د پروان کلا (اوسنی جبل السراج) هم پر (۹۵۵هـ) کال همایون ودانه کړه چې د ده د لښکر مرکز و.

د ډهلي د تیموري پاچهانو په وختو کښې کابل، کندهار، بلخ او بدخشان دار الضرب هم وو او د ابو الفضل په وینا اکبر په عصر کښې کابل یو له هغو څلورو صوبو څخه و، چې د اکبر د طلا سکه په کښې وهل کېده، په څلورو وارو صوبو کښې د ډهلي د تیموري یا د صفوي پاچاهانو

له خوا د سپینو زرو او مسو سکې وهل کېدې، د جهانګیر پر مهال په کندهار کښې مسي سکې وهل شوې دي چې د لمریز کال د میاشتو په ډول شکل لري، همدا شان جهانګیر د خپلې پاچاهۍ پر ۱۴م کال په کندهار کښې د سپینو زرو پر روپۍ سکه ووهله چې دا بیت پرې لیکل شوی و: ((ز جهانګیر بن اکبر شاه سکۀ قندهار شد دلخواه.))

په افغانستان کښې د ډهلي د تیموریانو د وختونو علمي او ادبي نومیالي دا دي:

ابتري بدخشی (شاعر)، ابراهیم بتنی (د مخزن افغان بشپړوونکی)، ملك ابو الفتح سیستانی (سردار شاعر)، آتشی قندهاري (شاعر پر ۹۷۳هـ مړ دی)، شیخ احمد مجدد کابلي، (د سرهند عارف ۹۷۱هـ ۱۰۳۴هـ)، ارزاني (پښتو شاعر د ۹۵۰هـ شاوخوا)، اشرف خان هجري (د خوشال خان ختك زوي پښتو شاعر)، میر اعجاز هروي (شاعر او نثر لیکونکی)، سلیم لودي افغان (شاعر)، افضل خان ختك (پر ۱۱۸۳ هـ مړ او د پښتو د تاریخ مرصع مؤلف)، ملا الف هوتك (د پښتو بحر الایمان ناظم - ۱۰۱۹هـ)، امام الدین متي زی (۱۰۲۰ - ۱۰۶۸هـ) د تاریخ افغان مؤلف، امانی کابلی (شاعر)، امانی افغان (شاعر - ۱۰۷۷هـ کال پر شاوخوا)، امیر (پښتو شاعر- ۱۰۲۳ هـ)، انوري هروي (شاعر)، بابا بلخي (شاعر- د ۹۵۰ شاوخوا)، بابو جان (پښتو شاعر- د ۱۰۵۰هـ شاوخوا)، خواجه باقی الله کابلي (عارف او د سلسله الاحرار مؤلف ۹۷۱- ۱۰۱۲هـ)، شیخ بایزید افغان (د عالمګیر د وختو نامتو زاهد) بایزید روښان (پښتون مشر او لیکونکی)، بای خان (پښتو شاعر- ۱۱۰۰هـ پرشاوخوا)، شیخ بستان بړیخ (پښتون شاعر او عارف چې پر ۱۰۰۲هـ مړ دی)، بنایي کابلي (د همایون د وختو شاعر)، بوالعجب کابلي (د اکبر د دورې شاعر)، جهانګیر هروي (د منظر الآثار ناظم چې پر ۹۴۶هـ



مړ دی)، غزنوي (شاعر پر۹۷۳ هـ کال په پېښور مړ کښې دی)، تادیب هروی (شاعر ۱۰۸۰هـ)، تاش محمد کندوزی د حجه الاورنګ شاهیه مؤلف- ۱۱۰۰هـ)، ترابي بلخي (شاعر)، خوشال خان ختك (د پښتو نومیالی شاعر او جنګیالی مشر)، سلطان قندهاری، (د اکبر د وختو شاعر)، ثابت بدخشي (شاعر)، ثابت بړیخ (پښتون عارف)، ثاني خان هروي (د اکبري دورې شاعر)، حبیبي کابلي (د یوسف او زلیخا ناظم -۱۰۹۰هـ)، قاضي نظام بدخشي (د بابر د دورې قاضي خان)، حسام الدین بدخشي (د بابر او همایون د دورې قاضي)، حلیمه (پښتنه شاعره- د خوشال خان ختك لور)، ملك حمزه سیستاني (شاعر ۱۰۸۳هـ)، حمید ماشوخېل مومند (پښتو شاعر ۱۱۰۰هـ)، حمید ګل (پښتو شاعر)، خانګل خلیل (پښتو شاعر)، خانی کابلي (شاعر ۹۸۵هـ)، خرد بیګی کابلي (شاعر چې پر ۹۷۵هـ مړ دی)، خواند میر (د حبیب السیر، خلاصة الاخبار، دستور الوزراء او نورو لیکونکی پر ۹۴۱هـ مړ دی)، خواجه زاده کابلی (د اکبر د عصر شاعر)، خواجه حسن هروی (شاعر- چې پر ۹۷۹هـ مړ دی)، خواجه محمد بنګښ (د عالمګیري عصر پښتو شاعر)، داعی کشمي (شاعر - پر ۹۹۴ کال مړ دی)، درویزه ننګرهاری (پښتو لیکونکی او نامتو مبلغ)، دولت لوانی (د پښتو شاعر- د ۱۰۵۸ هـ پر شاوخوا)، رابعه کندهاری (د بابر د عصر شاعره)، دوست محمد کاکړ (شاعر او د پښتو غرغښت نامې کتاب مؤلف ۹۲۹هـ)، دبیري کابلي (د شاهجان د وختو شاعر)، ربیع بلخی (شاعر ۱۰۸۰هـ)، رحمان بابا (د پښتو نومیالی شاعر او نامتو عارف)، رونقی بدخشی (شاعر پر ۹۶۴هـ مړ دی)، زایر بدخشی (شاعر پر ۱۰۶۷هـ مړ دی)، ساغری هروي (شاعر د ۹۵۰هـ پر شاوخوا)، سروري کابلی (د عالمګیر د عصر شاعر)، زرغونه کندهاری (د پښتو شاعره چې پر ۹۰۳هـ کال یې د سعدي بوستان په پښتو

نظم کړ)، سکندر خان (د پښتو شاعر او د خوشال ختك زوی)، سلطان کندهاری (د اکبر د عصر شاعر)، سلطان علی او بهی هروی شاعر (۹۵۰ هـ شا و خوا)، سلطان محمد خندان (د کابل خطاط او شاعر -۱۱۰۰هـ کال په شا و خوا)، سوسني کابلي شاعر او جهانګیر د عصر امیر)، سید احمد ختك (د اکبری عصر له مؤلفانو څخه و)، سیف خان خوستی قطغنی (په موسیقی د راګ پن مؤلف او د شاهجهان د وختو افسر چې په ۱۰۹۵ هـ مړ دی)، ملا شاه بدخشي (شاعر او تفسیر لیکونکی په ۱۰۷۰ هـ کښې مړ دی)، شجاع سیستانی (شاعر)، شوخی هروی (شاعر)، شیدای بلخي (د بابر د حضور له پوهانو څخه و)، امیر شیر علي خان لودي (د مرآة الخیال د تذکرې مؤلف ۱۱۰۲ هـ)، شیر محمد هوتك کندهاری (۱۰۹۲ - ۱۱۷۵ هـ د اسرار العارفین ناظم په پښتو)، شیر محمد ننګرهاری (د پښتو شاعر ۱۱۰۰ هـ)، صادق کندهاری (د همایون د عصر شاعر) صبوحی بدخشی (شاعر- چې په ۹۷۳ مړ دی)، صبوحی کابلی (د اکبر د دربار شاعر) صدر خان ختك (د پښتو شاعر او د خوشال ختك زوی)، حاجي عارف کندهاری (د بیرم خان د دربار مشهور مؤرخ، صوفي او شاعر او په ۹۸٦ هـ د مطلع و مقطع لیکونکی)، حاجي عارف کابلي (شاعر ۱۰۰۰ هـ) ملا عالم ګلبهاري (د اکبر د وختو شاعر او د صلصلة الجرس ناظم او د لالة العقل او بحرالوجود او عوالم الاثار او فواتح الولایه لیکونکی چې پر ۹۹۲ مړ دی)، عباس سروانی (د تاریخ شیر شاهی مؤلف)، عبدالسلام پشاوری (پښتو لیکونکی او د درویزه لمسی)، عبدالرحمن بختیار (۹۰۰ د شاوخوا عارف)، عبدالعزیز هروی (د بابر دوختو عالم)، عبدالرحمن رمزی بدخشی (دردالشعیه او اِثبات نبوت مؤلف)، میر عبدالله د میر نعمان زوی (شاعر او د نقشبند په له مشایخو څخه و)، عبدالعلي تالقانی ( د انشا لیکونکی ۱۰٦۰ هـ )، عبدالله نیازی(دا کبری دوري عارف چې پر ۱۰۰۰ مړ



دی او د شیخ سلیم چشتی او سید محمد جونپوری شاګرد)، عبدالله (د پښتو شاعر د ۱۰۰۰ هـ پر شاوخوا)، د هزاره ضلع عبدالرحمن مانکراوی، (په اکبری عصر کښې د حسینه مؤلف)، عبدالرحیمَ مانکر اوی (دا کبر په عصر کښې دردالبدع مولف)، عبدالوهاب مانکراوی (دا کبر په عصر کښې د کنزالدقایق ناظم)، عبدالرسول د سید علي زوی (پر ۱۱۱۸ هـ کال د مجمع اللغات والاسمامولف)، عبدالقادر ختك (د پښتو شاعر او د خوشال خان زوی)، عبدالصمد بدخشی (د ۹۵۰ هـ د شاوخوا شاعر)، عبدالرحیم هوتك کندهاری (د پښتو شاعر)، عبدالرشید د سلطان حسین زوی (د ۱۱۰۰ هـ پر شاوخوا د رشید البیان ناظم)، عبدالرزاق کابلی (د شاهجهان د عصر عالم چې پر شرح تجرید محاکمات یې حواشي لیکلې)، عزت هروی (شاعر او د عالمګیر د دربار لښکري افسر چې پر ۱۰۸۰ هـ مړ دی)، عشقی کابلی (میر بخشی او د اکبری عصر شاعر چې پر ۹۹۰ هـ مړ دی)، علي خان (د پښتو شاعر)، سید علي کندوزی د سید قنبر زوی مشهور په پیر بابا (نامتو عارف)، عمر خویشکی (د اکبری عصر له پوهانو او د پیر روښان له پیژوانو څخه و)، عیسی پیښوری د آخوند پنجو شاګرد (د اهل بیت د فضلیت د کتاب لیکونکی)، عیسی مشوانی (د پښتو شاعر - ۹۰۰ هـ)، عیسی آخوند زاده کاکړ (د پښتو شاعر د ۱۰۵۰ هـ پر شاوخوا)، میر کلان غزنوی (د اکبر عصر شاعر او امیر)، غلام محمد د شیر خان ګیګیاني زوی (په پښتو د معراج نامې او سیف الملوك ناظم ۱۱۱۵ هـ)، غیوری کابلي (شاعر او د شهزاده محمد حکیم نوکر)، فخری هروی (شاعر او د همایون د عصر مؤلف)، فصیح هروی (شاعر)، فصیحه هروی (شاعره)، فیاض پیښوری (د پښتو شاعر د بهرام او ګل ندامې د کیسې ناظم)، فیاض هروي (شاعر ۱۱۰۰هـ) فیروزه کابلی (شاعر او د همایون له دربارپانو څخه)، قاسم

کندهاری (د اکبر د عصر له پوهانو څخه)، شیخ قاسم سلیماني پېښوري (د اکبر د عصر عارف او د تذکرة الاولیاء افغان لیکونکی)، قاسم کاهي کابلي (د اکبر د دربار شاعر)، قاسم شینواری (په پښتو کښې د فواید شریعت لیکونکی پر ۹۷۶ هـ)، قلندر (د پښتو شاعر)، کاظم خان شیدا (د خوشال خان ختك د کورنۍ پښتو شاعر)، کاشفي بدخشي (شاعر - ۱۰۴۲ هـ)، میرزا کامل د احمد بخشي زوی (د بحر الزمان لیکونکی چې پر ۱۱۳۱ کال مړ دی)، ګدایي کابلي (د همایون د عصر شاعر)، لایق بلخي (د توران د پاچا امام قلي خان د دربار شاعر)، شیخ متی کاسي (د اکبر د وختو عارف چې پر ۱۰۱۰ هـ مړ دی)، میر محمد زاهد هروي د قاضي اسلم زوی (د شاهجهان وقایع نویس ۱۰۴۶، د خپل وخت عالم د شرح مواقف د حاشیې، د علامه دواني د شرح تهذیب د حاشیې، د قطب الدین رازي د تصور او تصدیق د حاشیې او د شرح الهیا کل وزواید ثلاثه د حاشیې لیکونکی)، قاضي محمد اسلم هروي (د جهانګیر په عصر کښې د کابل او هند قاضي او د شاهجهان امام و، چې پر ۱۰۶۱ هـ کال په لاهور کښې مړ دی)، شیخ محمد امین بدخشي (عارف او د قطرات او د ضروریه د رسالې لیکونکی چې پر ۱۰۹۸ هـ کال په کشمیر کښې مړ دی)، محمد یوسف کابلي د شاه بیګخان زوی (وژلی شوی شاعر - ۹۸۰ هـ)، شیخ محمد صالح الکوزي کندهاري (د پښتو شاعر - اود ۱۰۱۴ هـ د شاوخوا عالم)، محمد صالح فارغي (د همایون د عصر شاعر)، محمد تقي تالقاني غافل (شاعر چې پر ۱۰۵۰ هـ مړ دی)، ملا محمد هروي (د اکبري عصر عالم - ۹۸۲ هـ)، محمد هاشم کندهاري (د بیرم خان د دربار شاعر)، محمد فاضل بدخشي (د جهانګیر په عصر کښې د عدالت اردو قاضي او د خپل وخت عالم)، محمد امین فوشنجي د قنبر علي زوی (د شیباني د دربار امیر او شاعر)، محمد



طاهر انصاري هروي (د ۱۰۰۰ هـ د شاوخوا شاعر)، محمد د ابراهیم زوی (د سلطان ابراهیم لودي د عصر مورخ او د تاریخ ابراهیم شاهي لیکونکی)، علي محمد مخلص روښاني (۹۵۰ هـ د پښتو شاعر) ملامست زمند (د ۱۰۵۰ کال په شاوخوا کښې په پښتو د سلوك الغزات لیکونکي)، مستفید جګدلکی (د ۱۰۰۰ هـ په شاوخوا کښې د بخارا د پاچا عبدالعزیز خان د دربار شاعر)، مسعود د عبدالله پېښوري زوی (د پښتو شاعر اود ۱۰۰۰ هـ شاوخوا کښې د آدم خان او درخانۍ د نکل ناظم)، مصطفی خان بدخشي (د عالمګیر د دربار امیر، عالم او د قرآن د آیتو د استخراج په اړه د امارات الکلم د کتاب لیکونکی)، مصطفی د نورمحمد زوی، د عبدالکریم لمسی او د درویزه کړوسی د ۱۱۱۲هـ کال د شاوخوا پښتو لیکونکی)، مظفر الدین بدخشي (د ۹۸۷ هـ شاوخوا شاعر) میر معصوم نومی د سید صفایي زوی د هماغه بابا حسن ابدال له نسله چې په کندهار کښې ښخ دی (د اکبر د دورې شاعر، نظامي افسر، د تاریخ معصومي او طب نامې مولف، د معدن الافکار، حسن، ناز، اکبرنامې او پری صورت ناظم) مغزي هروي (د میرزا کامران د عصر شاعر چې پر ۹۸۲ هـ مړ دی)، معجز کابلي (د عالمګیر د عصر شاعر) مفید بلخي (د ۱۰۵۰ هـ کال په شاوخوا کښې د بخارا د عبدالعزیز خان د دربار شاعر) مقصود هروي (د همایون د دربار خطاط)، تاج محمد ممنون (شاعر پر ۱۱۵۰ هـ مړ دی)، قاسم موجي بدخشي (امیر او د همایون د دربار شاعر، د یوسف، زلیخا او لیلی مجنون ناظم چې پر ۹۷۹ مړ دی)، مهري هروي (د ملکه نورجهان د دربار شاعره) میر کلان هروي (د جهانګیر ښوونکی او نامتو عالم چې پر ۹۸۳هـ مړ دی)، میرك بلخي چې فکري یې تخلص و، (عالم او شاعر و او پر ۱۰۶۱ هـ کال په اصفهان کښې مړ دی)، میرك هروي (د دارا شکوه ښوونکی او د خپل وخت عالم او د

عالمگیر د وخت صدر کل چې پر ۱۰۷۱ هـ مړ دی)، میر دوست کابلی (د اکبری عصر خطاط)، میرزا خان انصاري روښاني (د پښتو شاعر)، میرالهی بدخشی (د کولاب شاعر او قاضي. د ۹۵۰ هـ پر شاوخوا)، میر علي هروي (نامتو خطاط چې پر ۹٦٦ هـ مړ دی)، میرزا قلي میلي هروي (شاعر چې پر ۹۸۳هـ مړ دی)، ناظم هروي (شاعر- د ۱۰۷۰هـ پر شاوخوا) میر نصر الدین هروي (د عالمگیر او اکبر د دربار له پوهانو څخه)، قاضي نظام غازي خان بدخشی (د شهزاده محمد حکیم او اکبر د دربار امیر او عالم ؤ او د اثبات کلام او بیان ایمان تحقیق او تصدیق د رسالې مولف او د وسایل تصوف او پر شرح عقاید د حاشیې لیکونکی چې پر ۹۹۲ هـ مړ دی)، خواجه نظام الدین احمد هروي د محمد مقیم زوی د اکبر د دربار مورخ او د طبقات اکبري مولف (چې پر ۱۰۰۳ مړ دی)، نظمي بلخي (د ۱۱۰۰ هـ د شاوخوا مولف)، نعمت الله هروي (د خواجه حبیب الله زوی پر ۱۰۱۸ هـ د مخزن افغان لیکونکی)، نعمت الله د رکن الدین تیراهی زوی (د ذکر و فکر د رسالې او رسایل تصوف مولف د ۱۰۰۰ هـ پر شاوخوا)، نېکبخته د پښتنو د شمالي د شیخ الله داد مموزي لور (د شیخ قاسم سلیمانی مور او پر ۹٦۹هـ کال د ارشاد الفقرا، مولفه)، واصب کندهاری (شاعر پر ۱۰۵۰ هـ په اصفهان کښې مړ دی)، واصل (د ۹۰۰ هـ په شاوخو کښې د پښتو شاعر)، واصل کابلی (شاعر چې پر ۹٦۸ هـ مړ دی)، واقعي هروي (د اکبر ملازم - شاعر)، والای قطغنی (شاعر او د شاهجهان په وخت کښې د کشمیر صوبدار چې پر ۱۰۷۴ هـ مړ دی)، وداعي هروی (د اکبر د وخت شاعر)، وفای هروي (شاعر- چې پر ۱۰۷۴ هـ مړ دی)، وقوفي هروي (د اکبر د عصر شاعر او عالم)، ویسی هروی د ۹۸۳ هـ په شاوخوا کښې شاعر او خطاط)، هدایت بدخشی (د خسرو او شیرین ناظم چې پر ۱۵۰ هـ مړ دی)، همت خان (د شاهجهان د



دربار له امیرانو او شاعرانو څخه و، چې پر ۱۰۹۲ هـ مړ دی)، همت سیستانی د ملك حمزه زوی د (د شاه جهان د عصر شاعر)، یاري هروي (د ۹۵۰ هـ د شاوخوا شاعر)، یحیی سبزواری (شاعر چې پر ۱۰۳۵ هـ مړ دی)، یکتای بلخی (د بخارا امام قلی خان د دربار شاعر)، یگانه بلخي (د بخارا د امام قلي خان د دربار شاعر)، یونس خیبري (پښتو شاعر). د بابریانو په عصر کښې هندوستان تر یوې سیاسي اداري لاندې راغلی و، دا مهال د ایران صفوي شهنشاهي بشپړه شوې وه. په ترکیه او عربي هېوادو کښې هم د عثمان د اولادې خلافت د افریقا تر پایه غځېدلی و. په ماوراءالنهر کښې هم شیباني کهاله (۹۰٦ -۱۰۰۷هـ) اقتدار موندلی و چې د دغو څلورو اسلامي شهنشاهیو د هېوادو بریدونه د گنگا له غاړې د ایټالیا تر کڅو، جبل الطارق او طنجې پورې غځېدلي او د اسیا،اروپا او افریقا پر لویه برخه یې واکمني لرله. دانگلستان، روسیې، هالنډ، پرتگال، هسپانیا د هېوادونو سیاسي او تجارتي اړیکي هم له هند، ایران او عثمانیه سره ټینګ شوي وو، څکه نو د هند تجارت د پښتنو، کابل، بخارا، کندهار، هرات، بخارااو مشهد له لارو له ماوراءالنهر او ایران سره پر مخ لاړ. د شاهجهان په وختو کښې د کابل، کندهار، بلخ او بدخشان له صوبو څخه په دولتي خزانه کښې د دولت د عایداتو له زیاتوالي څخه هم زیاتېږي چې تجارت، کرهڼې او صنعت پراختیا موندلې وه، څکه نو د هند ایران او عثماني امپراتوریو د صنایعو تجارت او علومو د ودې په ډگر کښې یې ښه خدمتونه کړي دي، له ماوراءالنهر ایران او خراسان څخه به تل صنعت کاران هند ته او له هغه ځایه به نوموړیو هېوادو ته تلل راتلل. پوهانو به هم له یوه هېواده بل ته تگ راتگ کاوه. تاجرانو به هم د عثمانیه، ایران او ماوراءالنهر نفیس کالي او مالونه د خراسان له لارې هند ته او هندي مالونه (عقاقیر او دارو درمل) به یې

خراسان ماوراءالنهر، ایران او عثمانیه ته ورل، له دې کبله به تل تجارتي بدایې قافلې د کابل، کندهار او هرات له لارو تېرېدې. امرتسر، پېښور، ملتان، ښکارپور، کابل کندهار، هرات، بخارا، خجند او مشهد د تجارتي لارې ستر مرکزونه وو.

په افغانستان کښې د بابر اولاده:

* ۱- بابر (۹۱۰-۹۳۷ هـ)
* ۲- همایون د بابر زوی (۹۳۷ - ۹۶۳ هـ)
* ۳- کامران د بابر زوی (د ۹۶۰ شاوخوا)
* ۴- جلال الدین محمد اکبر د همایون زوی (۹۶۳ -۱٫۰۱۴ هـ)
* ۵- محمد حکیم د همایون زوی (د ۹۹۰ هـ شاوخوا)
* ۶- جهانګیر د اکبر زوی (۱۰۱۴ - ۱۰۳۷ هـ)
* ۷- شا هجهان د جهانګیر زوی (۱۰۳۷ - ۱۰۷۶ هـ)
* ۸- اورنګ زیب د شاهجهان زوی (۱۰۶۸ -۱۱۱۸ هـ)
* ۹- معظم شاه د عالمګیر زوی (د ۱۱۱۸-۱۱۲۴ هـ شاوخوا)

(۷۳ نومره نسب پاڼه وګورئ)

مأخذونه:

تاریخ هند د دو لافوز- بابر، د فرانسوی فرنارد ګرو ناد- اقبالنامهٔ جهانګیری- اکبرنامه - تزك جهانګیر - منتخب اللباب - عالمګیر نامه - طبقات اکبري - ریاض السلاطین - دول اسلامیه - ایین اکبري - رقعات عالمګیری - منتخب التواریخ - تزك بابر، فرشته - مجمع السلاطین - کیمبرج هستری آف انډیا ۴ ټوك - دائرة المعارف اسلامي - سیرا لمتاخرین - تاریخ معصومي - مفتاح التواریخ - مخزن افغاني - حیات افغاني - خورشید جهان تاریخ نظامي ایران - تذکرة الابرا روالاشرار - سلوك الغزات قلمی پښتو-



تاریخ مرصع پښتو - دیوان خوشال خان پښتو - پټه خزانه پښتو - پادشاهنامه- عمل صالح - افغانستان در عصر تیموریان هند د حبیبي - تاریخ هند د سمة ماثرالا مرا- سبحة المرجان فی آثار هندوستان - د کندهار د چهل زینې ډبرلیك - تذکرهٔ نصر آبادی - ذکر مجدد - تذکرهٔ علمای هند - د پښتونخوا هار او بهار- پښتانه شعرا ۲ ټوك - روز روشن - تاریخ افغاني د امام الدین هفت اقلیم - شمع انجمن - د راورټي د ګرامر سریزه - شکرستان افغاني - بهارستان افغاني - سکینة الفضلا - قاموس الاعلام ترکي - مذکر احباب قلمي - حجة الاورنګ شاهیه قلمي - آتشکدهٔ أذر - ګلشن روه - چراغ انجمن- د خوشال خان د کلیات سریزه -تذکره حسیني - کلید افغاني - جامي سرو ازاد -تاریخچهٔ شعر پشتو - تاریخ ادبیات پښتو ۲ ټوك - ریاض الشعراء قلمي مراة الخیال - مأثر رحیمی - مخزن اسلام پښتو قلمی - خزینة الاصفیاء د عبدالقادر خان د دېوان مقدمه - تذکرة الخواتین - نفایس الماثر - فواید الشریعه پښتو خطي.

# شپږمه برخه

## روښـــــانـــيـــان

(۹٦۰ - ۱۰۴۷ هـ)

مخکښې مو ولوستل چې د غور د سوريانو دوره چې په ختمه افغان او د افغاني وياړونو ساتندويان وو په بې ساري برم و پرتم تېره شوه، هغه شاهنشاهي د خراسان د لوېديزو سيمو له پايه د ګنګا تر غاړو خپره وه. سر ببره پر دې چې د چنګيز وحشيانه يرغلو دا برم و پرتم و نړاوه، خو افغانانو هغه هېر نه کړ او په هند کښې يې بيا د لوديانو، سوريانو، خلجيانو او نورو د پاچاهۍ په جوړولو لاس پورې کړ. خو د چنګيز او تيمور د اولادې پرله پسې يرغلو پرې نه ښووه چې د افغانستان او خراسان خاوره بيا يو سياسي يووالی ومومي، بابر چې د همهغه توکم (نژاد) سړی و، هماغه يې وکړل چې نيکونو يې کړي وو.

په دې خو پرله پسې پېړيو کښې افغانان تل د خپل تېر برم و پرتم د راګرځولو په تکل کښې وو او په دغو څلورو سوو کالو کښې د افغانانو په غرو کښې داسې مېړونه وزېږېدل چې د افغاني تاريخي برم د راګرځولو له



پاره يې د خونړيو پاچاهانو له څواکونو سره ډغرې ووهلې او لکه په دغه تاريخچه کې مو چې څو ځله لوستې دي له تاريخي هڅو سره سره يې د خپلواکۍ بيرغ هم رپاند ساتلی دی.

يو له هغو مېړونيو څخه چې غوښتل يې بيا افغانان خپل تاريخي برم ته ورسېږي بايزيد مشهور په پير روښان و، چې ښکيلاکګرو ورته (پير تاريك) وايه، دا تاريخي زړور او د ښکيلاکي واکمنۍ دښمن شخصيت بايزيد د قاضي عبدالله زوی او د محمد لمسی چې ده ته يې سراج الدين او ميا مسکين روښان هم ويل د انصاري له کورنۍ، په ختيځ اورمړ پښتون، پر (۹۳۲هـ) کال د پنجاب په جالندهر کښې د بيبڼ (صورت مهند بي بي) له نسه چې د محمد امين لور وه وزېږېد، انصاري کهول لومړی په کندهار او بيا د وزيرستان په کاڼي ګرم کښې اوسېده، محمد امين د بيبڼ پلار د عبد الله د نيکه ورور و، دا يو علم پال کهول و.

د روښان د کهاله نيکه محمد انصاري دوولس زامن لرل چې له هغې جملې څخه عبدالله فضيلت درلود، د قضا په چارو بوخت و او لکه چې آخوند درويزه وايي اورمړ او انصاري د وزيرستان له قبيلو څخه دي او ميا روښان له انصاري قبيلې څخه و.

خو د پنجاب د جالندهر په ښار کښې د انصاري په نامه يو کهول و، چې ځانونه يې د ميا روښان اولاده بلله او له دوی سره د (تذکرة الانصار) په نامه يو کتاب و، چې په هغه کښې يې د بايزيد نسب په اووه لسمه پوړۍ ايوب الانصاري د حضرت محمد(ص) يوه صحابي ته رسولی دی.

وايي چې د بايزيد د زېږېدو ځای جلندهر دی او د ده حجره تر اوسه د شيخ احمد غوث ولي مزار ته نژدې شته.

په دې توګه به يې د دغه تاريخي اړيکي له امله انصاري نوم

موندلی وي، خو دا چې د وزيرستان په اور مړ قبيلو کښې په دغه نامه کومه قبيله نه شته ځکه نو ښايي وويل شي چې انصاريان له پلار و نيکه را په دې خوا له افغانانو سره اوسېدل، ځکه نو دوی افغانان وو او ټولو خلکو د درناوي په سترګو ورته کتل.

بايزيد په کوچينوالي کښې له خپله پلاره او ملا پاينده او ملا سليمان کالنجري څخه زده کړه وکړه، چې زلمی شو پلار يې وغوښتل چې دی په ملتان کښې د شيخ بهاء الدين زکريا په کورنۍ وګروهوي او د هغوی مريد يې کړي، خو ده چې وده او لاربښوونه ارثي نه ګڼله نو د خپل تره زوي خواجه اسمعيل د خداداد زوی او د محمد لمسی ته يې د ارادت لاس وغځاوه، تل يې په زهد، طاعت او تقوی ژوند کاوه او له خپل پلار سره چې ظاهراً قاضي او په دنيوي چارو ککړ و، نه اوسېده.

دا مهال بايزيد ځانګړی زيار، زهد، مراقبې او تفکر ته ملا وتړله او لکه چې په خپله وايي يوه شپه يې حضرت خضر پر خوب وليد، تر هغه وروسته د قرب او وصلت مرتبې ته ورسېد او تل يې خپل پلار و مېرېزي ورور شيخ يعقوب د قاضي تابه او بډې اخيستلو څخه منع کول ځکه نو له هغه وخته د ده او د کورنۍ تر منځ اختلاف پيدا شوی و.

بايزيد له زلمي تابه په ګرځېدو او د نفس په تزکيه لاس پورې کړی و، تر کندهار، هند، ماوراء النهر او سمرقند پورې ولاړ د پوهانو او د نظر له خاوندانو سره يې وکتل او دوديز عربي او ديني علوم يې زده کړل، په ادب، فسلفه او تصوف کښې يې مطا لعات وکړل او د آفاق او نفس په سير بوخت شو، د دغه سفر په ترڅ کښې يې د آسانو سوداګري کوله، چې له سمرقنده به يې ښه اسان رانيول او هند ته به يې بوتلل، د ده دا سفرونه له پېنځلس کلنۍ څخه د (٩٤٧هـ) کال په شاوخوا کښې پيل او د (٩٦٠هـ) کال



تر حدودو پورې جاري وو.

دا وخت د بايزيد علمي او فکري شخصيت ښه پوخ او د مورخانو په وينا فکور، عالم، فصيح او فاضل سړی ځنې جوړ شو. آخوند درويزه د ده مخالف هم وايي چې هوښيار، پوه او فيلسوف سړی و. د دبستان مذاهب مؤلف ليکي چې: په کابل کښې يې د ميرزا محمد حکيم په دربار کښې ډېر پوهان او علماء په مناظره کښې پړه کړل او پر هغو يې بری وموند، ځکه نو ميرزا دی په درنښت بيرته واستاوه او حتی وايي چې: په خپله ميرزا، د کابل قاضي خان، حکيم خان او ميرزا اتاليق ټول پر ده معتقد شول.

بايزيد د خپلو سفر و او ګرځېدو پر مهال په ټوله پښتونخوا کښې د افغانانو د مظلوميت حال ته ځير شو، دا چې د لوديانو او سوريانو تېر برم هم ور په ياد و، نو دا فکر ورته پيدا شو چې دا بې وزلي او تيت پرك خلك پر خپل ملي مرکز راغونډ او په دوی کښې داسې حکومت منځته راولي چې د دوی خپل وي او د پښتنو د آزادۍ نغری بيا تود شي.

څرګنده ده چې د بايزيد دا سياسي نظريه د هند د تيموريانو د هغو ظلمونو او ستمو مخالفت و، چې دوی پر افغانانو کول او په ليدو يې هر حساس پښتون د مخنيوي له پاره پارېده.

په دې اړه دوه تاريخي سندونه را سره شته: لومړی داچې بايزيد د مشهور بيرم خان د حمکرانۍ پر مهال د (٩٦٠هـ) کال پر شاوخوا کندهار ته راغلی و او تجارتي مالونه يې راوړي وو لکه په خپله چې ده ليکلي دي: د هغې سيمې حکمران پر کاروانيانو ستم وکړ، د داد خواهۍ پر و خت يې دی هم دربار ته بوت، دی داسې ليکي:

"...په هغه وخت کښې په کندهار کښې يو مير و، چې بيرمخان نومېد، پر هغه کاروان يې ظلم وکړ... نو د ځينو وارثان ټول شول د فرياد

کولو له پاره او زه يې هم له ځان سره رهي کړم ... ما وويل حق تعالی به اميران او پاچاهان له عدله وپوښتي او د چا يو ذره عمل نه ضايع کوي، ورښيي يې چې: (فمن يعمل مثقال ذره خيراً يره) نو بيرمخان ومنل او ويې ويل: چې د حال پوښتنه کوم، خو پوښننه يې و نه کړه د وعدې مخالفت وشو..."

له دغه بيانه چې په خپله د بايزيد په قلم نقل شوی دی داسې ښکاري چې دا ستر افغاني شخصيت پر خپل قوم باندې د پرديو حاکمانو د مظالمو له ليدو څخه متاثر، ظالمان يې د عدالت او نياو خوا ته وبلل.

دا شريف احساس چې د پرديو د زړه خوروونکيو ستمو له ليدو څخه بې شکه هر غيرتمن سړي ته پيدا کېږي، د روښاني نهضت اساسي سبب شو چې تذکرة الانصار يې داسې بيانوي: "حکام مغل ظلم و ستم خود را بر افغانان بغايت رسانيدند، تا جاييکه روزی يکی ازين ستم کاران يکنفر زن افغان را ماخوذ داشت و موی سر او را با سنگ آسيا فرو بست، چون پله سنگ بدوران آمدی، آنزن نيز با آن گشتی و فرياد برآوردی..." بايزيد چې سپيڅلی پښتون و، د دغه ويرجن حالت په ليدو به سره پېچيل کېده او له کوګله به يې دود خوت، ځکه يې نو د هغه ظلم او ستم مخنيوی خپله ملي وجيبه وګڼله او د روحي سير او مراقبت په عالم کښې يې، د سرور کائناتﷺ حضور ته عرض وکړ او اجازه يې وغوښتله چې قوم د مظلومانو د خور او ستم د مخنيوي له پاره هڅه وکړي او ظلم پای ته ورسوي تر هغه وروسته چې يې داسې يوه روحاني اجازه واخيستله نو په مېړانه د پرديو ستمکارانو مخې ته ودرېد او د افغانانو په غرو کښې يې يو داسې نهضت منځته راووست چې په هغه کښې د جالندهر يو نوميالي بزرګ، شيخ غوث الکرام داسې وويل: "په غرو کښې بيا يو اور بل شو، خدای دې عاقبت په خير



کړي".

بايزيد د عدل او انصاف پر لار قدم کښېښوو او له هغې سيمې يې د ځور او ستم کرغېړنې نخښې ورکې کړې.

کېدای شي دا بيان کټ مټ رېښتيا نه وي، خو دا حقيقت ترې لاس ته راځي چې د روښان نهضت علت العلل پر افغان اولس د پرديو د ستمګارۍ مخنيوی و، چې هغه وخت د (ډهلي) د تيموري حکمدارانو د ظلم په اور سوزېدل، ظلم او ناروا تل په خپل مقابل کښې اتلان زېږوي او ننګيالي مېړونه پاروي.

پورتنۍ ليکې د بايزيد روښان د آزادۍ غوښتلو نظريه او د سياسي عقيدې فلسفه ښکاره وي. خو هغه يو داسې مرکب کرکتر (سجيه) درلوده چې ظاهراً يې په نورو سياسي آزادی غوښتونکيو او جنګياليو کښې ښکاره لګېدای نه شي، ځکه دی په عين حال کښې چې يو ننګيالی جګړن و، د تصوف، صلاح، تقوا، د نفس د رياضت او ارشاد ښتن هم و چې ده د شخصيت دا اړخ په لاندې ليکو کښې د هغه له تعليل سره لوستل کېدای شي:

د چنګيز او تيمور تر هولناك چور او چپاو وروسته د منځنۍ آسيا په هېوادو کښې له مصره تر هنده د ګوښه ګيرۍ، له ژوندانه څخه دتيښتې او منفي خوا ته د رجوع يو راز احساس پيدا شو چې د هماغو تاريخي بدمرغيو وينو تويولو منطقي نتيجه وه. خلك چې له مادي آلامو څخه ستړي شوي وو، نو د تصوف او روحانيت په لمنه يې منګولې ولګولې او د جګړې، چور او چپاو له ډګره يې د خانقاه ګوټ ته پناه يووړه، د تصوف مسلك بشپړ دود شو، په ټوله منځنۍ آسيا کښې د اولياء الله او د تصوف د خاوندانو ګاونډ د ويرژړليو او رېږېدليو له پاره يوازينی تاتوبی ګڼل کېده، ان تر

(۹۰۰هـ) کال وروسته په اردبيل کښې د شيخ صفی الدين د خانقاه له گوټ څخه يوه لويه شاهنشاهي هم را ولاړه شوه، چې وروسته يې پر ټول ايران او د افغاني خاورې پر يوې برخې واکمني درلوده او د دربار رسمي کسان د (صوفي) په لقب ياد شول، په بخارا او هرات کښې د تيمور د اولادې حکومت هم پر روحي بنسټو ولاړونو د دوي په دربار کښې د نقشبنديانو اغېزه دومره ډېره وه چې د تيمور غوندې مدهش خونخوار هم ورته پر گونډو شوی او تندی يې پر درشل ورته ايښي و، د هرات په دربار کښې مولانا جامي دومره اغېزه درلوده چې د هغه ستر وزير امير علي شير نوايي د ده په ستاينه کښې شعرونه ويل او له هند نه نامتو وزير محمد کاونان د خپل نياز عرض د ده حضور ته ليکه.

دا مهال د پښتونخوا سيمه چې دهند، ايران او ماوراء النهر تر منځ پرته وه له دې روحي هڅې څخه خورا زياته متاثره شوې وه، تر دې چې يوه سړی د پير بابا په نامه له اټکه تر کابله د خلکو د ځان او مال څښتن و او ټول يې تر روحي اغېزې لاندې وو.

دا نافذ او جذاب شخصيت سيد علي نومېده چې د قنبر علي زوی، د سيد احمد نور لمسی، د سيد يوسف نور کړوسی او د محمد نور کوسی و، چې د محمد زوی د تيمور لنگ له خوريانو څخه و، د ده اولادې د تيموري پاچاهانو له دربارو سره اړه دلوده، د سيد علي پلار له ترمذه کندوز ته راغی، له هغه ځايه د بابر له زوی همايون سره هند ته لاړ، په خپله سيد علي په مانك پور کښې د شيخ سالار رومي لاس ونيو او استفاضه يې ځنې وکړه، بيا له هغه ځايه د افغانانو غرو رغو ته راغی سيد علي تر (۹۰۰هـ) وروسته زېږېدلی او د (۹۶۲هـ) کال په شاخوا کښې د اټك او خيبر تر منځ سيمو ته راغی، ده چې د تيمور له کهاله سره خپلوي او اړه درلوده او له بلې



خوا هاغه مهال د همدغو سيمو خلکو د ډهلي تيموري امپراتورۍ ته تل سر درد پيدا کاوه، نو ځکه نوموړيو سيمو ته د سيد علي راتگ له سياسي مقاصدو څخه تش نه و او دغو سيمو ته له رارسېدو سره يې د يوسفزيو د دولت زيږېديوه لوی ملك لور وکړه او د روحاني اغېزې د خپرولو په ترڅ کښې يې خپل سياسي مقصدونه هم پر مخ بيول. غوښتل يې چې په دې سيمو کښې د دين او روحانيت له لارې د ډهلي د دبار مخالفان نوم بدي او ناکام کړي او د ډهلي د دبار اطاعت ته د خلکو پاملرنه وگرځوي.

سيد علي دلته مخلص او خونگرمه مريدان پيدا کړل، په پښتونخوا کښې تر دېرشو کالو پورې بې تاج و تخته پاچا و، چې د ډهلي له درباره مادي او مانيزه مرسته ورسره کېده، د ده سياسي او روحاني مرکز په بونير غرو (پاچاکلی) و، چې هملته پر (۹۹۱هـ) کال مړ شو. دغه سيد او د ده مريدانو په خپل ټول ځواك د بايزيد روښان تکفير او ناکامۍ ته ملا وتړله او په راز راز وسيلو يې (لکه پروپاگند، وعظ او خطابه او د کتابو د ليکلو له لارې) په پير روښان پورې د الحاد، بد بينۍ او بد اعتقادۍ تور وتاړه.

اوس به تاسې ته روښانه شوې وي چې د بايزيد د پيدايښت په چاپېريال کښې تصوف او طريقت، پيرۍ او مريدۍ څومره غښتلې اغېزه او دود درلود؟ ځکه نو که بايزيد له آره يو آزادي غوښتونکی جنگيالی مېړه هم و، خو د خپل چاپېريال د غوښتنې له مخې اړ و، چې خپله متاع د بازاريانو له غوښتنې سره سمه عرضه کړي او خپل ځان په هغه وسله سمبال کړي چې د ده د سياسي مخالفانو په لاس کښې وه او د ده پر ضد يې کاروله ځکه نو بايزيد تصوف، رياضت او طريقت له خپل سياسي مسلك سره چې په دې سيمو کښې يې تاريخي ويارنې، افغاني پاچاهۍ منځته راوړل او سياسي مرکز جوړول و، گډ او يو داسې عجيب مرکب يې ځنې جوړ کړ چې

هم يې روحي اړخ لاره او هم مادي.

تر دغه ځايه مو د روښاني نهضت د پيدايښت او د دغو خلکو د تفکر بنه او د دوی د تحريك د فلسفې په شاوخوا کښې لنډ څه وويل.

اوس د دغه ستر مېړه په اړه پاتې ټکي ليکو:

بايزيد په زليمتابه کښې شمسيه نومي لودي پېغله په جالندهر کښې په نکاح کړه، چې د دې افغاني مېرمنې له نسه يې نوميالي اولادونه وزيږېدل، لکه د دبستان مذاهب مؤلف چې ليکي: د ۹۶۹هـ کال تر شاوخوا پورې د بايزيد شهرت هرې خوا ته خپور او ډېر ځواك يې وموند افغانانو د ده بلنه ومنله او د ده مرستې ته يې ملا وتړله.

بايزيد لومړی د دَبار او سياست د واکمنو په لاربښوونه لاس پورې کړ او د (صراط التوحيد) د کوچنۍ رسالې له لارې يې خپل نصيحتونه دوی ته ورسول، ده مخلص مريدان هم پيدا کړل چې د مړينې تر وخته پورې يې د ده ملا وتړله، د هغو نومياليو له ډلې څخه دا درې اديبان او د پښتو ژبې شاعران وروڼه هم وو:

ارزاني (په پښتو شعر کښې د ديوان خاوند) ملا محمد عمر او ملا علي محمد مخلص (په پښتو شعر ديوان څښتن).

همدارنګه ملا پاينده، ملا دولت اکوزی، دولت لوڼ او ميرزا انصاری (دواړه په پښتو کښې د ديوان خاوندان) هم د ده ملګري وو.

بايزيد چې د پرديو پر خلاف د جهاد اعلان وکړ او په کابل او پېښور کښې يې د ډهلي حکمرانان ووېرول، نو ځکه دولتيانو او د دوی طرفدارانو چې د سيد علي (پير بابا) له تابعانو څخه وو، د ننګرهاری آخون درويزه په روحاني او علمي لاربښوونه (چې په فارسي کښې د تذکرة الابرار او په پښتو کښې د مخزن الاسلام مؤلف ؤ.) د بايزيد مخې ته ودرېدل. د ده



مرکز دا وخت د پېښور په شمال کښې د اشنغر د (کله دير) د ملا دولت مومند په کاله کښې و او د (۹۷۰هـ) په شاوخوا کښې د کابل صوبدار محسن خان د سيد علي او اخون درويزه په مرسته پرده باندې لښکر را ويوست، دی د هغه د لښکريانو لاس ته ورغی او کابل ته يې بوت، هلته يې په سياه چال کښې بندي کړ چې دغو پېښو د (۹۸۰هـ) تر شاوخوا پورې دوام وموند.

بايزيد په کابل کښې لږ موده بندي و، لکه د مخه چې مو ولوستل د ده استعداد او د استدلال نفوذ او قوت د کابل پر حکمران اغېزه وکړه نو دی يې په ډېر درناوي له بنده خوشې کړ، ننګرهار ته ورسېد، هلته يې بيا د آزادۍ غوښتلو غږ پورته او خپل سياسي مرکز يې د "تيرا" په غرو کښې وټاکه او له همدغه ځايه بايزيد روښان د "افغاني حکومت" بيرغ ورپاوه.

د (۹۸۰ هـ) کال په شاوخوا کښې اپريديو، اورکزيو او اتمانخېلو زړوورو قبيلو د ده اطاعت ومانه، خو څنګه چې د هغه ځای زياترو خلکو د دښمنانو ملا تړلې وه، نو روښان د هغو ملګرتيا و نه منله او ويې ويل: "دا چې ستاسې زړونه له مغول سره تړلي دي نو د پښتنو منځته راتلای نه شي" خو هغو خلکو خپل لاسونه وتړل او د پښېمانۍ او توبې په توګه د ده حضور ته ورغلل، بايزيد د دوی لوی ګناهکاران ووژل او پاتې ديارلس سوه تنه يې له تيرا څخه وشړل، په دې توګه يې هغه سيمه د پرديو له اغېزې او اثارو څخه بيخې پاکه کړه، خو د پرديو لښکر د تيرا پر "چوری" نومي ځای يرغل وکړ، د بايزيد پيروانو چې وسله نه درلوده د هغو تېرونلانو په واسطه يې د يرغلګرو مخه ونيوله چې د تيرا په غرو کښې شنه کېږي، هغوی ته يې سخته ماته ورکړه او د جګړې د روښان د ملګريو په ګټه پای وموند.

درويزه وايي چې: بايزيد له تيرا څخه د پردي پرستو، ريښې بيخي

وایستلې، دوه سوه او شل تنه یې تر تېره تیغ تېر کړل، پاتې کسان د ملي کسات (انتقام) له ډاره ننگرهار ته وتښتېدل، تر هغې وروسته بایزید د ملي قواو په ترتیب او تجهیز لاس پورې کړ او د افغانانو د تېر عظمت درس یې د غرو د ننگیالیو اوسېدونکیو غوږو ته ورساوه.

د غرو زرگونه پلي او سپاره ننگیالي یې خدمت ته راغلل او د ډیلي حکومت د راپرځولو له پاره یې د ملي جهاد غږ پورته کړ، دوی د بایزید په مشرۍ له تیرا څخه د ننگرهار خواته راوخوځېدل او په "برو" نومي ځای کښې کښته شول، د کابل صوبدار محسن خان چې په دغه غورځنگ خبر و، له خورا لوی لښکر سره یې په جلال اباد کښې انتظار یوست، د دوی مخې ته راووت او د شینوارو په "تورراغه" نومي ځای کښې دواړه قوتونه سره مخامخ شول، سخته جگړه ونښته او د غرو ننگیالي پښتانه چې په تشو لاسو د غرو په لرگیو او نیانو یې جنگ کاوه، د ډهلي د پاچهۍ د وسله والو قواو په مقابل کښې چې د اور او اوسپنې وسلې یې درلودلې په ډېره مېړانه ودرېدل، بایزید هم د خپلو پیروانو په منځ کښې په ډېره مېړانه جنگېده، چې د همدې خونړۍ جگړې په ډگر کښې ووژل شو، څکه نو د تور راغه جگړه د یرغلگرو لښکرو په گټه پای ته ورسېده.

په ثقه وینا دی د (۹۸۸هـ) کال په شاوخوا کښې پر ۵٦ کلنۍ شهید شوی، هدیره یې معلومه نه ده خو زیات اټکل دادی چې په وزیرستان کښې به وي.

بایزید پر خپل ژوندانه د پردیو په مقابل کښې د ملي غورځنگ بنسټ کښېښوو او هم یې خلکو ته د افغاني حکومت جوړولو فکر پیدا کړ، دی پر سیاسي او جگړه ییزو اثارو سربېره ادبي او علمي اثار هم لري، ده په څلورو پښتو، عربي فارسي او هندي ژبو خبرې او لیکنې کړای



شوې، خو په پښتو ژبه کښې د فني نثر لیکنې یعنې د مسجع نثر د ادبي مکتب بنسټ ایښوونکی گڼل کېږي، چې خپل مشهور کتاب "خیرالبیان" یې په همدغه نیم منظوم نثر چې فارسي، عربي او هندي ژباړې هم لري لیکلی دی. د ده نور کتابونه یو "صراط التوحید" نومېږي چې پر (۹۷۸هـ) کال یې په هغه کښې د خپل ژوندانه پېښې، د کامل پیر د لټولو موضوع او نصیحتونه لیکلي دي، بل کتاب یې حالنامه د خپل ژوندانه بیان دی چې د دبستان مولف له هغه څخه روایت کوي او څلورم کتاب یې د مقصود المومنین په نامه په عربي ژبه لیکلی چې د اخلاقو، تصوف او طریقت بحثونه لري. د دغو څلورو کتابو پر لیکلو سربېره یې د پښتو ژبې له پاره یو لیکدود هم جوړ کړی، چې د دې ژبې مخصوص آوازونه یې په خاصو اشکالو کښې ښوولي وو.

بایزید په ناکامۍ له دنیا تېر شو، خو د ازادۍ غوښتلو هغه تخم چې ده په پښتونخوا کښې وکاره تر هغه وروسته شین شو، چې ثمره یې په پښتونخوا کښې د ازادۍ غوښتلو پرله پسې غورځنگونه وو لکه په کندهار کښې د میرویس غورځنگ او په خیبر کښې د خوشال او ایمل هڅې او بالاخره د احمد شاهي لویې شهنشاهۍ جوړېدل، درویزه د پیر روښان مخالف قطب دده او د ده د اولادې دا سیاسي مفکوره داسې بیانوي چې دوی وویل: "لښکرې راغونډوو، هندوستان نیسو، عامه ناره یې وکړه چې افغان سپاره دې پر موږ راټول شي، د اکبر پاچا خزانې زموږ دي."

له بایزید څخه دوې سلسلې ماثر پاتې دي: ادبي ماثر چې **یوې د لې پښتو** لیکونکیو لکه:درویزه، بابو جان، قاسم او نورو د ده په نیم منظوم مسجع سبک د نثر کتابونه ولیکل.

دویم د ده حربي او سیاسي ماثر دي چې د ده اولادې د پښتونخوا

په غرو کښې تر يوې پيړۍ پورې د خپلواکۍ غوښتلو جګړه پر مخ بوتله.

بايزيد حنفي مذهبه مسلمان او فقيه متصوف دی چې په تصوف کښې د اهل شهود مذهب ملاتړی دی، خو کله کله د سکر په حالت کښې د وجوديه په مشرب هم ګروهېږي، په تصوف او طريقت کښې يې خپلو مريدانو ته اته پوړه ټاکلي دي: شريعت، طريقت، حقيقت، معرفت، قربت، وصلت، وحدت، او سکونت چې دا هره يوه مرتبه خاص دودونه او آداب لري.

خو د ده سياسي پروګرام پر څو بنسټو ولاړ ؤ:

لومړی: د **افغانانو** آزادي تر دغه پلان لاندې:

الف: د پرديو د ظلم پر پروړاندې د کرکې را ويښول.

ب: له حکومتيانو لرې والی چې په انګريزي يې (نن ګواپريشن) بولي.

ج: د آزادۍ لپاره جګړه اوسربښندنه.

دويم: له اداري او مالي جنګي تشکيلاتو سره افغاني حکومت جوړول.

دريیم: په هند کښې دافغاني شهنشاهۍ او د غوريانو، خلجيانو او لوديانو د وياړونو راژوندي کول.

دا وو د روښاني غورځنګ د بنسټ ايښوونکي د څرنګوالي لنډيځ، اوس به وګورو چې تر ده ورسته څه پېښ شول؟ او دا ملي غورځنګ کوم ځای ته ورسېد؟

د خپلواکۍ او آزادۍ غوښتنې هغه اور چې بايزيد د پښتونخوا د غرو د خلکو په سينو کښې بل کړی و، د ده په وژلو مړ نه شو، تره ده وروسته يې زوی جلال الدين پر څلوارلس کلنۍ د پلار د روحاني او سياسي رياست په ګدۍ کښېناست، د ډهلي د دربار مورخان ابو الفضل، خافي خان



او بدواني د ده نوم (جلاله) ليکلي او وايي چې: د هند پاچا اکبر دی په دغه نامه باله:

د دبستان ليکونکی وايي چې: جلال الدين په خپلواکۍ حکومت کاوه، عادل او ضابط سړی و.

پر (۹۸۹هـ) کال چې اکبر له کابله هند ته راغی جلال الدين په افغاني قبيلو کښې په مشرتابه او رياست پېژندل شوی و، اکبر هغه خپل حضور ته ور وغوښت، خو جلال الدين چې د درباريانو په دروه او چل خبر و، نو د خپل پلار مرکز ته چې د تيرا په غرو کښې و- ولاړ او پښتنانه قبايل چې د پېښور د تيولدار سيد حامد بخاري له خوره ډېر په تنګ شوي وو، پر جلال الدين را غونډ شول، او نوموړی ستمګر حکمران يې وواژه، دا وخت د پښتنو ملي قوت د جلال الدين تر بيرغ لاندی شلو زرو پليو او پينځوزرو سپرو ته رسېده.

جلال الدين اکبر چې د هند لوی امپراتور ؤ، د روحاني جلال الدين ورکاوي ته يې کلکه ملا وتړله، پر (۹۹۴هـ) کال يې کنورمان سنګ او خواجه شمس الدين خافی له يوه ويروونکي پوځي ځواك سره د جلال الدين د مخنيوي له پاره وګمارل، څنګه چې د پېښور شاوخوا د يوسفزيو، غوريه خېلو او مومندو قبيلې ټولې ورسره وې نو د خيبر په غرو کښې خورا سختې جګړې وشوې، د اکبر لښکرو د جلال الدين په وړاندې څه ونه شو کړی، نو ځکه اکبر يو بل لوي لښکر له زين خان کوکه سره د خپل مخکيني لښکر د ملاتړ له پاره را واستاوه او جګړه لا توده شوه.

دا جګړه تر دا بل کاله جاري وه، خو چې د اکبر دويم لښکر هم د افغانانو پر وړاندې څه ونه شو کړی، نو اکبر هغه وترټل او پر (۹۹۵هـ) کال يې بل نوی لښکر راواستاوه، چې د بنګښ له لارې يې د جلال الدين پر

ځواکونو یرغل وکړ، امان سنکهه د بګرام له خوا راووت، خو جلال الدین له خپلو زرو سپرو او پنځلسو زرو پلیو سره پر هغه برید وکړ په دې جګړه کښې د ده یو نیم زر تنه ووژل شول او اکبري تیري کوونکیو ته هم درانه تلفات ورسېدل.

تر دې جګړې وروسته جلال الدین وکړی شول چې خپل نفوذ له تیرا څخه د پېښور شمال خوا ته په اشنغر کښې خپور او زرور یوسفزیان هم د ځان ملګري کړي، هغه وو چې پر (۹۹۶هـ) کال یې د همدغو قبیلو په ملاتړ د سوات او باجوړ په سیمو کښې د آزادۍ غوښتنې غږ پورته کړ، د اکبر له لښکرو سره ونښت او بېرته تیرا ته راغی د اکبر دربار چې د دغه سرسخته رقیب د مقاومت له لاسه په تنګ شوی و، یو درونډ لښکر یې د صادق خان په مشرتابه د تیرا خوا ته وګماره چې د جلال الدین د لښکر پر زړه حمله وکړي، صادق د اپریدیو او اورکزیو پر قبیلو بریالی شو، او د جلال الدین د لښکریو مشر ملا ابراهیم یې ونیو خو په خپله جلال الدین د (وزیرستان) د کاڼي ګورم له لارې پر شاشو او د اکبر لښکرې تر ډېرې مودې د یوسفزیو له هغو قبیلو سره په جګړه اخته وې چې له جلالي آزادۍ پالو سره یې لار او اړه درلوده (۹۹۶هـ).

دا وار جلال الدین څلور کاله د جګړې له ډګره مخ واړاوه، وایي چې توران ته لاړ، خو پر (۱۰۰۰هـ) کال یې بیا افغاني ځواکونه را غونډ کړل، د اکبر له درباره هم ازمایلي شوي کسان لکه جعفر بیګ اصف خان او قاسم خان کابلي د ده د له منځه وړلو له پاره غوره شول او تر سختو جګړو وروسته د جلال الدین د کهاله څو تنه چې د ده ورور وحدت علي (واحد علي) هم پکښې و د اصف خان لاس ته ورغلل.

د ډیلي دربار چې د جګړې په ډګر کښې د لښکر په زور جلال الدین



مات نه کړی شو نو دروه او رشوت ورکولو ته یې لاس واچاوه او په خپله په افغانانو کښې یې بېلتون راوست، د دروه او رشوة له لارې یې د قبیلو ځینې مشران د ده پرضد وپارول، چې له هغې جملې څخه ملك حمزه اکوزه په (سرکاوی) کښې لاس ور واچاوه خو جلال الدین هغه مات کړ بیا یې د میني) په شاو خوا کښې هم حمزه پرشاو شاړه خو ترهغه وروسته اکبر د حمزه د ملاتړ له پاره خورا زیات لښکر را واستاوه او ټول اکبري ځواکونه پر جلال الدین راتوی شول، په دې جګړه کښې د لازاکو په (توره بیله) کښې د جلال الدین دوه نومیالي وروڼه شیخ عمر او خیر الدین ووژل او بل ورور نور الدین یې مومندانو وواژه، خو په خپله جلال الدین چې ډېر تلفات وررسېدلي وو د تیرا غرو ته لاړ.

جلال الدین د غرني اتل په توګه په تیرا کښې په مهمو لښکري سمبالتیاو لاس پورې کړ زیات قبایل یې له ځان سره یو کړل او تر (۱۰۰۱هـ) کال پورې یې د **افغانانو** تازه دمه لښکر پر خپل ملي مرکز را غونډ کې، شهنشاه اکبر هم دا پلا خپل ډېر مهم او لومړی درجه سړي د ده د مخنیوي له پاره وګمارل چې مشري یې زین خان کوکه او شیخ فیضي کوله وروسته تر هغه راجه بیربل، سعید خان او نور یې له لسو زرو سپرو سره ملاتړ ته راغلل، خو جلال الدین په کلکه هغه لښکر مات او پر شا یې وشاړه د ډهلي دربار د مورخانو په وینا له اکبري څلوېښت یا پنځوس زریز سپاره لښکر څخه د زوررورو افغانانو له لاسه یو هم ژوندی پاتې نه شو او ان د اکبر د شهنشاهۍ د ټولو چارو چلوونکی او د اکبري دربار مهم غړی راجه بیربل هم په دې لاره کښې سر بایلوو، زین خان کوکه له نورو امیرانو سره د اټك خوا ته وتښتید او نور نو له هغې جګړې څخه یو تن هم نجات و نه موند.

د اکبر دربار ته چې ددې تباهۍ خبر ورغی نور راجه تودرمل یې

د قاسم خان کابلي په مرسته د لار څارنې له پاره واستاوه او دغو داوړو په ډېر چل و ول زين خان کابل ته ورسولای شو.

تر هغه وروسته د ډهلي قواو تر څو کالو پورې د قاسم خان کابلي په مرسته د کابل او پېښور لاره ساتله، پر (١٠٠۴هـ) کال بيا جلال الدين پر اکبري لښکر برغل وکړ، اکبر پاچا قليج خان د ده د مخنيوی له پاره راولېږه، دا سړی هم تر څو جگړو وروسته د کابل خوا ته پر شا شو، جلال الدين د پښتونخوا پر ټولو غرو له خيبره تر تيرا پورې او د کابل پر جنوبي سيمو تر غزني پورې بريالی شو، پر (١٠٠٧ هـ) کال يې د غزني ښار هم د تورې په زور د پرديو له منگولو څخه ونيو او تر دوو کالو يې پر هغو سيمو حکومت کاوه، پر (١٠٠٩ هـ) کال د اکبر لښکر د غزني په ښار کښې اووه ورځې له ده سره جگړه وکړه او هم يې د هغه ډېر خلك د ده پر وړاندې وېارول، د جگړې په يوه ډگر کښې شادمان نومي دی ټپي کړ، تر هغه وروسته جلال الدين رباط غره ته ولاړ، شريف خان اتکه چې د ډهلي د دربار حکمران و، مراد بيگ نومي په ده پسې وگمارو، نوموړي هغه نوميالی اتل ټپي چې څو کاله يې د آزادۍ له پاره د پرديو پر وړاندې جگړه کړې وه شهيد کړ، د ده له شوره ډك سر يې اکبري دربار ته واستاوه، حال دا چې د ده ورور کمال الدين لا د مخه په اکبري زندان کښې مړ شوی و.

هغسې چې د ډهلي دربار گڼلې وه، د جلال الدين په وژلو هم د افغانانو د آزادۍ غوښتنې تلوسه مړه نه شوه، تر ده وروسته يې وراره احداد د عمر شيخ زوی او د بايزيد لمسی چې د ده زوم و د خپلواکۍ غوښتنې بيرغ پر خپلو اوږو پورته کړ، د خپلو غير تمنو اسلافو په شان يې هنگامه توده وساتله. د دبستان ليکونکي په وينا احداد يو عادل، ضابط او د خپل نيکه پر ايين ثابت ولاړ سړی و، افغاني قبايل ورباندې راغونډ شول او د



(١٠٢٠ هـ) کال پر صفره يې جهانگيري حکمران چې معزالملك بخشي نومېد مات کړ، د کابل پر ښار يې برید وکړ، په دې جگړه کښې د احداد يو ملگری "بارکی" نومي مړ شو، د ډهلي لښکر د ناد علي ميداني او قليچ خان په ملاتړ له ده سره جگړه کوله چې احداد په دې جگړه کښې پر شا شو.

څلور کاله وروسته احداد د کابل جنوبي خواته په څرخ کښې بيا نوی لښکر راټول کړ او جهانگير پر (١٠٢۴ هـ) کال يو درونډ او لوی لښکر د ده د مخنيوي له پاره وگماره، په خپله جهانگير په دې اړه داسې وايي:

"احداد افغان که از دير باز در کوهستان کابل در مقام سرکشی وفتنه انگيزيست وبسياری از افغانان آن سرحد بروجمع شده اند و از زمان والد بزرگوارم (اکبر) تا حال که سال دهم جلوس من است افواج هميشه بر سر او تعيين بوده اند رفته رفته شکستها خوردو پريشانيها کشيد" (تزوك جهانگيری).

د څرخ ډاگونه د دواړو خواوو په وينو سره شول، تر سختې جگړې وروسته د جهانگير لښکرو بری وموند، د احداد ملگري د درو زريو تنو په شاوخوا کښې ووژل شول، خو په خپله احداد د کندهار خواته ولاړ او د لښکر مرکز يې د دښمن د لښکريانو لاس ته ورغی.

پر (١٠٢٨ هـ) کال احداد د جهانگيري لښکر په مقابل کښې بيا لښکر راغونډ کړ، د ډهلي د نامتو درباري مهابت خان زوی امان الله خان ورسره وجنگېد، په دې جگړه کښې هم د احداد لښکر ته سخت تاوان ورسېد او غرو ته وخوت.

د ډهلي له لښکر سره د احداد وروستنۍ جگړه پر (١٠٣۵ هـ) کال په تيرا کښې وشوه، د جهانگير لښکر د افغانانو له ملي قواو سره ونښت، په کابل کښې د جهانگير حکمران د خواجه ابوالحسن زوی ظفر خان خورا

لوی لښکر را ویوست او په تیرا کښې یې پر نواغر (لواغر) چې د احداد د ملي ریاست مرکز و، یرغل وکړ؛ احداد. یې هلته کلا بند کړ، یو شپه چې تیري کوونکي پر کلا وروختل احداد د ژوند تر پایه په مېړانه ورسره وجنګېد او په مېړانه یې خپل سر د ملي خپلواکۍ ساتنې په لار کښې کښېښوو، شهید شو - د ډهلي لښکرو د ده سر پرې کړ او د احمد بیګ د زوی افتخار خان په لاس یې د جهانګیر دربار ته سوغات واستاوه، هغه ورځ چې د شهنشاه دربار ته د دغه افغان ملي مجاهد سر ورسېد نو جهانګیر خدای ته پر سجده شو، شکر یې ویوست او د خوښۍ د ساز او سرود د ډغولو امر یې وکړ - خو:

سر کشته بر نیزه میز د نفس
که معراج مردان همینست و بس

احداد د روښان په کورنۍ کښې تر جلال الدین وروسته خورا زړور او لوی سړی و، صمصام الدوله د ده په اړه لیکي:

"شجاعت و بهادری او ناسخ داستان رستم و افراسیاب است، و در عهد جهانگیر آویزش های سخت باعسا کر پادشاهی نمود" (مآثرالامرا).

د دبستان لیکونکی د ده د اخلاقي ښېګڼې داسې ښيي:

"احداد مر دی بود عادل و ضابط... و حق مردم رسانیدی و خمس اموال که از جهاد بهم رسیدی، در بیت المال داشتی وآنرا نیز بغا زیان رسانیدی..."دبستان". تر احداد وروسته یې زوی عبدالقادر چې د جلال الدین د لور علایي له نسه و د پلار پر مسند کښېناست او دوه کاله یې په تیرا کښې حکومت وکړ، خو چې شاهجهان پر (۱۰۳۷ هـ) کال ظفر خان د کابل په صوبدارۍ وټاکه او د عبدالقادر په مقابل کښې یې راواستاوه خو



عبدالقادر پر ظفر خان بری وموندد هغه ډېر ملګري یې ونیول او سزا یې ورکړه، او یوازې د ظفر خان مېرمن له دې معرکې څخه په ډېر مشکل ووتله. دا خونړۍ جګړه د تیرا په خرمانه درې کښې وشوه.

تر هغه وروسته عبدالقادر له خپلو تره زامنو کریمداد او محمد زمان سره تل د تیرا د ملي لښکر مشرتوب کاوه، پر (۱۰۳۹ هـ) کال یې له پېښور څخه اووه میله لیرې په یولم ګذر کښې د افغان کمال الدین په هغه غورځنګ کښې ګډون وکړ چې د پېښور په شاوخوا کښې د ډهلي د لښکر پر وړاندې منځته راغلی و خو پر (۱۰۴۴ هـ) کال عبدالقادر د کابل د صوبدار سعید خان لاس ته ورغی او هند ته یې وتښتاوه. همدارنګه د جلال الدین زوی الله داد چې په دغو ملي هڅو کښې د عبدالقادر ملګری و او د افغانانو د ملي تولیو مشرتوب یې کاوه د ډهلي د لښکریانو په لاس هند ته واستول شو، همدا راز د جلال الدین بل زوی کریمداد د (۱۰۴۷ هـ) کال په روژه کښې د شاهجهان په امر په پېښور کښې ووژل شو.

په دې توګه د بایزید روښان کهاله وروستۍ رڼا تر یوې پېړۍ مجاهدې وروسته مړه شوه، خو له ظلم او ستم سره ددغه کهاله مبارزې او د دوی آزادي غوښتنه، مېړانه او خپلواکي غوښتنه به زموږ په ملي تاریخ کښې د تلپاتې یادګار په توګه لیکل شوي وي.

## نومیالي روښانیان:

۱-بایزید پیر روښان د عبدالله اورمړ انصاري زوی د (۹۴۹ هـ - ۹۸۸ هـ) پر شاوخوا.

۲- جلال الدین د بایزید روښان زوی (۹۸۸ - ۱۰۰۹ هـ)

۳- احداد د عمر شیخ زی‌و اود بایزید لمسی (۱۰۰۹ - ۱۰۳۵ هـ)

۴- عبدالقادر د احداد زوی (۱۰۳۵ - ۱۰۴۴ هـ)

(وګورئ ۷۴ نومره نسب پاڼه)

اخځلیك:

د اخوند درویزه تذکرة الابرا روالا شرار - د پښتو د شاعر دولت قلمي دېوان - د بدایونی منتخب التواریخ - د اخون درویزه مخزن اسلام- ماثر الامرا - منتخب اللباب - پادشاه نامه - تزك جهانګیری - عمل صالح - اقبال نامه - دبستان مذاهب - اکبر نامه - طبقات اکبري - ددولا فوز تاریخ هند - فرشته - سروی لسانی هند، لسم ټوك - حیات افغانی - مجلهٔ معارف ۱۹ ټوك - صراط التوحید - تاریخ مرصع - مجلهٔ آثار عتیقهٔ هند د بمبئ چاپ دپښتو ادبیاتو تاریخ دویم ټوك - افغانستان در عصر تیموریان هند - د خیر البیان پښتو خطي نسخه.

# توخیان

(۱۲۰۰ هـ)

د غلجیو افغانانو یو ټبر چې په زابل، د ترنك او ارغند او پر غاړو، د کلات په غرو کښې د مقر تر بریدونو اوسېږي توخي نومېږي.

د ډهلي د تیموریانو او د ایران د صفویانو په وختو کښې د توخیو یوه کهاله ددغو دوو شهنشاهیو په منځ کښې خپل واك ساته، چې پر (۹٦۲هـ) کال د همدغو خلکو یو نومیالی شاه محمد کلاتي په کندهار کښې حکمران و، چې همایون هغه ولایت ورسپارلی و. تر شاه محمد وروسته د اورنګزیب پر مهال له دغه کهاله څخه "ملخی" نومي د کلات حکمران، چې د اورنګزیب دربار رسماً د سلطان ملخي په لقب وپېژاند په هغه فرمان کښې چې د (۱۰۹۳ - ۱٦۸۱م) کال د دریمې خور (جمادی الاولی) پر (۹) د عالمګیر له درباره دده په نامه صادر شو، دی یې د ټولو غلجیو ملك وګاڼه چې د حکمرانۍ برید یې له یوې خوا د صفوي هېواد تر شاوخوا او بلې خوا د هند د عالمګیر دولت تر پولې رسېده، د ده د زړو کلاو کنډوالې تر اوسه د شاه جوی او کلات تر منځ شته.

د ده په وخت کښې د صفویانو او غلجیو ټبرو تر منځ سختې جګړې وشوې چې جبار خان سلیمانخېل (چې د کابل او جلال آباد پر لار په خاك

جبار کښې ښخ دی) يې په ترخ کښې ووژل شو، ملخي د ابدالي ټبر له مشر سره چې خدا داد سلطان نومېد يو ترون وتاړه تر خپلو منځو يې د کندهار د جلدك د ګرماوناوه ويش او بريد وټاکه، دی د اینځرګي او سرې ډبرې (سرخ سنګك) تر منځ د دروازګی په جګړه کښې ووژل شو، دا پېښه د (١١٠٠ هـ ١٦٨٨م) په شاوخوا کښې وشوه او پر ځای يې حاجي عادل کښېناست. تر يوه وخته پورې ده په خپله او د ده زوی بابی خان پر کلات او څېرمه سيمو حکومت کاوه، د ترنك درود پر غاړه د کلات او جختران کلاوې د دوی مرکز و، چې په پای کښې بای خان هم ووژل شو، ښالم (شاه عالم) د علی خان زوی، د ملخي وراره او زوی يې خوشال خان هم څه موده حکمراني وکړه، د دغه کهاله وروستني محلي حکمرانان د خوشال خان زامن اشرف خان او الهيار خان وو چې اشرف د اعليحضرت احمد شاه ابدالي له خوا تر غزني پورې د کلات حکمران شو او پر هند باندې په لومړی حمله کښې له احمد شاه سره ملګری و، د تيمور شاه په وختو کښې د اشرف خان زوی امو خان ته د غلجيانو مشرتوب ورسېد، د دغه کهاله پايڅوړ د امير عبدالرحمن خان تر وختو واك درلود.

نوميالي توخيان:

١- شاه محمد کلاتی (د ٩٦٠ هـ شاوخوا)
٢- سلطان ملخی (د ١٠٩٠ هـ شاوخوا)
٣- حاجی عادل د ملخي زوی (د ١١٠٠ هـ شاوخوا).
٤- بای خان د عادل زوی (د ١١١٥ هـ شاوخوا)
٥- شاه عالم (مشهور په ښالم خان) د علی خان زوی (د ١١٥٠ شاوخوا)



٦- اشرف او الله يار د شاه عالم زامن (د ١١٦٠ هـ شاوخوا)
٧- اموخان د اشرف خان زوی (د ١٢٠٠ هـ شاوخوا)

مأخذونه:

پټه خزانه - صولت افغانی - حيات افغانی - خورشيد جهان - آريانا
٢ - ټوك،تاريخ سلطانی - د توخيو شفاهي روايتونه.

# ابدالیان

(۴۴۰ - ۱۱۴۴هـ)

د افغانستان او هند په تاریخ کښې ابدالیان نامتو تېر دی چې د نامه ریښه یې د (۴۰۰م) شاوخواسپین پوستې آریایي قبیلې ته چې اپتل (Aptal) یا هپتالي نومېده رسېږي. دغې قبیلې په باختر او تخارستان کښې یو غښتلی دولت جوړ کړ، د بریتانیکا دایرة المعارف په وینا مورخانو یې نوم "ابدلوی" هم راوړی دی چې په تاریخونو کښې یې مختلف شکلونه هپتل (اودل) = ابدل، هیطل - یفتل لیکل شوی دی.

اروپایان دا ارایایي هپتالیان سپین هونان (White Huns) بولي. د (هون - هان) د کلمې ریښه په پښتنو کښې تر اوسه د "خان" په شکل پاتې ده، ځکه چې د فیلالوژۍ له مخې پر "خ" د "هـ" اوښتل روا وو لکه د "هوارزم" اوښتل پر (خوارزم) او د "هو" اوښتل په "خه" (خوب). دغو خلکو تر اسلام دمخه د اسیا په زړه کښې حکومت کاوه، او د ایران د ساسانیانو له شهنشاهۍ سره وجنګېدل چې د عربو مورخان دوي د "هیاطله" په نامه لیکي. د ددوی پایځوړ په زابلستان کښې د عربو د راوتو او د اسلام د خپرېدو تر وخته و، چې ډېرلیکونه یې تر اوسه د کندهار شمال خوا ته په روزګان کښې شته د ځینو پاچهانو نومونه یې هم پښتو دي لکه میرکولا



(میر- لمر) او (کولا - کهول).سرېږه پردې د دوی بڼې، اندامونه او جګې پوزې (چې د دوی پر سکو کښل شوي) هم پښتنو ته ورته دي، داسې خرګندېږي چې دا سپین نژادي ارایي قبایل وروسته تر هغه چې افغانستان ته راغلي د پکهت (پښتون) له پخواني عنصر سره یو ځای شوي او د دغه هېواد له پخوانیو کورنیو عناصرو سره ګډ شوي دي.

د اسلامي دورې په تاریخ کښې لومړی نامتو سړی چې د "ابدال - اودل" په نامه یاد شوی د پښتنې قبیلو مشهور نیکه دی چې له خپل نامتو کهاله سره په سلیمان غره کښې اوسېد، دی د ترین زوی، د ښرخبون لمسی او د سړه بن کړوسی و، دده نوم په پښتو ادبیاتو او پخوانیو نسخو کښې (اودل - او د جمع منسوب په ډول اودالی -ابدال) راغلی دی چې د (۴۴۰ هـ ۱۰۴۸ م) په شاوخوا کښې یې پښتنانه قبایل پر ځان راټول کړي وو، د ده له توکمه (نژاده ) ملك سلیمان د عیسی زوی چې په زیرك مشهور و، پښتنې قبیلې له سلیمان غره څخه د کندهار سیمې ته بوتلې او هلته یې مېشتې کړې د خپل ژوندانه په پای کښې یې خپل زوی ملك بارك په یوه لویه جرګه کښې پر خپل ځای کښېناوه، تربارك وروسته د زیرك بل زوی ملك پوپل خپل نفوذ د (اوسني بلوچستان) تر شال او ژوبه ورساوه او تر پېنځه شپېته کلن مشرتابه وروسته د ۸۹ کالو پر عمر مړ شو. تر هغه وروسته یې زوی ملك حبیب او بیا د ملك حبیب زوی ملك بامی د کندهار د قبایلو ولسوالان وو، له سلطان سکندر لودي سره یې (۸۵۵ - ۹۰۰ هـ) د ملګرتیا اړیکي لرل نوموړي سلطان د ملك حبیب مشرتوب رسماً پېژندلی و.

تر هغه وروسته بهلول د کاني زوی او د بامي لمسی او ملك صالح د معروف زوی او د بهلول لمسی تکړه ولسوالان وو، صالح د شیر شاه سوري (۹۴۷ - ۹۶۰ هـ) له دربار سره ښه اړیکي درلودل، او خپل نمایندګان یې

هند ته ولېږل، تر ده وروسته ملك سدو د صالح ورور چې د سدوزيو لومړی نيکه دی په يوه لويه قومي جرګه کښې د کندهار د ولسوالۍ او مشرتابه پر مسند کښېناست (د ۹۶۵ هـ - ۱۵۵۷ م کال د ذيحجې پر ۱۷ زېږيدلی) او د کندهار ارغسان يې خپل مرکز وټاکه خپل دښمن حاجي زله خان يې له منځه يووړ. محمد د بارکزيو مشر (د محمدزيو لومړی پلار) د سدو هممهالی و، د سيد جمالالدين افغان او نورو مورخانو په وينا د صفوی شاه عباس دربار هم په رسميت پېژندلی و (د ۱۰۱۰ هـ - ۱۶۲۱ م شاوخوا) هغه مهال چې سدو د خپل وخت پياوړی سيمه ييز حکمران (۷۵) کلنی ته ورسېد، نو په يوه لويه قومي جرګه کښې يې له خپلو پينځو زامنو (خواجه خضرخان، مودود (مغدود) خان، زعفران خان، کامران خان او بهادرخان) څخه خواجه خضرخان پر خپل ځای ولسوال او قومي مشر وټاکه څلور نوميالي ورونه يې د شاهجهان هممهالي وو چې پر (۱۰۴۷هـ - ۱۶۳۷م) کال د شاهجهان لښکر و، د دوی په مرسته کندهار ونيو او د هغه له خوا د کندهار ولسوالان وپېژندل شول، دوی له ډهلي دربار سره ښه اړيکي نه لرل پر (۱۰۵۰ هـ - ۱۶۴۰م) کال ملك‌مغدود خان او کامران خان ډهلي ته ولاړل او شاهجهان يې په درناوي هرکلی وکړ. ملك مغدود پر (۱۰۵۳هـ -۱۶۴۳م) کال له کابل حکمران امير يحيی سره جګړه وکړه او ووژل شو، کامران فاضل سړی و، پر (۱۰۳۸ هـ - ۱۶۲۸ م) کال يې په پښتو ژبه د "کليد کامراني" په نامه يو کتاب هم ليکلی و. د ګريفن په وينا خضر خان پر (۱۰۳۶ هـ - ۱۶۲۶م) کال مړ شو، ترهغه وروسته يې زامن خداداد سلطان مشهور په خودکی) او شيرخان د کندهار مشران او ولسوالان وو.

خداداد خان له خپلو ګاونډيو غلجيو قبيلو سره دوستانه اړيکي وساتل، په قومي جرګو کښې يې له سلطان ملخي سره مفاهمه وکړه او د



دوستي ټرون يې وتاړه، د دواړو خواو تر منځ يې د ولسواليو ويش له کندهار څخه پنځوس ميله ختيځ ته د جلدك ګرماو او د برين پل وټاکه، د ړوب او بوري ځمکې يې د سليمان غره تر لمنو ونيولې، د (۱۱۰۵ هـ - ۱۶۹۳م) کال په شاوخوا کښې يې ورور شيرخان د کندهار له صفوي حکمران سره ونښت او د کوږك په بند کښې يې صفوي لښکر پوپنا کړ، ده د مغدود خان پر زوی شاه حسين باندې بری وموند او حسين يې ملتان ته وشاړه، همدغه حسين ته عالمګير په سيالکوټ او رنګپور کښې جاګير ورکړی و، د ګريفن په وينا د دکن په جګړه کښې له عالمګير سره پر اووه زريز منصب ملګری و، د ده ورور الله داد خان د دو سوو سپرو د مشرۍ رتبه درلوده، حسين خان پر (۱۰۶۹هـ - ۱۶۵۵ م) کال په رنګپور کښې مړ شو، شجاع خان د احمد شاه ابدالي په وختو کښې، شريف خان د تيمورشاه په دوره کښې او مظفرخان رکن الدوله چې د ملتان د ناظمانو په توګه ټاکل شوي وو، د همدغه حسين اولاده وه.

د سدوزيو ورونو مرکز عموماً له کندهار څخه ديرش ميله ختيځې خوا ته د ښار صفا سيمه وه، چې له صفوي درباره هم د "ميرزا" په لقب پېژندل شوي وو، د ډهلي دربار شيرخان ته د "شهزاده" لقب ورکړی و، له کندهاره تر فراه پورې د ابدالي قبيلو مشرانو لکه بدال خان باميزي، ميرالکوزی او نورو د ده مشرتوب منلی و، تر شير خان وروسته يې زوی سرمست خان او تر هغه وروسته د سرمست خان زوی دولت خان د کندهار ولسوالان شول او د پلرني مشرتابه پر ځای کښيناستل د سلطان خداداد زوی حيات سلطان هم د کندهار ولسوالي دولت خان ته وسپارله او په خپله له خپل ورور لښکرخان او شپږو زرو ابدالي کورنيو سره ملتان ته و لاړ، دولت خان د کندهار ښار له صفوي حکمران سره سختې جګړې وکړې او د

خپلواکۍ بيرغ يې تر غزني او سليمان غره پورې اوچت کړ، دا هغه وخت و چې د ايران صفوي او د ډهلي تيموري دولتونه په خپلو منځو کښې د کندهار ښار پر سر په نزاع سره اخته وو، لکه مخکښې چې مو وويل شاهجهان او عالمگير څو څو ځله کندهار ته لوی لښکر راواستول.

دولت خان چې ددغه ډگر پهلوان و، خپل اقتدار يې خپراوه، دواړې خواوې د ده مرستې ته اړ وې دويم صفوي شاه عباس په هغو ليکونو کښې چې د (۱۰۵۹ هـ - ۱۶۴۹ م) کال پر سر يې دولت خان ته رالېږلې وې دی يې "ايالت پناه" کوتوال قلعهٔ قندهار بللی دی او د يوې داسې خورا لويې صوبې د حکومت دور سپارلو ژمنه يې ورسره کړې وه چې په ايران او هندوستان کښې يې ساری نه و (عباس نامه)

څنگه چې د دولت خان د واکمنۍ لمنه خپره شوه نو پنځوس کاله يې په برياليتوب حکومت وکړ؛ د صفوي دولت د بېگلربيگي واك او اختيار يې يوازې د کندهار په کلا کښې کلا بند کړی و، ځکه نو تر (۱۱۰۶هـ - ۱۶۹۴ م) کال وروسته شاه حسين صفوي زمان خان د کندهار له حکمرانۍ څخه ور وغوښت او د هغه پر ځای يې نصراني گرگين خان گرجي د شاهنوازخان په لقب د کندهار بيگلربيگي وټاکه، دغه ظالم سړی چې د صفوي دولت د ماتې سبب شو، د شپې له خونخوارو سپرو سره په ښارصفا کښې د دولت خان پر کور ورولوېد، دولت خان او د هغه زوی نظر محمد خان يې (د ۱۱۱۵ هـ - ۱۷۰۳م پر شاوخوا) ووژل. ابدالي قبيله د خپل مشر دولت خان په وژنه ډېره خواشينې شوه د هغه زوی رستم خان يې په خپل مشر تابه وټاکه، رستم لايق سړی و، د سرورخان باميزی او کته خان اکوزی په ملاتړ يې د ولسوالۍ چارې پرمخ بيولې، د ده کشر ورور زمان خان په کرمان کښې د يرغمل په توگه د صفوي حکومت په لاس کښې و، ځکه نو رستم



خان له صفويانو سره څرگند مخالفت نه شو کړای خو د کندهار په جنوب کښې يې د بلوڅانو په لاس صفوي لښکر تباه کړ څلور کاله وروسته چې رستم مړ شو، نو ابدالي قبيلې هم بې مشره پاته او سره تيت شوې. د پښتني قبيلو مشرتوب د هوتکو کهاله نامتو مؤسس حاجی ميرويس لاس ته ورغی، ابدالي مشران هرات ته ولاړل هلته يې خپله حکمراني پر پښو و دروله (د ۱۱۱۹ هـ - ۱۷۰۷ م).

دمخه مو وويل چې: حيات سلطان ابدالی د دولت خان پر مهال په ملتان کښې اوسېده هغه وخت چې پر (۱۱۲۳هـ - ۱۷۱۱م) کال کيخسرو خان په کندهار کښې له پينځه ويشت زريز صفوي لښکر سره د ميرويس خان له لاسه تباه شو، عبدالله خان د حيات سلطان زوی له خپل زوی اسدالله خان سره له ملتانه راغی او په هرات کښې يې پرصفوي بيگلر بيگي عباس قلي خان شاملو يرغل وکړ د هرات لوېديز خوا ته د غوريان د دوښاخ په غره کښې ابدالي قبيلې او هراتيان ورسره يو ځای شول، اسفزار يې ونيو او صفوي نوی حکمران - جعفر خان يې مات کړ. دغه افغاني لښکر د (۱۱۲۹هـ - ۱۷۱۶ م) کال د روژې پر ۲۶ هرات هم ونيو، غوريان، کوسان، بالامرغاب او بادغيس يې د هرات له ټولو سيمو سره په خپل حکومت پورې ونښلول. هغه وخت چې فتح علي خان ترکمان له اصفهانه له ستر لښکر سره د دوی پر وړاندې راووت د غوريان په کوسويه کښې يې هغه ټول لښکر تر تيغ تېر او په هرات کښې يې ملي حکومت اعلان کړ، اسدالله په هغه جگړه کښې چې پر (۱۱۳۲هـ - ۱۷۱۹م) کال يې د خاش رود پر غاړه په دلارام کښې له شاه محمود هوتك سره وکړه ووژل شو. عبدالله خان چې د خپل زوی په مړينه ډېر ويرجن شوي و، د هرات د مليونو مشرتوب يې د الکوزی مشر عبدالغني خان پر سلا د دولت خان زوی زمان خان ته چې يوتگړه سړی و، وسپاره. ده

ابدالي قبيلې د هرات له ټولو ملي قواو سره يو کړي او د صفويانو جګړن اميران يې له جعفرخان بيګلربيګي سره يوځای د هرات په ښار کښې ووژل، صفوي دربار صفي قلي خان ترکمان له لوی لښکر سره له مشهده د هرات خوا ته راوکوچاوه، خو د هرات ملي لښکر د زمان خان په مشرۍ صفي قلي او د هغه لښکر د کافر کلا په ډګر کښې ووژل، زمان خان تر دوو کالو او پينځو مياشتو پورې په ډېر برياليتوب حکومت وکړ او پر (۱۱۳۵ هـ - ۱۷۲۲م) کال مړشو.

د زمانخان تر مړينې وروسته د عبدالله خان زوی محمد خان د کندهار له ښوراوکه راغی او د هرات د حکمرانۍ واګې يې په لاس کښې ونيولې تر مشهده پر مخ ولاړ هغه ښار يې څلور مياشتې کلابند (د ۱۱۳۶هـ - ۱۷۲۳م په شاوخوا کښې) او خپل واك يې په خراسان کښې خپور کړ، د غوريان لوېديځ خوا ته يې د سنګان کلا ونيوله، خو ابداليانو دی بې واکه کړ، پر ځای يې د زمانخان مشر زوی ذوالفقارخان د کندهار له ښوراوکه راوغوښت او خپل امير يې وټاکه (۱۱۳۶هـ) د زړه بدي د ليرې کولو له پاره ملي جرګه جوړه شوه، دې جرګې د باخرز و بادغيس حکمراني ذوالفقارخان ته ورکړه او د عبدالله خان زوی رحمان خان يې د فراه په حکمرانۍ وګماره او په هرات کښې يې د مليونو د مرکزي حکومت له پاره د عبد الله خان بل زوی الله يارخان له ملتانه راوغوښت (۱۱۳۸ هـ - ۱۷۲۵ م).

الله يارخان او ذوالفقارخان زړور مېړونه وو، د نادرشاه افشار د تيري ګرو لښکرو پر وړاندې يې سخت جنګونه وکړل، پر (۱۱۳۹ هـ) کال چې نادرشاه مشهد ونيو او اته زريز لښکر يې د سنګان کلاته واستاوه نو د هرات حکمرانانو په يوه ملي جرګه کښې د نادر پر وړاندې خپل ملي ځواك راټول کړ او پر (۱۱۴۱ هـ - ۱۷۲۸م) کال الله يارخان په تربت جام کښې د نادري



لښکر مخه ونيوله، نادر د يوه ليك په لېږلو الله يارخان ته د روغې وړانديځ وکړ خو ونه منل شو په کافر کلاکښې جګړه ونښته او د نادر پښه ټپي شوه د هرات لښکر پر شاشو هرات ته راغی خو الله يار خان بيا له خپل لښکر سره له هرات څخه دوه فرسخه ليرې د پريان په رباط کښې د نادر مخې ته ورغی، ذوالفقار هم د جبهې شاته د ده ملاتړ کاوه، نادرشاه اړشو چې له دوی سره روغه وکړي او پر هرات باندې د دوی د حکمراني ومني، هغه و، چې تردوو مياشتو پرله پسې جګړو وروسته د ( ۱۱۴۱ هـ - ۱۷۲۸ م ) کال د ذوالحجې د مياشتې پر څلورمه بېرته مشهد ته ولاړ.

يو کال وروسته د هرات مليونو د عبدالغني الکوزي په قيادت الله يارخان مروچاق ته واستاوه او د هغه پر ځای يې د هرات حکومت ذوالفقار خان ته وسپاره (۱۱۴۲ هـ - د شوال ۳) ذوالفقار د لښکر په سمبالتيا لاس پورې کئ او په اتوزرو تنو يې د مشهد ښار کلابند کړ د (۱۱۴۳هـ - ۱۷۳۰م) کال د محرم تر ۱۳مې يې جنګ وکړ او بېرته هرات ته لاړ، له هاخوا د نادر شاه له لوري بيا د هرات د نيولو په تکل راغی او پر (۱۱۴۳ هـ ۱۷۳۰م) روژه يې دا ښار کلابند کړ، څنګه چې له کندهاره شاه حسين هوتك هم د هرات له ساتونکيو مليونو سره مرسته وکړه ځکه نو ذوالفقار هم په ډېره مېړانه جګړه کوله او ښار يې دښمن ته نه سپاره، دا مهال بيا الله يار له مروچاق څخه راغی او (د ۱۱۴۴ هـ - ۱۷۳۱ م کال د صفرې پر ۱۸) هرات ته ننوت، ذواالفقار هم د جګړې واګې ده ته وسپارلې او په خپله له خپل کشر ورور احمدخان سره (چې وروسته احمدشاه ابدالي شو) کندهار ته ولاړ همدا بېلتون کټ مټ د مليونو د کار د سستيدو سبب شو. الله يارهم له نادر سره په مېړانه وجنګيد او تريوکال پورې يې هرات وساته خو په پای کښې له هغه ښاره ووت او د ملتان خواته لاړ، نادر پر هرات برې وموند او

پر هرات باندې د ابداليانو د مشر تابه دوره د (١١۴۴هـ - ١٧٣١م) کال د روژې پر لومړۍ پای ته ورسېده، تر هغه وروسته پر (١١٦٠هـ - ١٧۴٧م) کال په کندهار کښې احمدشاه ابدالي بيا د افغاني سلطنت بنسټ کښېښوو او هرات د پخوا په شان د افغاني هېواد يوه برخه شوه.

د هرات د ابداليانو د حکمرانۍ سيمې:

هرات ښار او شاوخوا يې - اوبه - شافلان - کوسويه - غوريان - پوريان - جام - لنګر - خواف - باخرز - زوزن د مشهد تر بريده - او جنوب خوا د هلمندله غاړو تر ميوند، فراه او سيستان پورې او شمال خوا بادغيس او آب مرغاب.

## د کندهار ابداليان:

١ - ملك اودل = ابدال د ترين زوی (۴۴٠ هـ شاوخوا)

٢ - ملك سليمان زيرك د عيسی زوی (د ٧۵٠ هـ شاوخوا)

٣ - ملك بارك د زيرك زوی (د ٧٦٠ شاوخوا)

۴ - ملك پوپل د زيرك زوی (٧٨٣ هـ شاوخوا)

۵ - ملك حبيب د پوپل زوی (د ٨٠٠ هـ شاوخوا)

٦ - ملك بامي د حبيب زوی (د ٨۵٠ هـ شاوخوا)

٧ - ملك بهلول د کاني زوی او د بامي لمسی (د ٨٩٠ هـ شاوخوا)

٨ - ملك صالح دمعروف زوی اودبهلول لمسی (د ٩۵٠ هـ شاوخوا)

٩ - ملك سدو د مغروف زوی د بهلول لمسی (پر ٩٦۵ هـ زيږېدلی او پر ١٠٣١ هـ مړدی)

١٠- خضر خان د سدو زوی (پر ١٠٣٦ هـ مر دی)

١١ -ملك مغدود دسدو زوی اوکامران دسدو زوی(١٠۵٠هـشاوخوا)

١٢ - خدادادسلطان او شېرخان د خضرخان زامن (١٠٧٠هـشاوخوا)



١٣ - سرمست خان د شير خان زوی (د ١١١٠ هـ شاوخوا)

١۴ - دولت خان د سرمست خان زوی (د ١١١۵ هـ شاوخوا)

١۵ - رستم خان د دولت زوی ( د ١١١٩ هـ شاوخوا)

## د هرات ابداليان:

١٦ - حيات سلطان د خداداد سلطان زوی ( د ١١٢٣ هـ شاوخوا)

١٧ - عبدالله خان د حيات سلطان زوی ( د ١١٣٠ هـ شاوخوا)

١٨ - زمانخان د دولتخان زوی ( ١١٣٢ هـ - ١١٣۵ )

١٩ - محمدخان دعبداللهخان زوی ( د ١١٣٦ هـ شاوخوا)

٢٠-ذوالفقار خان دزمانخان زوی (١١٣٦ هـ - ١١۴۴ هـ )

٢١ - الله يارخان د عبدالله خان زوی ( ١١٣٨- ١١۴۴هـ)

٢٢ - رحمان خان د عبدالله خان زوی (١١٣٨ -١١۴۴ هـ)

اخځونه: بريتانيکا دائرة المعارف-آريانا مجله ٣ ټ کابل - پټه خزانه د کابل چاپ - مخزن افغاني قلمي - تاريخ سلطاني د سلطان محمدخالص کندهاري د ١٢٩٨ د بمبيي چاپ - تذکرة الملوك د راورټي په حواله - لوی احمد شاه بابا د کابل چاپ - آئين اکبري - تاريخ احمد قلمي - خورشيد جهان - تتمة البيان - تاريخ نادرشاه - روضة الصفای ناصري ٨ ټوك - جهانکشای نادري - عمل صالح ٢ ټوك - تاج التواريخ ٢ ټوك - تاريخ ايران د سرپرسی سايکس - خلاصةالانساب خطی - کابل مجله ٢ ټوك - نادرنامه، منظوم خطی - پښتانه شعراء، لومړی ټوك ١٩۴۵ کال کابل کالني - صولت افغاني - مجمع التواريخ - مشاهيرابداليان - عباسنامه - تاريخ روسای پنجاب- شوکت افغانی - احمد شاه بابا د کابل چاپ د مير غلام محمد غبار تاليف.

(٧۵ نومره نسبليك وګورئ.)

# هوتکیان

## (۱۱۲۰هـ - ۱۱۵۰ هـ)

د دغه لنډ تاریخ په پیل کښې مو د پښتون کهاله په اړه ولوستل چې د پښتون له درو زامنو څخه یو هم بیټنی یابیټ نیکه نومېد، د دغه شیخ له پښته او د متو له نسه چې د ده لور وه، د (غرزي - غلجي- غلزي) په نامه د پښتنو د مشهورو غلجیو قبیلو تېرونه مشهور شول.

دا نوم بېشکه "غرزی" د "کوهزاد" په مانا دی، ځکه چې په افغانستان کښې د سړیو او ځایو د زیاتو نومو رېښې د پښتو د "غر" له کلمې څخه راوتلې دي او ان د غور - غرچه - غرج- غلج- خلج ټولو کلمو ریښې له دې کلمې څخه جوړې دي، چې په منځنۍ آسیا کښې د ځایو او قبیلو له پاره کارېږي.

توماسچك وایي چې د ګر "GAR" یعنې غر کلمه لرغونې باکتري دري کلمه ده او "غرچه" د آمو لوړې خوا ته د غرني ولایت د آریایي اوسېدونکیو نوم دی، له دې کبله نو غرچه، خلج، غلج او غرچ د غره د زوی یا غرزی او (کوهزاد = کهزاد) په مانا دی.

د "غر" کلمه چې اوس په پښتو کښې د غره په مانا ژوندۍ ده د اوېستا په "هوم یشت" کښې "ګیری" راغلې چې په خورده اوېستا کښې هم



لیدل کېږي، په سنسکریټ کښې هم "ګیر" او "ګیری" "GIRI" د غره په مانا و، ان عربانو د پخواني ګرشاد لقب (ملك الجبال) په معرب ډول جرشاه کړی دی. (د تاریخ طبرستان ٥٦ - ۱۸۳ مخونه)

په پښتو کښې غرڅه - غرڅنی د (کوهي - غرني) په مانا دی چې د غرچه او غلچه = غلجی نوم له هغه څخه راوتلی دی او غلجیان د پامیر او زرافشان د رود په درو کښې اوسي.

عربي جغرافیا لیکونکیو هم دغه ټکي ته اشاره کړې ده چې "غر" د "جبل" په مانا د غرشستان او غرجستان په تاریخي نومو کښې دخیل و، یاقوت د البشاری په حواله وایي چې: غرج اصلاً د غره په مانا دی خراساني مؤرخانو چې دا کلمې له خپلو هېوادوالو څخه اورېدلې دي د "غرجستان" نوم یې په اصلي شکل "غرستان" لیکلی دی چې له غر+ستان څخه عبارت دی (غر - د کوه، په مانا او "ستان" د ظرفیت پخوانۍ علامه ده).

لکه منهاج سراج جوزجاني چې د دغه هېواد له خلکو څخه و، زیاتره د عربو د غرجستان او غرشستان پر ځای غرستان لیکي، د طبقات ناصري په زړو خطي نسخو کښې څو ځایه غرستان لیدل کېږي.

په هر حال غلجي = غلزي یو پخوانی نوم دی چې مانایې د غره زوی ده. د افغاني غلجیانو لومړی نیکه په همدغه نامه یادېده، ده درې زامن لرل چې نومونه یې هم آریایي زړو نومو ته بیخي ورته دي:

توران - تولر - بولر - موږ پوهېږو چې "تور" له هغو پخوانیو آریایي نومو څخه دی چې په اوېستا کښې راغلی دی دا نوم تر اوسه په پښتنو کښې په بېلا، بېل ډول (تور- تورانی- تورك- توری) رواج لري، همداراز "بولر" یا "بلور" یو زوړ نوم دی چې د ګلګت تر سیمو د نورستان پر خلکو اطلاقېده، د ((بارتولد)) په وینا تر اوسه هم د هغه ځای ځینې تور پوښه قبایل ځانونه

"بلور" بولي، دا کلمه تر ۱۸ پیړۍ پورې په چیني کتابو کښې لیدل کېږي . محمد حیدر دوغلت چې د (۹۳۲هـ) په شاوخوا کښې ژوندی و، پردې سیمو یې حکمراني کوله نو د کشمیر له ناوې څخه د کابل ترناوې پورې او شمال خوا تر یارکند او کاشغر پورې یې داسیمې بلور او بلور ستان وبللې ترده دمخه منهاج سراج او محمد غوفی د غوري دورې مؤرخان د شغنان، تخارستان او درواز د غرو په لړ کښې بلور هم راوړي مستربیلو وایې چې:

بولر یابلور د باختر د کلمې طبیعي تحریف دی. په هر صورت د غلجي، توران، تولر، بولر کلمې او نومونه ټول دا راښیي چې دوی پخوانی آریایي ریښې لري او هم دا زیاتوي چې افغاني غلجیان هم له ارایایي نژاد سره ټینګه اړه لري.

خو (هوتك) (د کندهار او کلات له غلجیو قبیلو څخه) د هوتکو د قبیلې لومړي نیکه چې د پښتو اشعار یې د پټې خزانې په واسطه موږ ته رارسېدلي، د انساب پېژندونکیو په وینا د بارو زوی او د پورتني نومورې تولر لمسی و، چې ده د ملکیار، یوسف، دولت او عرب په نومونو څلور زامن درلودل، د هوتکو د پاچهۍ د موسس میرویس خان پلار ښالم خان په اتم پلار په دې توګه ده ته رسېږي:

ښالم د کرم زوي، د مند لمسی، د عمر کړوسی، د جلال الدین کوسی، د قطب کودی چې هغه بیا د اسحاق زوی، د حسین لمسی، د ملکیار کړوسی او د هوتك کوسی دی.

د هوتکو کهاله غرې د ترنك او ارغنداو پرغاړو سیمه ییز ولسوالان و، لکه چې وویل شول له چنګیزیانو سره یې سختې جګړې وکړې، خو د د دوی د ژوندانه ښکاره څرنګوالی لاس ته رانه غی، یوازې دا معلومه ده چې تر میرویس خان دمخه د کندهار له جلدکه تر غزني د غلجیو قبیلو مشر تابه



او ولسوالي په سلطان ملخي توخي پورې اړه درلوده چې دمخه یې یادونه وشوه.

د میرویس خان پلار ښالم خان چې د خپل وخت له مشرانو څخه و، د سلطان ملخي لور نازو نومې یې په نکاح کړه، چې د هغې له نسه څلور زامن حاجي میرخان، عبدالعزیز، عبدالقادر، او یحیی خان و زیږېدل.

له دغو زامنو څخه حاجي میرخان یا میرویس خان هغه نومیالی و، چې له غزني څخه ترکندهاره یې خپل نفوذ خپور کئ، د توخي او ابدالي د دوو ټبرو (چې له کندهاره ترغزني یې حکومت کاوه) او د ډهلي او اصفهان د دوو شاهنشاهیو د تاریخي نفوذ تر منځ یې په ولسي چارو کښې لوی لاس درلود، په کندهار کښې یې د خپلواك سلطنت بنسټ کښېښوو، د سید جمال الدین افغاني او سلطان محمد خالص په وینا دی د متین فکر او لوړو اخلاقو څښتن او هم ښه زړور سړی و، دا چې له یوې خوایې مور د توخي حکمرانانو له کهاله وه، او له بلې خوایې د ابدالي کامران خان (چې د مخه یې یادونه وشوه) خانزاده نومې لورکړې وه، څکه نو ابدالي او توخي قبیلو دواړو د ده ملاتړله. له بل پلوه د ده خپل کهول هم له ډېرو پیړیو راهیسي په هوتکو کښې نفوذ درلود او ولسوالي یې کړې وه.

د همدغو ورتیاو له مخې میرویس د کندهار د ابدالیو او غلجیو د ټبرو له خوا د "بابا" په لقب وپېژندل شو، هغه وخت چې صفوي نصراني حکمران ګرګین خان کندهار ته راغی او پر خلکو یې هغسې ستمونه وکړل چې د زغملو نه وه، نو میرویس څلور واره اصفهان ته ولاړ د شاه حسین صفوی دربار ته یې د خلکو فریاد ورساوه او هم یې د دربار اوضاع له نژدې څخه وکتله، دده یو ملګري "ریدي خان" په خپل منظوم کتاب "محمود نامه" کښې چې د میرویس د زوی په نامه یې نظم کړی دی د میرویس دا د خواهی

او د شاه حسین صفوي خواب داسې بیانوي:

چې میرخان تللی اصفهان ته ونه
مخ یې مکې د پاك سبحان ته ونه
پاچا تې عرض کړ تول حال د پښتون
د ګرګین ظلم بد احوال د پښتون
پاچا ویل: زه نسوای کولای چاره
د ګرګین خان ظلم و ستم د پاره
که یې معزول کړم کندهار نه پرېږدي
جور وستم او خپل شعار نه پرېږدي
ګرګین خو ګرګ دی ګرګ خو ظلم کوي
وینې تووینه هم پسونه څیري
زه هم خایف یم چې به څه کړم ګرګین
نامسلمان دی، ارمنی دی، بې دین
نه په اسلام کښې ځان پا بند ګڼینه
نه نصراني نه له عیسی بیرینه
بیرېږم زه چې خدای کړي قهر ښکاره
د سلطنت په رڼا کور سي تیاره
میرخان ویل: ای حسین پاچا وګوره
حال د حاکم او رعایا وګوره!
ګرګ دی ایله کړئ پررمه سو شبان
جور و ستم کاندي بیحد ګرګین خان
موږ له طاقت نسته چې کړو به زیاتي
صبر پر ظلم د ظالم ارمني



دا څلورم واردی راځم سلطانه
عرض د ظالم له لاسه کړم سلطانه!
که پاچا نه کړي داد خواهي د مظلوم
ظالم حاکم کا، ظلم ډېر په محکوم
جور چې ډېر شي سلطنت شي برباد
د ظلم قصر پوپنا بې بنیاد

عربیه:

الملك یبقی مع الکفر ولایبقی مع الظلم
کافر کولای سلطنت شي مدام
که وکړې داد، نه وي جابر پرانام
مګر ظالم خو نسي کړای سلطنت
خالق رحیم دی، ورکوی خلافت
چا ته؟ چې زړه یې وي په مهر ودان
د خدای عیال ګڼي پر مځکه انسان
سلطانه! واوره په ښي غوږ دا وینا
مکړه ستم د خلق الله په هر چا
د ستمګارو پای ورانی دی، خراب
د ظلم اور یې کا په خپله تراب
د مظلوم آه داسې کاري وي ګوره
چې اور یې نه ځي د ظالم له کوره
لمبې په بلې کا د ظلم په کور
تولې به کاندي بېنوا په دې اور

ښـايـي ظـالـم چې رحم وکــا پـه ځـان
په ظلم خوار نه کړي خپل ځان او جهان
سلطانه! ګـوره پـر ځـان رحـم وکـــړه
_خپـل کـلی کـور پـه جـور مـه ورانـوه"

خو دا چې صفوي پاچا د میرویس فریاد وا نه ورید او د اصفهان له درباره نا امیده شو، نو له هغه ځایه بیت الله ته ولاړ، د عربو له عالمانو څخه یې له ګرګین سره د جنګ جواز او د هغه د وژلو فتوا واخیسته، په اصفهان دربار کښې یې هم دومره نفوذ وموند چې درباریان یې پر ګرګین بد ګمانه کړل، تر هغه وروسته حاجي میرویس کندهار ته راغی، هلته یې د ارغنداو پر غاړه (له کندهار د اوسني ښار څخه شپږ میله لیرې) په کوکران کښې یوه لویه ملي جرګه جوړه خلکو ته یې د اصفهان د دربار او ضاع بیان او د حجاز د علماوو فتوا ښکاره کړه او له دوی څخه یې تعهد واخیست.

په دویمه جرګه کښې چې د کندهار ښار ختیځ ته شل میله لیرې په مانجه کښې جوړه شوه او په هغه کښې د کندهار د زیاتو قومو مشرانو لکه سیدال خان ناصر، بابو خان بابی، بهادر خان، پیر محمد میاجي هوتك، یوسف خان هوتك، عزیز خان نورزی، ګلخان بابر، نورخان برېڅ، نصرو خان الکوزی، یحیی خان د میرویس ورور، محمد خان د هغه وراره او یونس خان کاکړ ګډون کړی و، د خپلواکۍ د اعلان وثیقه لاسلیك شوه او ټولو په قران عظیم الشان لوړه وکړه.

تر هغه وروسته میرویس د کندهار د ټولو قومونو په مرسته د صفویانو بیګلربیګي ګرګین خان او د هغه ټول لښکریان ووژل، کندهار ښار یې ونیو او د ګرګین وراره الکسندل میرزا د هغه ستمګر مړی واخیست او له ښځو او کوچنیانو سره یې هرات ته وتښتېد.



وروستني مؤرخان د دغه ملي مشر د آزادۍ غوښتلو د غورځنګ پر نېټه اختلاف لري: مثلاً شېر محمد یې د (۱۱۲۰هـ) کال د صفرې میاشت او سلطان محمد یې د (۱۱۲۱هـ) کال صفره لیکي، خو نواب صمصام الدوله د هغې پېښې کال (۱۱۲۰ هـ) ګڼلی او خافی خان مؤرخ وایي چې پر (۱۱۱۹هـ) کال په هند کښې د محمد اعظم شاه دربار ته د ګرګین د وژلو خبر ورسېد کلنل ملیسون د افغانستان په تاریخ کښې (۱۷۰۹م - ۱۱۲۱هـ) کال لیکلی دی، آو میرزا محمد خلیل صفوی (۱۱۲۲هـ) کال ښوولی دی.

خو د پټې خزانې روایت لیکونکی تر ټولو مؤرخانو موثق او د اعتبار څښتن دی. هغه پېښې په خپلو سترګو لیدلي او هم یې مستقیماً له خپل پلار څخه روایت کړي دي چې: "پر ۲۹ د ذیقعدة الحرام سنه (۱۱۱۹) هجري د حاجي میر خان د خپلواکۍ دغه پاڅون د ګرګین او صفویانو د لښکر په وژل کېدو پای ته ورسېد.

کندهار د جغرافیي موقعیت له اړخه د ایران او هند د دوو شاهنشاهیو تر منځ ډېر ارزښت لاره، هغه وخت چې ملي مجاهدینو د میرویس په مشرۍ په کندهار کښې د خپلواکۍ بیرغ پورته کړ، د هند تیمور دربار د دغه خبر په اورېدو ورېږدېد او د پښتنو خپلواکۍ یې د ځان له پاره لوی ګواښ وباله، دا ځکه چې د هند تیموري حکمداران د غوریانو، خلجیانو او لودیانو د امپراتورۍ او له بیا راژوندي کېدو څخه وېرېدل، لکه صمصام الدوله او خافي خان چې لیکي:

هغه وخت چې د افغانانو د خپلواکۍ د اعلان خبر د هند تیموري دربار ته ورسېد نو په ښکاره یې د مجبوریت په سبب د افغانانو خپلواکي تر یو ځایه په رسمیت وپېژنده، خو په پټه یې د اصفهان له دربار سره مخابره او مفاهمه وکړه چې د دې پېښې د مخنیوي له پاره چې د خافي خان په

تصریح د دوارو هېوادو او ولسونو له پاره د صایبې رایې مخالفه پېښه وه ډېر ژر زیار وباسي (منتخب اللباب) خو حاجي میرویس چې د دوی قوي شاهنشاهیو تر منځ خپل خطرناك موقعیت ښه پېژانده، په دریمه جرګه کښې یې د اولس مشران راغونډ کړل وروسته تر هغه چې د افغاناولس سیاسي دریځ یې د دوو ختیزو او لوېدیزو دولتو تر منځ وښووه او د هغوی قوتونه یې څرګند کړل نو ویې ویل: "که زما سره یو شئ او زما ملا وتړئ نو د خپلواکۍ بیرغ به هسك وساتو، او پرې به نه ږدو چې بیا د پردیو مریتابه کړي. زموږ په غاړه کښې ولوېږي، هغه کسان چې د پردیو مریتوب مني موږ له هغه سره هېڅ اړه او خپلوي نه لرو او نور دې زموږ په هېواد کښې نه اوسي".

ملي جرګې چې د ملي مشر وینا واورېده نو ده ته یې د موافقت لاس ورکړ او ټینګه ژمنه یې ورسره وکړه چې د ژوند تر وروستۍ سلګۍ پورې به د خپلې ملي خپلواکۍ او آزادۍ ساتنه کوي". (تتمة البیان)

د ګرګین او د هغه د ملګریو د وژلو خبر د ګرجي د لښکر د هغه بقیة السیف په واسطه اصفهان ته ورسېد چې د ګرګین له خوا د پښین سیمې د ترین تبر د مخنیوي له پاره هغې خواته تللی وو، د بېرته راګرځېدو په وخت کښې میرویس شړلی او پارس ته تښتېدلی وو، پخپله میرویس هم صفوي پاچا ته لیك واستاوه، د افغان او فارس جګړې د کتاب لیکوال په وینا په هغه لیك کښې یې لیکلي وو چې: پاچا دې له تدبیره کار واخلي، کندهار ته دې لښکر نه رالېږي، ځکه ټول افغانان د دوی وژلو ته توره په لاس ولاړ دي، او که مجبوره شي ښایي چې کندهار د ډهلي پاچا ته وسپاري، ځکه نو ښایي چې صفوي پاچا ددغه هېواد سیاسي موقع په نظر کښې ونیسي" همداشان یې د ډهلي دربار ته لیك واستاوه او په هغه کښې یې د دوارو خواو، یادونه وکړه او تمه یې ورپیدا کړه چې که د هند دربار دده مرسته وکړي په



راتلونکي وخت کښې به د صفوي توابعو یوه برخه د اصفهان پر خلاف ویاروي.

خو صفوي دربار وغوښتل چې میرویس د ګواښلو او بیرولو له لارې د ځان تابع کړي، ځکه یې میرویس ته یو استازی راوستاوه، چې د ملیسون په وینا جاني خان او د مرجان ملکم او سید جمال الدین افغاني په وینا محمد جامي خان نومېد، دغه استازي له صفوي درباره یو پیغام راوړی و چې: د ایران پاچا د ګرګین وژل بخښي، خو میرویس باید اطاعت ته غاړه کښېږدي او صفوي لښکر کندهار ته پرېږدي. سربېره پر هغه نوموړي استازي افغاني مشر د مقابل لوري له عظمت او شوکت او د دغه کار له ناوړې پایلې و ډاراوه خو میرویس چې کلك زړه او ټینګ اعصاب لرل په ډېره مېړانه یې داسې ځواب ورکړ:

"ته فکر کوې چې عقل او حکمت یوازې په ناز او نعمت کښې لاس ته راځي او زموږ په غرو کښې کښې یې اثر نه شته - ستا پاچا که څه کولای شوای خپل کار یې په زور پر مخ بېوه، دغو بې ګټو خبرو ته به اړنه و ..." (سرجان ملکم).

میرویس امرو وکړ چې: هغه درې ملي صفوي استازي زندان ته بوځئ، د ملیسون په وینا په دغه کار کښې یې دوه لوی مقصده درلودل، لومړی دا چې د ایران د دربار ځواب ځنډنی شي چې لښکر رالېږل هم وځنډېږي، بل دا چې د اصفهان دربار ته څرګنده شي چې د افغاني خپلواکۍ بیرغ ټیټېدونکی نه دی او د صفوي دربار تهدید او تطمیع د ده او نورو زړورو افغانانو پر روح څه اغېزه نه لري.

څنګه چې د لومړي سفیر را استول د میرویس خان آزادۍ پال هوډ مات نه کړ نو د اصفهان درباریانو له یوې بلې وسیلې څخه کار واخیست او د هرات حکمران محمد خان بلوڅ یې چې د میرویس پخواني دوست او د حج

په سفر کښې هم ورسره و، د سفارت په توګه کندهار ته واستاوه، چې په دوستانه ډول له افغان ملي مشر سره خبرې وکړي، او د خپلواکۍ تود نغری په دوستانه نصیحتو سوړ کړ، خو افغان مشر نوي استازي ته وویل:

"خدای ته شکر باسه چې ستا د ملګرتیا حق مې سترګو ته درېږي، که دا نه وای نو تابه هم د نورو په شان پاداش لیدلی وای - زموږ د غرو آزاد خلك د بیا مریتابه په کړۍ کښې نه شي لوېدلای، زړورو زمریانو زنځیر شلولی دی او له تیکو را ایستلی شوې توري بېرته په تیکو کښې نه ننوځي.

"میرویس د دوستۍ د درناوي په بنسټ محمد خان په ښه عزت وساته او په دې وسیله یې د اصفهان دربار ته څرګنده کړه چې: دی او د ده قوم به خپله ملي خپلواکۍ بیا له لاسه ور نه کړي، د میرویس د دغه مېړني دریځ نه ماتیدونکی هوډ پر وړاندې د اصفهان دربار د هرات حکمران ته چې د محمد خان پر ځای ټاکل شوی و، پر (۱۱۲۲هـ - ۱۷۱۰م) کال امر وکړ چې پر کندهار یرغل وکړي، خو میرویس له پېنځو زرو پښتنو سپرو سره د هغه مخه ونیوه او سخته لویه ماته یې ورکړه.

په راتلونکو (۱۸) میاشتو کښې د اصفهان له خوا څلور ځله پر میرویس او آزادی غوښتونکیو **افغانانو** باندې لښکرکښۍ وشوې، خو ټول بېرته ناکام پرشاولاړل، وروستۍ پلا پېنځه زریز لښکر د تبریز د حکمران محمد خان په مشرۍ دې خوا ته وګمارل شو چې یوازې پنځوسو پښتنو سپرو پر شا وشړل، تر زرو زیات کسان یې په جنګ کښې ووژل او ټپیان پر ډګر پاتې شول، په خپله حکمران هم له درو زامنو سره د پښتنو جنګیالیو په لاس کښېیووت.

دغو پرله پسې ماتو او ناکامیو د اصفهان دربار اړ کړ چې لویه لښکرکښي وکړي، ډېر په قهر شو او خورا لوی خونخوار لښکر یې راوېبوست



د دغه لوی لښکر سالاري یې د ګرجستان حکمران او د وژل شوي ګرګین وراره خسرو خان یا کیخسرو خان ګرجي ته وسپارله چې د دربار له زبردستو کسانو څخه و، دا ځکه چې ګوندې خسروخان به د خپل تره د غچ اخیستلو له لارې له جوشه ډك کار پر مخ بوځي، هغه و، چې خسرو د کندهار خوا ته پر مخ راغی او په فراه کښې یې واړول، په دې لویه لښکرکښۍ کښې د خراسان ټول امیران، د هرات حاکم او د کرمان حکمران علي قلي هم د خسرو ملګري وو. دا مهال میرویس خان د پټې خزانې د لیکوال پلار داود خان هوتك په فراه کښې د افغاني ځواکونو مشر وټاکه، چې همهلته له خسرو سره ونښت، خو خسرو پر مخ راغی او میرویس له لږ قوت سره ګرشك ته نژدې د هلمند پر غاړه تیار ناست و، د میرزا محمد خلیل په وینا د خسرو لښکر پنځوس زره سپاره او پلي لرل، چې بشپړه توپخانه او خزانه هم ورسره وه او په هغه کښې (۱۲۰۰) نه خالص ګرجیان وو، چې خاص د ګرګین د غچ اخیستلو له پاره راغلي وو، بالمقابل پښتني ملي قواوې لږې وې، ځکه نو را پر شاشوې، او د خسرو لښکرو کندهار کلابند کړ (۱۱۲۳هـ - ۱۷۱۲م).

کندهاریانو د ښار په ساتلو کښې په ډېره مېړانه پښتې ټینګې کړې او په هره حمله کښې یې صفوي لښکر پرشا وواهه، په خپله میرویس هم خپل قوتونه له سره نوي راغونډ کړل او د کندهار د جنوب له خوا یې د بلوڅو د پښین د ترینو او نور قومونه د وطن ساتنې له پاره راوپارول او د خسرو پر لښکر یې یرغل وکړ، د ذخیرو د رارسېدلو لاره یې پر وتړله. خسرو چې خپل نیم لښکر په دې اخ وډب کښې بایللی و، ویې غوښتل بېرته پارس ته وتښتي، خو میرویس له خپلو (۱٦) زرو تنو سره پر هغه یرغل وکړ، د جان ملکم په وینا د صفوي تېرکوونکیو له (۲۵) زرو تنو څخه یوازې پېنځو سوو تر اووسو تنو پورې له مړینې ځان وژغورلای شو.

خسروخان هم په جګړه کښې د خپل اکا په څیرو وژل شو، د اد (۱۱۲۳هـ) کال د روژې پر ۲۸ مه (او د مجمع التواریخ په وینا پر ۱۱۲۴هـ) پیښه شوه، تر دې خونړۍ جګړې وروسته چې کندهاري ننګیالیو، صفوي تېري کوونکي ټول ووژل، د اصفهان دربار یوبل لوی خونړی لښکر د محمد رستم خان په مشرۍ کندهار ته راواستاوه، خو دا چې د ملي مشر مټ او بازو د ولس په یووالي او مرسته ډېر سخت غښتلی و، نو ځکه دغه لښکر هم هېڅ ونه کړای شول او مات شو، رستم د دې له پاره چې د خپلو اسلافو په برخلیك اخته نه شي بېرته پارس ته پرشاسو (۱۱۲۶هـ - ۱۷۱۴م).

همدارنګه محمد زمان قورچي باشي هم له اصفهانه له لوی لښکر سره کندهار ته راواستول شو، چې د میرزا خلیل په وینا د بسطام په سیمه کښې دی هم ووژل شو. ځکه چې په دې وخت کښې چې د هرات ملیون هم (لکه چې وویل شول) د ابدالي امیرانو په مشرتابه له متجاوزو صفویانو سره مقامت کاوه، ځکه نو تر هغه وروسته کندهار ته د صفوی لښکر را استول ممکن نه شول او میرویس هم په کندهار کښې د ښه واك خاوند او غښتلي ملي مشر شو، چې خلکو ورته د "بابا" لقب ورکئ.

ده په دې وخت کښې د ډهلي له دربار سره خپل سیاسي اړیکي ډېر ښه ساتل او د کندهار ملي دولت یې هغه دربار ته په رسمیت ور وپېژندلی و په پای کښې یې دسیاسي دوستانه اړیکو د لاټینګښت له پاره خپل ورور حاجي امکو د سفیر په توګه د هند تیموری پاچا فرخ سیر ډهلي دربار ته واستاوه او د هغه په لاس یې دوستانه سوغاتونه ورولېږل، د ډهلي دربار هم د کندهار ملي حکمران په رسمیت وپېژاند او د حاجي امیرخاني "خطاب یې د "توري" او "پیل" له سوغاتو سره د میرویس ملي دربار ته راواستاوه (مجمع التواریخ) چې په دې سیاسي وسیله میرویس د خپل هېواد له ختیز اړخه تر



یوه ځایه ډاډه شو. د میرویس د حکمرانۍ بریدونه له فراه، شین ډنډ (سبزوار) او سیستان څخه نیولي تر پښین او د سلیمان غره تر لمنو او شمال خوا تر غزني پورې رسېدل، پر ابدالي او غلجي قبیلو یې په مساوي توګه حکومت کاوه بلو ځانو هم ورسره مرسته او ملګرتیا کوله. ده د شاهۍ لقب ونه مانه، او په هغه جرګه کښې چې د کندهار قومو د ده د سترو خدمتو د ستایلو له پاره دی په خپله پاچهۍ مانه ده خلکو ته ویل چې: "ما د دې له پاره ستاسي خدمت نه دی کړی چې پاچهۍ وکړم یا د پاچهۍ پر تخت کښېنم او خولۍ کږه کښېږدم، زه په دې ښه نه ایسم چې پر تاسې پاچهي وکړم، بلکې په دې ښه ایسم چې ستاسې خدمتګاري وکړم ما ته همدا بس ده چې ولس راته "بابا" ووایي، نور نو نه جواهر غواړم او نه سره زر او سپین زر، زما همدابس دی چې ستاسي خدمت وکړم او تاسې د خپلو زامنو په څېر وروزم. زما پاچهي د لاسه نه کېږي، زه ستاسې کوچنی خادم یم!"

د ده د دغو خبرو مطلب د دري ژبې یو شاعر داسي منظوم کړی دي:

نه خدمت نمودم که شاهی کنم
بتخت شهی کج کلاهی کنم

نزیبد مراشاهی و سروري
سر افرازم از افسر چاکري

مرا بس که گویند قومم " پدر "
ندارم طمع گوهر وسیم وزر

همین افسرم به که خدمت کنم
شما را چوفرزند خود پرورم

نه دیهیم شاهی بود درخورم

شما را همی کمترك چاکرم

میرویس یو ځیرك، پوه او ډیپلومات سړی و، د ګاونډیانو په سیاسي اوضاع ښه پوه او صفوي دربار یې ښه پېژاند، د حکمدارۍ په دود او دستور ښه پوهېده، اته کاله یې د یوه مشربابا په توګه د خپل ولس مشرتوب وکړ، خلك یې خوښ وساتل تل یې د خلکو خواخوږي کوله او د مهربان پلار په څېر یې وروزل. په افغانستان کښې خلك ورته "بابا" وایي او د یوه بزرګ قطب په شان د ده د مزار زیارت کوي د خینو ناروغیو له پاره د ده د مزار خاوره شفا بولي. وایي چې: دغه نومیالی مشر جګه ونه، قوي اندامونه او سپینه اوږده ږیره درلوده، پر سر یې وېښتان نه وو، سپین پرتوګ اوسپین کمیس یې اغوستل او یو پټو یې درلود چې د کلیو په ملي جرګو کښې به یې پر مځکه د خلکو په منځ کښې غوړاوه او د کلیوالو په څېر به پر هغه کښېناست، نور به یې هم پر خپل پټو کښېنول او ملي پېښې او قضایا به یې د خپل صایب فکر په مرسته حل کول، خلك به یې له یو بل سره دوستۍ، ښېګڼې، همدردۍ او مرستې ته بلل.

میرویس د خپلو هېوادپالو مجاهداتو په پای کښې د افغاني سلطنت او ملي برم مړه ډیوه بیا په کندهار کښې بله کړه، د خپلواکۍ او آزادۍ هېر شوی درس یې د خپلو خلکو غوږو ته ورساوه او د ۱۱۲۷هـ کال د ذیحجةالحرام پر ۲۸ مه نېټه له دې دنیا ولاړ په افغان تاریخ کښې یې د تل له پاره نیك او ښه نوم پرېښوو، دی د کندهار ښار لوېدیځ خواته د کوکران په کلي کښې د لوی سړك پر غاړه ښخ او دا بیت یې پر مزار لیکلی دی:

بر سر مرقد ماچون گذری همت خواه
که زیارتگهٔ مردان جهان خواهد بود

(وګورئ ۷۶ - ۷۷ عکس)



له میرویس څخه دوه زامن پاتې شول یو محمود چې د پلار د مړینې پر وخت ۱۸ کلن و او حسین چې ۱۴ کلن و. د میرویس تر مړینې وروسته یې ورور پرځای کښېناست چې د ملیسون، جان ملکم او سید جمال الدین په وینا "عبدالله" او د ده د همهالیو لکه جهانګشای نادري، مجمع التواریخ، پټه خزانه او همدارنګه د سلطان محمد، شېرمحمد، روضةالصفای ناصري او انسکلوپیډیای اسلامي په موثوق قول "عبدالعزیز" نومېږ. دغه سړی د خپل ستر ورور په شان لوړ همت نه درلود، همدا چې واکمن شو ملي جرګه یې راوبلله او خلکو ته یې د صفویانو د اطاعت منلو وړاندیځ وکړ، ملي جرګې دغه جوغ ته غاړه کښې نه ښوده، خو عبدالعزیز د اصفهان دربار ته استازی ولېږه او په درو شرطو یې د اصفهان دربار اطاعت ومانه:

لومړی، د هغه باج او خراج معافول، چې د ګرګین په وختو کښې افغان اخیستل کېده.

دویم، کندهار ته د صفوي لښکر نه راتګ.

درېیم، د عبدالعزیز په اولاده د پاچهۍ دوام.

پښتانه چې د عبدالعزیز په دغه ناوړه وضعیت خبر شول، د دوی څلوېښتو زرو مشرانو د میرویس له مشر زوی محمود سره لاسونه یوکړل، عبدالعزیز یې وواژه.

خو په پټه خزانه کښې لیکلی شوي دي چې:

"میر عبدالعزیز چې د حاجي میر خان ورور و، په کندهار کښې مشر شو، خو د اولس رعایت یې کم کا. څو چې په (۱۱۲۹) سنه هجري د شپې د نارنج له قصره له بامه خطا شو او راولوېد مړشو." (پټه خزانه - ۱۰۹مخ)

ملیسون د دې پېښې نېټه د (۱۷۱۶م) کال مارچ لیکي چې له

همهغه (۱۱۲۹م) کال سره برابره ده.

د کندهار خلکو دا پردی پال سړی په سزا ورساوه او پرې یې نه ښوو چې خپله ملي خپلواکي چې د زړو افغان زلمیانو په وینو اخیستل شوې وه، له لاسه وباسي، د عبدالعزیز تر مړینې وروسته یې د میرویس مشر زوی چې محمود نومېد خپل مشر وټاکه، محمود تر (۱۱۳۴هـ - ۱۷۲۱م) کال پورې د کندهار د پاچا په توګه حکمراني وکړه ده چې د پلار په شان یې لوړ همت درلود، د ملي حکومت د پراختیاپه فکر، کښې شو، پر همهغه کال یې د فراه او سیستان له لارې پر کرمان یرغل وکئ او د هغه ځای د حاکم "لطف علي" سره تر روغې وروسته بېرته کندهار ته راغی خو آرام نه کښېناست، بیا یې پر همهغه (۱۱۳۴هـ) کال په کندهار کښې ملی تازه دمه قواوي راغونډې کړې او د صفوي دولت پر پایتخت اصفهان یې حمله وکړه ښار یې کلابند کئ، تر اتو میاشتو کلابندۍ وروسته (۱۱- ۱۵ - محرم ۱۱۳۵هـ.ق - ۱۷۲۲م) د صفوي کورنۍ وروستی پاچاشاه حسین د ایران تاج او تخت محمود ته وسپاره او پایتخت یې د افغاني بریالي لښکر ته پرېښوو.

شاه محمود د ایران فاتح د اصفهان تر نیولو وروسته د خپلې شهنشانۍ په وختو کښې د خپلو لویو سپه‌لارانو لکه سیدال خان ناصر، پیر محمد میاجي، محمدخان او عبدالله خان بلوڅ په واسطه لوی لښکرکښۍ وکړې چې تر دوه نیمو کالو پاچهۍ وروسته د (۱۱۳۷هـ - ۱۷۲۵م) کال د برات پر ۱۲ شپه په اصفهان کښې د دماغي ناروغۍ له امله د (۲۷) کالو پر عمر ووژل شو، دا د سلطان محمد، شېرمحمد مآثرالامراء او روضة‌الصفای ناصری وېناده، خو سید جمال الدین او ملیسون د ده د وژلو نیټه (۱۷۲۵م ۱۱۳۸هـ) کال لیکلې دي.

د اصفهان د فاتح شاه محمود تر وژلو وروسته د میرویس وراره د



عبدالعزیز زوی شاه اشرف په اصفهان کښې د افغاني سلطنت پرتخت کښېناست او په ځیرکۍ سره یې د سلطنت چارې په ډېره ښه او سمه توګه اداره کړې، سیدال خان ناصر یې بیا د افغاني لښکرو سپه سالار وټاکه او هرې خواته یې لښکرکښۍ او فتوحات وکړل. دده د وخت له مهمو پېښو څخه یوه هم د بغداد د والي احمد پاشا لښکرکښۍ وه چې د شاه اشرف د پاچهۍ پر دریم کال د (۱۱۳۹هـ کال د برات له ۱۲ څخه د ۱۱۴۰ هـ - ۱۷۲۷م کال ترمنځ) وشوه. شاه اشرف په خپل لښکر تور کان مات کړل، خو نور یې پښتانه نه پرېښوول چې له ترکانو سره ونښلي، دا ځکه چې شاه اشرف نه غوښتل د ترکانواو افغانانو تر منځ زیات مرګ او ژوبله وشي، هغه و، چې د شاه اشرف د ښه سیاست په اثر دا پېښه تر (۹) میاشتو وروسته په روغه او صفا پای ته ورسېده، د ده د پاچهۍ پر پېنځم کال (۱۱۴۲- ۱۷۲۹م) د عثماني خلیفه دریم سلطان احمد خان له خوا راشد پاشا د سفیر په ډول د شاه اشرف دربار اصفهان ته راغی او هم له افغاني درباره محمد علیخان بلوڅ د ایلچي په توګه عثماني دربار ته ولاړ او په دې توګه د افغاني او عثماني دولتو تر منځ ښه اړیکي ټینګ شول.

تر هغه وروسته شاه اشرف د ایران له شمال څخه د روسي قواو د تیري مخه هم ونیوه، خو په داخل کښې له نادرافشار غونډې بډه (حریف) سره مخامخ شو او د افغاني قوت رسۍ سره وشلېده، دا ځکه چې له کندهاره چې د هوتکي پاچهۍ مرکز و، په ایران کښې افغاني لښکرو ته مرسته نه رسېده، له همدې کبله اشرف څو ځایه ماتې وکړه تر پېنځو کالو او (۷) میاشتو پاچهۍ وروسته له ایرانه راپر شا شو، د هلمند پر غاړه د ګرمسیر ملخان کلا ته راغی، له هغه ځایه یې کوز ښوراوك زردکوه ته پناه یووړه او همهلته د عبدالله خان بلوڅ د زوی ابراهیم نومي له لاسه ووژل شو، دا پېښه

د (۱۱۴۲ هـ - ۱۷۲۹ م) په پای کښې وه.

خو په کندهار کښې چې د هوتکو د پاچهۍ مرکز و، تر (۱۱۳۵هـ) کال وروسته چې شاه محمود اصفهان ونیو د ده کشر ورور شاه حسین حکومت کاوه دی عالم ادیب او ادب پال پاچاه و، د ده د پاچهۍ وخت په کندهار کښې په آرامۍ او هوسایۍ تېر شو، د پټې خزانې په وینا چې د ده په دربار کښې لیکل شوې، د ده امر له هراته، فراه او شین ډنډ (سبزوار) څخه نیولې تر غزنې او ګومل پورې چلېده او هم یې د شال (کوټې) او پښین سیمې د پنجاب د حدودو تر ډېره اسماعیل خان او ډېرهٔ غازي خان پورې ونیولې همدارنګه د کندهار ځواکونو له خوا د ملتان صوبه تر تهدید لاندې ونیول شوه او د افغاني قواو پر مختګ تر ملتانه ورسېد. دا مهال د هوتکو شهنشاهي د اوسني بلوچستانُ په ګډون د دجلې له غاړو څخه تر ملتان پورې رسېدلې وه، چې لوېدیځ ته شاه محمود او شاه اشرف ختیځ ته شاه حسین حکومت کاوه. د شاه حسین د پاچهۍ آرامې دورې تر (۱۱۴۹هـ - ۱۷۳۶م) پورې دوام درلود، همدغه کال د رجب پر (۱۷) نادرافشار د افغانستان د سیمو د نیولو په تکل لښکر راویوست، ځکه چې ده په پارس او ګرجستان کښې د افغاني قواو پایڅوړ سره تیت او پرک کړي و، دا مهال یې د کندهار د هوتکي دولت له ماتولو پرته بل کارنه لاره، هغه وو چې نادرشاه د کوچنی اختر د میاشتې پر دویمه له سیستانه راتېر او د شوال پر ۱۸ مه د دلخك او دلارام له لارې د هلمند پرغاړه ګرشك کلا ته راورسېد، د هغه ځای تر نیولو وروسته د کوچنی اختر د میاشتې پر (۱۱)مه له هلمنده راپوریووت او د (۱۱۴۹هـ - ۱۷۳۶م) کال د ذیقعدې د میاشتې په سرکښې یې د کندهار تینګه کلا چې هوتکي پایتخت و، کلابنده کړه.

د کندهار زلمی مدافع شاه حسین د نامتو سپه سالار سیدال خان



ناصر په ملاتړ تر یوه کال او څو میاشتو پورې د کندهار ښار په ډېره مېړانه وساته او نادرشاه یې پرې نه ښوو، چې له خپل ډېر غښتلي پوځي ځواك سره سره کندهار ونیسي.

د (۱۱۵۰هـ - ۱۷۳۷م) کال د ذیحجې د میاشتې په سر کښې د شاه حسین نظامي مقاومت پای ته ورسېد ځکه چې تر هغه دمخه لا د ده زړور سپه سالار سیدال خان د ده له زوی محمد سره د کلات په کلا کښې د نادرافشار لاس ته ور غلی و، او سیدال د نادر په امر ړوند کړای شوي و.

ځکه نو شاه حسین نادرشاه ته غاړه کښېښووه، د کندهار له ماتې سره د هوتکو د شاهنشاهۍ ستوری هم ولوېد، ټول افغانستان د نادر افشار لاس ته ورغی د سلطان محمد په وینا شاه حسین تر ۱۵ کالو پاچهۍ وروسته د نادر په امر مازندران ته و شړل شو او همهلته د ۱۱۴۹ هـ کال (ښایي ۱۱۵۱ هـ - ۱۷۳۸م وي) د برات د میاشتې پر لسمه د نادري قهر په زهرو له دنیا ولاړ. (وګورئ ۷۸ - ۷۹ - ۸۰ نومره عکسونه).

د افغانستان په تاریخ کښې د هوتکو د حکمرانۍ ډېرش کلنه دوره د خپلواکۍ غورځنګ د راپاریدو له پلوه خورا غوره پېر دی، ځکه چې په دغه دوره کښې څوواره پرله پسې په کندهار کښې د داخلي او ملي حکومت بنسټ کښېښوول شو، چې وروسته بیا احمد شاه بابا پر هغه بنسټ د افغاني سلطنت مانۍ ودانه کړه. دې دورې افغان ولس دنیا ته په زړورتوب وروپېژاند، په خپله میرویس غښتلی او منلی شخصیت درلود، د پوهې او پښتنې روزنې په غېږ کښې پالل شوی و، مور یې "تازو" د سلطان ملخي لور عالمه او شاعره میرمن وه، چې پټه خزانه ددې او د میرویس خان د لور "زینبې" پښتو شعرونه راوړي.

سربېره پر دې د هوتکو په دوره کښې ډېر ادیبان او د توري او قلم

خاوندان وو، لکه سیدال خان ناصر ستر پښتون سپه سالار، بهادرخان، پیر محمد میاجي او داود خان چې د هغې دورې، هم جنګیالی سالاران او هم پوهیالي عالمان او شاعران وو. د هوتکو په وخت کښې د پټې خزانې کتاب د پښتو د لرغونیو او معاصرو شاعرانو د ژوندانه د پېښو په اړه د شاه حسین د دربار د منشي محمد هوتك په قلم و لیکل شو، همدارنګه ملابازمحمد توخي، ملایارمحمد هوتك (د ارکان خمسه مولف)، ملایونس توخي، ملا اکبر (په پښتو کښې د جامع الفرایض مولف)، ملازعفران توخی (د سلطان محمد په وینا تره کی او د امیر عبدالرحمن په وینا توخي) د شاه حسین وزیر او د "ګلدستهٔ زعفراني" مولف، الله یار اپریدي د پښتو شاعر او د دیوان خاوند، ریدي خان (د شاه محمود هوتك د فتوحاتو په باب کښې په پښتو ژبه د محمود نامې ناظم)، ملاعادل (په پښتو د محاسن الصلوة مولف) او ملانورمحمد (په پښتو د نافع المسلمین مولف) د هوتکي عصر شاعران او مولفان وو.

شاه حسین د کندهار ښار په نارنج شاهي ماڼۍ کښې چې کندوالې یې تراوسه شته ادبي جرګې درلودې عالمان او ژبور ادیبان یې پالل، میان عبدالحکیم کاکړ (مشهور په کاکاصاحب چې د اوسني بلوچستان په چتیالی کښې ښخ دی) د همدغه عصر له نومیالو روحانیونو او صوفیانو څخه و چې په نقشبندیه طریقه کښې د خپل وخت له اقطابو څخه ګڼل کېږي.

هوتکیان:

۱ - میرویس خان د ښالم خان زوی (۱۱۱۹ - ۱۱۲۷ هـ)

۲ - عبدالعزیز د ښالم خان زوی (۱۱۲۷ - ۱۱۲۹ هـ)

* ۳ - شاه محمود د میرویس زوی (۱۱۲۹ - ۱۱۳۷ هـ)



* ۴ - شاه اشرف د عبدالعزیز زوی (۱۱۳۷ - ۱۱۴۲ هـ)

* ۵ - شاه حسین د میرویس زوی (۱۱۳۵ - ۱۱۵۰ هـ)

اخځونه:

مخزن افغانی - تذکرة الابرار - جغرافیاي تاریخي ایران - معجم البلدان - طبقات ناصری - حیات افغانی - ماثرالامراء- منتخب اللباب ۲ ټوکه - تاریخ افغانستان د ملیسون تالیف - تتمة البیان - سرجان ملکم - پټه خزانه - روضةالصفای ناصری - تاریخ افغانستان د علی قلی میرزا- تاریخ نظامي ایران لومړی ټوك - تاریخ ایران د سرپرسي سایکس - نادرنامه (قلمي) - سیرالمتأخرین - مجمع التواریخ - میرویس بابا د کابل چاپ - تاریخ کرمان خورشید جهان - تاریخ سلطانی - صولت افغانی - د صفویانو سقوط او پرپارس باندې د افغانانو سلطه د لوکهارت انګلیس تالیف ۱۹۵۸ م - د محمد علی حزین د احوال تذکره - بدایع الوقایع.

# سدوزیان

## (۱۱٦۰ - ۱۲۵۸هـ)

دمخه مو ولوستل چې نادرشاه د امام قلي افشار زوی (۱۱۴۸هـ - ۱۷۳۵م) له ایرانه راغی د هوتکو پاچهي او په هرات کښې یې د ابدالیانو حکمراني رنګه کړه او په تېره بیا د کندهار په نیولو یې د هوتکو پاچاهي بیخي ختمه کړه.

نادرشاه د کندهار د زاړه ښار د کلابندۍ په وخت کښې د کندهار د اوسني ښار لوېدیځ خوا ته پر نمناکو ځمکو د "نادرآباد" په نامه یو ښار ودان کړ او په هغه کښې یې پر (۱۱۵۰هـ - ۱۷۳۷م) کال په خپل نامه سکه ووهله زوړ ښار یې تر نیولو وروسته ونړاوه چې تر اوسه هماغسې ویجاړ پاتې دی. نادر پر همهغه کال د افغانستان شمالي ولایتونه له بدخشانه تر بلخ، میمنې او آمو سینده د خپل زوی رضا قلي په واسطه ونیول. د کندهار تر نیولو وروسته یې د سلطان محمود او بابر سیاست و چلاوه، له افغاني مشرانو سره یې نرمه لار غوره کړه عبدالغني خان الکوزی یې د هرات د ابدالیو قبیلو د مشر په توګه و پېژاند او پیر محمد خان هروي ته یې د بلوڅو او خاران حکومت ورکړ حاجي اسماعیل الکوزی یې د هرات د اسفزار حاکم وټاکه او اشرف خان غلجي ته یې د کلات حکومت وسپاره ده نېژدې



څلوېښت زره افغان زړور سپاهیان د نور محمد خان غلجي په مشرۍ چې لقب یې "میرافغان" و، په خپل لښکر کښې واخیستل او د سیاسي څیرکۍ له امله یې پر خپلو افغاني عسکرو بشپړ باور وکړ، نادرشاه د زمان خان ابدالي زوی احمدخان او ذوالفقار خان چې په کندهار کښې د شاه حسین هوتك په امر بندیان وو، ونازول او په مازندران کښې یې جاګیر او تنخا ورته وټاکله (۱۱۵۱ هـ - ۱۷۳۸ م).

نادرشاه بې له ځنډه د کابل خواته لاړ، د غلجیو کلات یې ونیو او خپل لښکر یې غزني او کابل ته واستاوه، دا مهال د کابل حکمران د ډهلي د دربار له خوا ناصرخان یو غښتلی، زړور او د خلکو خوښ سړی و، خو دا چې ډهلي دربار یې ملاتړ نه کاوه او تنخا یې هم نه ورکوله ځکه یې ځان ټینګ هم نه کړای شو، خو سره له هغه ناصرخان د شرزه خان او نورو افغاني قبیلو په مرسته کابل ساته، رحیمداد خان کوتوال په ښار کښې کلابند و، چې په پای کښې نادرشاه د کابل ښار کلاوې ورانې او ویې نیولې (۱۱۵۱هـ) د نادر زوی د بامیان، ضحاك او د هندوکش د لمنو د نورو کلاو نیولو ته مخه وکړه د کابل او پېښور د لارې خانان عباس خان او سعدالله خان هم نادر ونیول، خو ناصرخان د کابل او پېښور تر منځ افغاني قبایل د نادر پر وړاندې جنګ ته چمتو کړل او د نادر دزوی شهزاده نصرالله له لښکر سره ونښت ناصر خان په یوه جګړه کښې ټپي او ونیول شو، خو نادرشاه هغه بیا د کابل او پېښور په حکمرانۍ وګماره او په خپله ده د ایران او افغان په تازه دمه لښکر پېښور ونیو، لاهور او ډهلي پورې پر مخ ولاړ (۱۱۵۲هـ - ۱۷۳۹م).

نادرشاه د ډهلي ترټولوټنې، چور او چپاو وروسته د انګریزي، اووه اتیانیم ملیونو پونډو په اندازه شتمني او جواهرو له شاه جهاني تخت طاوس سره پېښور ته راوړل (۱۱۵۲ هـ) خو چې تراټك راپورې ووت له یوسفزیو سره

ونښت او په ډېره بېړه د خيبر تر درې راتېر شو چې تر کابل پورې سيمې يې خپلې کړې. تر هغه وروسته د کابل له جنوبي لارې د کورم، بنګښ، ډېره جاتو او سند خوا ته ولاړ د سند د سيند ټولې لوېديزې ځمکې يې ونيولې او د بولان د درې له لارې کندهار او هرات ته ولاړ، پر (۱۱۵۳هـ) کال يې د خپلو فتوحاتو جشن چې له ماوراءالنهر او خوارزم څخه نيولې د سند تر سيند، دجله، فرات او سيحون پورې رسېدل، په مشهد کښې جوړ کئ د (۱۱۵۴هـ - ۱۷۴۱م) کال په شاوخوا کښې يې احمد خان ابدالي له مازندران څخه را وغوښت او د ابدالي لښکر په مشر يې خپل همرکاب وټاکه. احمد خان شپږ کاله له نادر شاه سره په حضر او سفر کښې د جهانداری په چارو کښې تجربه وکړه او داغستان او ايروان ته يې د نادرشاه په جنګي سفرو کښې خپل جنګي رشادتونه وښوول، تر دې حده يې د نادر ځانګړې پاملرنه ځان ته واړوله چې نادر به تر ځان وروسته پر ده باندې د پاچاهی مقام د نيولو زېرې کاوه.

نادر شاه تر زياتو فتوحاتو وروسته د مزاج اوښتلو له امله له خپل طبيعي حالته ووت، د خپلو شاوخوا خلکو په وينو تويولو او وژلو يې لاس پورې کئ چې د ده خپل نژدې درباري خلك ځينې وبېرېدل او د (۱۱۶۰هـ ۱۷۴۷م) کال د درېيمې خور (جمادی الاخری) پر ۱۱ مه د يکشنبې پر شپه د خبوشان په فتح آباد کښې د محمد خان قجر، موسی افشار، خوجه بيګ افشار او صالح قرتلوي له خوا د نورو اويا تنو دربار په خوښه ووژل شو.

نادرافشار يو زړور، هوښيار او خونکار سړی و، د ده سياست په افغانستان کښې له قهر او ناز سره ګډ و، ده د هرات د ابداليانو ملي مشرتوب له بېخه ويوست او بيا يې په کندهار کښې د هوتکو پاچاهي هم له منځه يووړه، د دغو دواړو تېرو مشران چې په افغانستان کښې يې د



خپلواکی بيرغ جګ ساته، د ده له لاسه ژوبل مړه او برباد شول، خو له دغه قهر او ناز سره سره يې په ټول افغانستان کښې د نوموړيو قبيلو له پاتې مشرانو سره جوړ شو، ويې نازول او ډېر افغاني زړور زلميان يې په خپل لښکر کښې د افغاني سالارانو په قيادت واخيستل او ويې پالل.

که له يوی خوا نادرشاه د افغاني ملي حکومت په هرات او کندهار کښې رنګک کړ (چې د کندهار د زاړه ښار کنډوالې تر اوسه د ده د ورانکاريو نښې دي) نو له بلې خوا به د احمدخان ابدالي غونډې ميړه پالنه چې تر ده وروسته يې په کندهار کښې بيا د افغاني لويې پاچهی خښته کېښېښووه هم د ده له ښو يادګارو څخه وګڼل شي.

د نادرشاه تر وژلو وروسته احمدخان ابدالي او نورمحمدخان ميرافغان د افغان او ازبکو سپايانو په مرسته د نادرشاه حرم د ياغي لښکريانو له چور او چپاو څخه وژغوره، چې د دغه خدمت په بدل کښې د نادر د حرم له خوا د "کوه نور" مشهور الماس چې په هند کښې له افغاني لوديانو څخه بابر او د هغه کورنی ته پاتې شوی او د ډهلي تر نيولو وروسته د نادرشاه لاس ته ورغلي وو، ورکړل شو او ټولو افغاني قواو هرات ته مخه کړه، د (۱۱۶۰هـ ۱۷۴۷م) کال د درجب پر مياشت کندهار ته ورسېدل، افغاني مشرانو ژر تر ژره د نادرآباد نوې کلا ته نژدې د شيرسرخ پر هديره ملي جرګه جوړه کړه چې په هغې کښې د افغاني مشهورو قبيلو مشرانو لکه نورمحمدخان مير افغان د غلجيو مشر، محبت خان د پوپلزيو مشر، موسی خان د ساکزيو مشر، نصرالله خان د نورزيو مشر، او حاجي جمال خان د بارکزيو مشر ګډون کړی و.

دې ملي جرګې له شوره ډکې اته غونډې وکړې، خو د قبيلو مشرانو ونه شو کړای چې يو د بل حکمرانۍ پر ځان ومنی، نورمحمدخان ميرافغان

د مشرتابه، تجربې او نفوذ له پلوه د دغه کار وړ ښکارېده، خو څنګه چې د تند مزاج خاوند و، ونه ټاکل شو، دویم سړی چې حاجي جمال ؤ، هم دومره پوخ، متین او د نفوذ څښتن ؤ، چې نور مشران دده له راتلونکي استبداد، قدرت او استیلا څخه ډارېدل. ټولو د پاچاهۍ له پاره داسې سړی لټاوه چې د افغاني آزاد مزاج، ملي دیموکراسۍ و نوي جرګې له اصولو سره یې سمون له لاری په راتلونکي کښې یې پر دوی په استبداد او زور حکومت نه کولای او په عین وخت کښې د غښتلې او قوي قبیلې خاوند هم نه وای.

د دې لویې تاریخي جرګې په نهمه غونډه کښې د ټولو خلکو سترګې احمدخان ابدالي ته واوښتلې چې " ۲۵ " کلن نوښتګر، زغمونکي پوه او ازمیلی زلمی و، چې هم یې قبیله کوچنۍ وه "سدوزي ډېر لږ وو" او پښتنو مشرانو دا باور درلود چې دا کشر زلمی پر دوی په استبداد او شدت حکومت نه شي کولای ځکه یې نو دی په پاچاهۍ ومانه، او د دې ښه انتخاب په سبب یې د افغانانو له لاسه وتلی لرغونی برم و پرتم بیا را ژوندی کئ.

په دې وخت کښې صابرشاه نومي یو ملنګ د استاد لایخوار کابلي زوی چې د شیرسرخ په هدیره کښې اوسید، له خپلې کوډلې راووت، او هدیرې ته نژدې له کروندې یې څو غنم وړې پرې او د دغه نوي انتخاب شوي زلمي پاچا په پګړی کښې یې د "خول " په توګه وتومبل، دا د (۱۱۶۰هـ ۱۷۴۷م) کال د رجب (جولای) پر میاشت پېښه شوه).

# احمد شاه بابا

احمدشاه ابدالي د هرات د حکمران زمان خان (چې دمخه یې یادونه وشوه) زوی، په خته ابدالي سدوزی په (۱۱۳۵هـ ۱۷۲۲م) کال د زرغونې نومې مېرمنې له نسه چې په خته الکوزۍ وه، په ملتان یا هرات کښې وزیږېد، سره له دې چې د سن له مخې کشر ؤ، خو د خپل سلطنت په وختو کښې یې افغانستان ته لوی خدمت وکئ، چې په همدې سبب د افغانستان خلکو ورته د "بابا" لقب ورکئ. دده پر خپل مهر چې طاوسي شکل ئې درلود دا جمله لیکلې وه:

"الحکم لله یافتاح - احمد شاه در دران" د "دراني" کلمه که څه هم پخوا په تاریخو کښې څرګنده استعمالېده، خو تر هغه وروسته یې بیخي د "ابدالي" کلمې ځای ونیو چې تر اوسه ټول ابدالیان ځانونه "دراني" بولي.

احمدشاه په افغانستان کښې اداري، لښکري، مالي او مدني تشکیلات تاسیس او وزیران یې وټاکل، چې اشرف الوزراء بګی خان بامیزی مشهور په شاه ولیخان د ده سر وزیر ؤ او په (۱۱۷۴هـ ۱۷۶۰م)کال یې د "احمد شاهي ښار" په نامه د کندهار د اوسني ښار بنسټ کښېښوو، پر (۱۱٦٦هـ) کال یې د کابل جنګي حصار ودان او هم یې د هندوکش په شمال کښې د تاشقرغان ښار جوړ کئ او په سند کښې یې د حیدرآباد ښار د بنسټ

ډېره کېښوده (۱۱۸۲هـ). په کندهار، مشهد، اټك، ډهلي، روهیلکنډ، پېښور، ټټه، ډېره غازیخان، کشمیر، کابل، ملتان او هرات کښې یې په خپل نامه سکه ووهله، د ده سرو زرو، سپینو زرو او مسو د احمدشاهي دولت رسمي نښان (دوه څوکې توره، د غنمو وږی او ستوري) کېندل شوی. او پر څینو سکو دا بیت هم ؤ:

حکم شد از قادر بیچون باحمد پادشاه
سکه زن برسیم و زر از پشت ماهی تا بماه

احمد شاه په منځني توګه یو لك عسکر ساتل او له پنجاب، کشمیر او سنده نیولې د آمو تر سینده، مشهد او بحیرهٔ عرب پورې د ده د هېواد ټول عایدات (۳۱) ملیونو روپیو ته رسیدل، خو جنګي ولجې، خزانې او نور زیات ثروتونه چې د هند په جګړو کښې لاس ته ورتله له دغه شمېره بېل دي.
ده د خپلې پاچاهۍ پر مهال دغه جګړه ییز سفرونه بشپړ کړي دي.



## د احمدشاه بابا جګړه ییز سفرونه

۱- د (۱۱٦۰هـ -۱۷۴۷م) کال په پای کښې یې غزني، کابل او پېښور ونیو او په کابل او پېښور کښې یې (تیموري او نادري پخوانی حاکم) ناصرخان مات کړ، عبدالصمد خان مومندزی د اشنغر یو مشر له احمد شاهي لښکر سره یو ځای شو. احمد شاهي سپه سالار سردار جهانخان، ناصر خان د اټك هاخوا ته وځغلاوه او په خپله احمدشاه کندهار ته ولاړ.

۲- پر (۱۱٦۱هـ - ۱۷۴۸م) کال له ډېرشو زرو پلیو او سپرو سره له کندهاره راووت او د کابل او پېښور له لارې د اټك او جیلم غاړو ته ورسید. د لاهور حمکران شهنوازخان د وزیرالممالك قمرالدینخان په واسطه له ډهلي څخه مرسته وغوښتله، او د چناب د سیند پر غاړه له احمد شاهي لښکر سره مخامخ شو، خو د جنګ له میدانه وتښتېد او احمدشاه لاهور ونیو، تر هغه وروسته یې ډهلی ونیو، د محمد شاه لښکر یې مات او د ربیع الاول پر ۱۳مه ۱۱٦۱ د سرهند ښار ته ننوت.

د ۱۱٦۱هـ کال د لومړي خور پر ۲۲ مه د جمعې پر ورځ تر مالوپور په جګړه کښې وزیرالممالك قمرالدین خان ووژل شو، څکه نو د ډهلي ګورګاني پاچا محمدشاه د لاهور ولایت د هغه خلف مېرمنو معین الملك ته وسپاره، احمد شاه له ډهلي دولت سره روغه وکړه، د سند سیند یې د دوو هېوادو تر منځ برید وټاکه او د پېښور - کابل له لارې بېرته کندهار ته راغی.

۳- پر ۱۱٦۲هـ د کابل او پېښور له لارې لاهور ته لاړ، د لاهور له حکمران مېرمنو معین الملك سره یې هم روغه وکړه، د سیالکوټ، ګجرات، پنجاب د اورنګ آباد او امرتسر مالیات یې د مېرمنو پر غاړه کښېښووه چې

هر کال به یې احمد شاهي اعلی دیوان ته رسوي، کندهار ته بېرته د رسېدو پر وخت یې د قبیلو ځینې مشران لکه: نورمحمد خان میرافغان غلجي، ګدوخان او محبت خان پوپلزی چې د ده پر خلاف یې دسیسه جوړه کړې وه ووژل.

۴ - پر ۱۱٦۳ هـ ۱۷۴۹م کال هرات ته ولاړ هغه ښار یې تر څلورو میاشتو کلابندی وروسته له امیر عالم خان څخه ونیو او د سردار جهان خان پوپلزي په مشری یې پېنځه زره سپاره تر بت جام ته ولېږل، هرات یې درویش علي خان هزاره ته وسپاره او په خپله مشهد ته لاړ، هغه ښار یې تر څلورو میاشتو کلابندی وروسته د نادرشاه لمسی شهرخ میرزا ته ورکئ او په خپله د نیشاپور خوا ته ولاړ، خو چې د نیشاپور حاکم عباس قلي خان بیات مقاومت وکئ او له بلې خوا د ژمي سخت موسم راغی، نو احمدشاه د هرات له لارې کندهار ته راوګرځېد.

**۵- د بلوچستان سفر:** د احمد شاه "بابا" په وخت کښې د کلات حکمران او د براهوی خان د نادرشاه له خوا د میرعبد الله زوی میرمحبت خان ؤ، خو بلوخان چې د هغه د کشر ورور امیر نصیر خان پر خوا وو او د احمد شاه حضور ته یې عرض کړی ؤ، نو ځکه پر ۱۱٦۳ هـ کال چې احمدشاه د خراسان له سفره راوګرځېد، سمدستي یې له کندهاره د بلوڅو کلا ته مخه وکړه، په دغه وخت کښې میرنصیرخان د سند په خدا آباد کښې میا نورمحمد کلهوره ته ناست ؤ، مور یې بي بي مریمه په کندهار کښې وه او دواړو شاهي مرسته غوښتله.

احمد شاه مستنګ ته تر رسېدو وروسته کلات ته رهي شو، میر محبت خان حاجي رحیم خان بابي له قرآنکریم سره د احمدشاه حضور ته شفیع واستاوه، احمدشاه هم د سمدستي له پاره د کلات خاني میرمحبت خان



ته پرېښووه بېرته کندهار ته راغی. نوموړي خان خپله یوه خور چې بي بي میرګوهر نومیده د آخون محمد حیات په وسیله په غزني کښې د احمدشاه حضور ته واستوله او هغه هم واده کړه. څو میاشتې وروسته د بلوڅو د خانی د ستونزې د هواری له پاره د هغې سیمې ټول نومیالي سرداران کندهار ته د احمدشاه حضور ته راوغوښتل شول، میر نصیر خان هم له خپلې مور سره هلته و چې په پای کښې احمدشاه، میر محبت خان د طهماسپ خان په لاس بندي او میر نصیرخان یې د کلات په خانی وګماره (۱۱٦۴).

خو میر نصیر خان په کلات کښې د خپلسری بیرغ اوچت کړ. هغه ؤ، چې د بلوڅو د قبیلو یوې برخې په کندهار کښې د احمد شاه حضور ته استغاثې وکړې، احمدشاه چې دا خبر واورېد ژر وخوځېد او کلات یې دوولس ورځې کلابند کئ، خو د جنګ او وینو تویولو امر یې و، نه کئ، په پای کښې نصیر خان د آخون محمد حیات او وزیر شاه ولي خان په واسطه د احمدشاه حضور ته ورسېد او وبخښل شو چې تر دې وروسته یې په احمد شاهي لښکر کښیو کښې ګډون کاوه.

٦ - په ۱۱٦۴هـ کال بیا احمدشاه له خپل لښکر سره د هرات له لارې پر نیشاپور حمله وکړه، د نیشاپور کلا یې په لویو توپو وویشته او ویې نیوله، د هغه ځای حکومت یې بېرته عباس قلي خان بیات ته چې تسلیم شوی و، وسپاره. احمدشاه د خراسان شاوخوا ونیول. د مشهد له حمکران شاهرخ میرزا سره یې په دې شرط روغه وکړه چې سکه او خطبه به د ده په نامه وي او د جام، باخرز، تربت، خواف او تر شیرازه ولایتونو احمدشاه ته وسپاري، تر هغه وروسته شاهرخ خپله سکه په دې بیت کښلې کړه:

یافت از الطاف احمد پادشاه    شاهرخ بر تخت شاهی تکیه گاه

احمد شاه له مشهده هرات ته راغی او وزیر شاه ولي خان یې مرو،

ميمنه، اندخوی، بلخ، باميان او بدخشان ته واستاوه، نوموړي وزير د افغانستان ټول شمالي ولايتونه د هېواد په مرکز پورې وتړل.

۷ - پر ۱۱٦۵هـ ۱۷۵۱م کال د پنجاب د نيولو له پاره لاهور ته ولاړ. مېرمنو معين الملك تر څلور مياشتو پورې مقابله وکړه، خو تر هغه وروسته تسليم شو او احمد شاه دی د هغه ځای حاکم په توګه وپېژاند.

په دغه سفر کې د احمد شاه له حضوره (ايشيك آقاسي) شاغاسي عبدالله خان د کشمير نيولو ته وګمارل شو او هغه هم ونيو، خواجه عبدالله کوچك يې د کشمير حاکم او سکجيون هندو يې د هغه ځای مستوفي وټاکه، قلندر خان پښتون يې د ډهلي دربار ته سفير واستاوه او ګورګاني احمد شاه ومنله چې پنجاب، سند او کشمير دې د احمد شاهي هېواد برخه وي.

احمد شاه د پنجاب، ملتان او کشمير د چارو تر سمون وروسته د سند د سيند ښی غاړې ته راپورې ووت، بنو او کابل ته راغی او له دې ځايه بېرته کندهار ته ولاړ.

۸ - د ۱۱٦۷هـ کال په سر کښې احمدشاه سند ته يو سفر وکړ، چې شرح به يې وروسته راشي، خو د همدغه کال په منځ کښې له کندهاره هرات ته ولاړ او د خراسان تر نيولو وروسته يې مشهد کلابند کړ، د نادرشاه لمسي شاهرخ ميرزا د ده اطاعت ته غاړه کښېښووه، احمدشاه د ړانده شاهرخ نيابت نورمحمد خان افغان ته وسپاره، جام، باخرز، خاف، تربت او تر شېرازه يې په هرات پورې وتړل او شاه پسند خان يې د شاهرود بسطام او سبزوار د نيولو له پاره واستاوه.

تر هغه وروسته، عباس قلي خان بيات په نيشاپور کښې کلابند او غاړې ايښودو ته اړ کړ او بيا يې هم دی د نيشاپور په حکومت وګماره، د هغې طايفې څو کورنۍ يې غزني او کابل ته ولېږلې او په ۱۱٦۸هـ کال بېرته



کندهار ته وګرځېد.

۹- پر ۱۱٦۷هـ چې مېرمنو معين الملك مړ شو، احمد شاه د هغه زوی مير مومن د لاهور حکمران وټاکه. خو دی چې کوچنی ؤ، نو د خپلې مور مغلانې بيګم په لارښوونه يې حکومت کاوه. په دې وخت د مغلانې بيګم او اميرانو تر منځ اختلاف پېښ شو، د نواب عبدالصمد خان زوی خواجه عبدالله خان نوموړي ميرمن بندي کړه او له احمد شاهي حضوره يې د لاهور د حکمران مقام وغوښت. احمدشاه د جهان خان سپه سالار ورور امان خان پوپلزی د لاهور د چارو د سمون له پاره ور واستاوه، خو هغه څه و نه شو کړای او پر (۱۱۷۰هـ) کال آدينه بيګ د ډهلي له لښکر سره لاهور ونيو او پر کال يې دېرش لکه روپۍ ډهلي ته ورکولې.

دا وخت په کشمير کښې سکجيون هندو هم د احمدشاه له اطاعته سر وغړاوه او افغاني حکمران خواجه کوچك يې وواژه، د ډهلي په لمسانه يې د کشمير حکمراني ونيوله، همهغه وو چې احمدشاه له کندهاره لاهور ته ولاړ او د هغه سيمو تر نيوو وروسته يې نورالدين خان باميزی کشمير ته واستاوه هغه سکجيون ونيو او کشمير يې بېرته په افغاني هېواد پورې وتاړه.

احمد شاه له لاهوره ډهلي ته مخه وکړه او په کرنال کښې يې د اصالت خان يوسفزي زوی نواب نجيب الدوله مخې ته راغی، د (۱۱۷۰هـ) کال د درېيمې خور (جمادي الاولی) پر ۷ مه د جمعې په ورځ ډهلي ته ننوت، دويم عالمګير يې د ډهلي پر تخت کښېناوه او د هغه د ورور شهزاده عزيزالدين لور يې شهزاده تيمور ته وکړه د ډهلي د وزارت چارې يې د قمرالدين خان زوی نظام الدوله ته وسپارلې او نواب نجيب الدوله يې د هند سپه سالار وټاکه. احمدشاه د ډهلي د شاوخوا تر نيولو او د هغه ځای ياغيانو تر وهلو وروسته عبدالصمد خان اشنغری مهمندزي د سر هند حاکم،

سرفراز خان یې د دوآبه ستلج او بیاه حاکم، شجاع خان ابدالي یې د ملتان حاکم او شهزاده تیمور یې تر سند او تته پورې د لاهور حاکم وټاکه. سپه سالار جهان خان یې د سکانو مخنیوي ته وګماره، بلند خان سدوزی ته یې د کشمیر حکومت وسپاره او د (۱۱۷۰هـ - ۱۷۵٦م) کال په پای کښې کندهار ته را وګرځېد.

## ۱۰ - د پانــي پــت غــــزا:

احمد شاه چې پر (۱۱۷۰هـ) کال له هنده را وګرځېد په پنجاب کښې نوې فتنې پیدا شوې او د فیروز جنګ زوی غازي الدین خان او آدینه بیګ پورته شول.

سیکانو هم په پنجاب کښې قوت وموند او د لوېدیځ له خوا هم د مرهټه لویو قوتو د ډهلي پاچاهي ګواښله او پنجاب یې هم ونیو، چې شهزاده تیمور او سپه سالار جهان خان د دغو ټولو ځواکو د ګواښ له مخنیوي څخه عاجز شول، دا مهال د هند اسلامي مشرانو او د ډهلي امیرانو احمدشاه راوباله چې د هند د اسلامي پاچاهی د ساتلو او ژغورلو له پاره هند ته راشي. امام الهند شاه ولي الله دهلوي هم د احمدشاه حضور ته لیکونه واستول او دی یې هند ته وباله، ځکه نو احمدشاه له کندهاره پر (۱۱۷۱هـ) کال د بلوڅو کلات ته خوځېد او هلته یې نصیر خان چې خپل سرى شوي و د روغې جوړې له لارې تسلیمېدو ته اړویست. بیا نو د کندهار له ډېرشو زرو او د بلوڅو له لسو زرو عسکرو سره د نصیر خان او سراوان جاله وان د سردار میر عبدالنبي د ورور میر عبد الکریم او نورو په مشرى د بولان له درې څخه تیر (۱۱۷۲هـ) او د سند د سیند غاړو ته ورسېد، له هغه ځایه د لاهور خوا ته وخوځید او سارنپور ته ولاړ.



هلته د هند د پښتنو ستر مشران لکه سپه سالار نجیب الدوله، سعدالله خان روهیله، حافظ الملك رحمت خان او د هغه زوی عنایت خان، دوندي خان او قطب خان له لسو زرو تنو لښکر سره د احمدشاه حضور ته راغلل. دا وخت د احمدشاه ټول لښکر چې په هغه کښې د کندهار، پېښور، بلوڅو او د هند د افغان غازیان راغونډ شوي وو، شپېتو زرو پلیو او سپرو ته رسېده چې توپخانه هم ور سره وه.

احمد شاهي لښکرو له هندوانو او سیکانو سره تر ډېرو جګړو وروسته "چې دښمنانو ته یې ډېرې ماتې ورکړې" وروستنۍ ټاکونکې جګړه د پانې پت پر ډګر له لسو لکو مرهټانو او هندوانو سره وکړه او په دې جګړه کښې یې د دښمن په زرو زرو جګړن (دوه لکه) کسان تر تیغ تېر کړل، د (۱۱۷۴هـ ۱۷٦۰م) کال د څلورمې خور (جمادی الاخرى) په شپږمه نېټه یې لویه سوبه (فتح) په برخه شوه، چې د دې سترې غزا جنګي ولجې او غنایم (۵۰) زره آسان، دوه لکه غوایي، پنځه سوه پیلان، څو زره اوښان او ۲۲ زره بندیان لاس ته ورغلل، چې له یوه ابراهیم نومي پرته یې نور ټول وبخښل شول.

احمدشاه د پانې پت تر ټولو لویې سوبې او له مرهټانو څخه د هند د مسلمانانو تر ژغورلو وروسته د دویم عالمګیر زوی شاه عالم په ډهلي کښې پاچا او میرزا جوان بخت زوی یې ور نایب السلطنه کی، نواب شجاع الدوله یې د فرزندخان او رستم هند په لقب وزیر اعظم او پښتون نواب نجیب الدوله یې سپه سالار وټاکه د پنجاب حکومت یې زین خان مومند ته ورکئ، په خپله کندهار ته راغی او شهزاده تیمور یې د هرات په حکمرانی ولېږه.

## ۱۱ - د سیکانو ترټل:

هغه وخت چې احمدشاه د پاني پت تر سوبې وروسته کندهار ته راوګرځېد په پنجاب کښې جیسا سنګهه د بغاوت بیرغ پورته کړ، چې د رنجیت نیکه چهرت سنګهه او الاجت هم په دې بغاوت کښې لاس درلود د پنجاب نایب الحکومه زین خان یې کلابند کې.

احمدشاه د دې شخړې د مخنیوي له پاره د (۱۱۷۵هـ۱۷۶۳م) کال په لومړي نیمایي کښې لاهور ته ولاړ، په ۴۸ ساعته جګړه کښې یې د امرتسر خوا ته ۱۳۵ میله واټن وواهه او په "روهي" کښې د سیکانو له دوه سوه زریز لښکر سره مخامخ شو، د ۱۱۷۵هـ کال د رجب د ۱۱ مې نېټې په جګړه کښې یې د شلو زرو سکانو په شاوخوا کښې ووژل او مات یې کړل. د پټیالي او سرهند حکومت یې امبر سنګهه ته ورکړ او د ۱۱۷۵هـ کال د برات تر ۷ مې پورې لاهور ته بریالی را وګرځېد، نورالدین خان بامیزی یې کشمیر ته واستاوه، هغه یاغي مستوفي سکجیون بندي کړ او کشمیر یې بیا ونیو.

احمدشاه تر ۱۱۷۷ هـ کال پورې د پنجاب د چارو په سمون اخته و او د ملتان ډېره اسمعیل خان له لارې ګومل او غزني ته راغی، خو په دغه سفر کښې سختې ګرمۍ ناروغ کړ.

## ۱۲- بخاراته تلګ:

پر ۱۱۸۱هـ کال وزیر شاه ولي خان له شپږو زرو سپرو سره له کندهاره بلخ او بدخشان ته واستول شو.

د بخارا حکمران شاه مراد بې چې د افغانستان په شمالي سیمو کښې یې یاغیان پارول، څکه نو پر همدغه کال په خپله احمدشاه د هرات له



لارې میمنه، اندخود، بلخ او شبرغان تصفیه کړل، د بخارا پاچا د آمو په شمال قرشي کښې لښکر راغونډ کړی و، خو احمدشاه د بخارا له مسلمان لښکر سره جګړه له خپل شان سره وړ ونه بلله؛ د بخارا له پاچا سره یې روغه وکړه، او آمو سیند یې د دواړو هېوادو برید وټاکه.

په دغه سفر کښې وزیر شاه ولي خان د جوزجان له فیض آباد څخه خرقه شریفه کندهار ته راوړه چې تر اوسه په دغه ښار کښې ده.

## ۱۳ - خراسان ته تلګ:

څه مهال وړاندې د احمدشاه له خوا د نادرشاه ړوند لمسي شاهرخ میرزا د خراسان پاچا ټاکلی شوی او د احمدشاه تر شاهنشاهۍ لاندې و، خو دا چې د ۱۱۸۳هـ په شاوخوا کښې د شاهرخ زلمي زوی نصرالله میرزا او د تون او طبس حاکم علي مردان خان خپل سري شوي وو او د فارس پاچا کریم خان زند دربار ته یې رجوع هم کړې وه څکه نو د ۱۱۸۴هـ کال په پای کښې احمدشاه له کندهاره هرات او مشهد ته ولاړ په دغه سفر کښې د بلوڅو پاچا نصیرخان چې د احمدشاهي دربار تابع و له شلو زرو تنو سره د خراسان په جګړو کښې ښې کارنامې وکړې او د ترشیز په کلا کښې یې علي مردان مات کړ، چې د دې خدمتو په مقابل کښې د احمدشاه له حضوره د ډېرهٔ غازیخان د داجل او هرند سیمې او د بلوڅو ولجې هم ده ته وبخښلې شوې.

خو احمدشاه د مشهد تر لنډې کلا بندۍ وروسته د نصرالله میرزا عذر ومانه او د شاهرخ لور ګوهر شاده یې شهزاده تیمور ته وکړه او نصر الله میرزا ته یې د "فرزندخاني" لقب ورکړ د خراسان پاچاهي یې شاهرخ ته وبخښله او ۱۱۸۴هـ کال د صفرې پر ۸ مه د هرات له لارې کندهار ته راغی.

## احمد شاه او سندهـ

پر (۱۱٦۰هـ) کال چې نادر شاه افشار ووژل شو، احمد شاه ابدالي په کندهار کښې د افغانستان په پاچاهۍ وټاکل شو، په سندهـ کښې میان نور محمد کلهوره د نادري تر امر لاندې اسیر ؤ، پر (۱۱٦۱هـ) - (۱۷۴۸م) کال احمد شاه هند ته سفر وکئ. ده په سندهـ کښې د میان نور محمد کلهوره امارت په رسمیت وپېژاند او هغه ته یې د "شاهنواز خان" لقب ورکئ. هغه هم د کندهار دربار ته د کالنیو مالیو دور کړې ژمنه وکړه.

خو چې وروسته میا نور محمد د خراج په ورکړه کښې سستي وکړه احمد شاه یو فرمان ور واستاوه او په هغه کښې یې د مالیو ورکړه وغوښته چې "خایف" سندهي د هغه فرمان مضمون د احمد شاه له خولې د "نامهٔ نغز" په دې بیت کښې داسې ځای کړی دی:

رساندی تو گر گنج درباج ما     شدي ایمن از تاب تا راج ما

دا فرمان چې د سندهـ دربار ته ورسېد، میان نور محمد د اطلس، کمخاب، دیبا او وریښمو د کالیو او قرنفل، مشك، عود او عنبر قیتمداره سوغاتونه د یوې درې کسیزې جرګې په لاس د بهای خان کلهوره په مشرۍ د کندهار دربار ته واستول او وې ویل:

سلامی رسانش بعجز ونیاز     که ای شاه افغان گردن فراز
منم بندهٔ تاجدار تو ام     به فرمانبرداري نامراد تو ام
من ازلطف تو چشم دارم بهي     بر شاه من میکنم آگهی



دا سفارتي جرګه چې احمد شاهي دربار ته ورسېده د دواړه دربارو دوستانه اړیکې؛ تر پخوا لا ښه شول او د شیخ محمد مرید قانوګو زوی شیخ محمد محفوظ سر خوش د سندهـ دربار له خوا کندهار او کابل ته د وکیل په توګه وټاکل شو، چې تر ۱۱٦۸هـ کال پورې په کابل کښې و. خو سره له دې هم هغه مالیې چې د ورکړې وعده یې شوې وه له سنده کندهار دربار ته راونه رسېدې، ځکه نو احمدشاه د سردار جهان خان سپه سالار په مشرۍ د هند د سفر له پاره یو لښکر چمتو کئ، چې پر (۱۱٦٦هـ ۱۷۵۳م) کال په سندهـ کې سپه سالار د ورتلو اوازه ګډه شوه، خو د همغه کال په پای ځرګنده شوه چې په خپله پاچا هم د سندهـ خوا ته رهي شوي دی.

د (۱۱٦۷هـ کال د محرمې پر څلورمه - ۱۷۵۳م د نومبر پر لومړۍ نېټه) احمد شاه د محمد آبادْ شګې (ریګستان) ته رسېدلی و، د سندهـ دربار په ډېره بېړه دیوان ګدومل د سفیر په توګه دده حضور ته واستاوه، چې د میان نور محمد د اطاعت او انقیاد خبر وروړی او په وروستۍ هڅې د احمد شاه د پرمختګ مخه ونیسي.

ګدومل سکهرپل ته نژدې شاهي لښکرګاه ته ورسېد، خو تر دوو ورځو پورې یې پاچا و نه لیدلای شو، څو چې شاهي موکب نوښار ته راغی هلته ګدومل د پاچا حضور ته ورغی او د پاچا راضي کولو کښې یې ډېر زیات زیار ویوست. وایي چې احمد شاه ډېر غضبناك و، خو ګدومل هم هوښیار، ژبور او کارپوه سفیر و، چې په لطایف الحیل یې د شاهي غضب په آرامولو کښې زیار ویوست. دی په دې پوه و چې احمد شاه اولیاء الله ته عقیده لري، نو څو جواله یې له خاورو ډك کړل او له نورو سوغاتو سره یې وړاندې کړل، احمد شاه پوښتنه وکړه: په دې جوالو کښې څه شی دی؟ ګدومل ورته وویل: د سند ډېر ښه سوغات، یعنې د سندهـ د اولیاوو د قبرو

پاکې خاورې.

احمد شاه هغه سوغات ته په درنه سترګه وکتل، قهر یې کښېناست، او د سندهـ له خلکو سره یې نرمه رویه را واخیستله، خو میان نور محمد خان په دې وخت کښې سندهـ پرېښوو او ختیځ خوا ته جیسلمیر ته ولاړ. هلته د (۱۱۶۷هـ کال د صفر پر ۱۲ - ۱۷۵۳م ددسمبر پر ۹مه) د کورهره په سرکهات کښې د ستغې (خناق) په ناروغۍ مړ شو.

په تذکرهٔ مخادیم کهرا کښې د احمد شاه یو فرمان دی چې د ۱۱۶۷هـ کال د محرم پر ۲۱ مه لیکلی شوي، له هغه څخه څرګندېږي چې احمد شاه د همغه کال په سر کښې سندهـ ته تللی و، د زیاتو مؤرخانو څېړنې هم دې لیکنې سره سمون خوري، لکه چې وویل شول احمد شاه د همدغه کال په منځ کښې له سندهـ نه خراسان ته ولاړ، یعنې د بېرته راګرځېدو پر مهال یې مخ خرسان ته شو.

د میان نور محمد تر مېړنې وروسته یې زوی محمد مراد یاب خان د ده پر ځای کښېناست، د احمد شاه حضور ته یې یو وکیل واستاوه او د مالیاتو ورکړه یې ومنله. احمد شاه هم دی د سندهـ د حکمران په توګه ومانه او د "سربلند خان" لقب یې ورکړ.

ښکار پورښار چې تل د کلهوره حکمرانانو او بلوڅو د داود پوتره قبیلو تر منځ د شخړې ځای و. ځکه نو احمد شاه هغه ښار د سبي په ولایت پورې وتاړه اداره یې افغان حاکم ته وسپارله، په دې ډول د افغانستان تجارت د ښکارپور له لارې تر ماوراء النهر او خراسان پورې جاري شو، دغه ښار د سوداګرۍ یوه غوره ځای شو سربېره پر دې احمد شاه په سند کښې اسماعیل خان پني د شهنشاهي دربار استازی وټاکه او اسماعیل، محمد آباد ته ورغی څو تنه عاملان یې د سید شاه محمد تر اداري لاندې تته او نورو



ښارو ته واستول، چې له هغې جملې څخه صالح خان تته ته ولاړ او د پخواني حاکم ګل محمد خان خراساني ځای یې ونیو او د مالیو په ټولولو یې لاس پورې کړ.

په دې وخت کښې احمد شاهي سفیر محمد بیګ شاملو هم تته ته راغی، او آقا محمد صالح یې د تته حکمران وټاکه د ښار سپین ږیري او مخ روبي یې شهریاري حضور ته وروستل، خو چې د اسماعیل او شاملو د ګمارل شوېو تر منځ اختلاف راټوکېد، نو ځکه قاضي محمد محفوظ د تته حکمران وټاکل شو.

دا مهال محمد مراد یاب خان د احمد شاه له خوا دسند د امیر په توګه وپېژاند شو، د "سر بلند خان" لقب ورکړه شو، په دې ټوله موده کښې یې د میان نور محمد مرحوم سفیر دیوان ګدومل شاهي دربار ته فعالیت کاوه، چې د کلهوراد امارت د کاله مشران یې دربار ته نژدې کړه او احمدشاه دوی په رسمیت وپېژندل، د محمد مراد یاب خان کوچنی ورور محمد عطر خان یې په شاهي دربار کښې د یرغمل په توګه مېلمه وساته، په دې روغه جوړه کښې محمد مراد یاب خان احمد شاهي دربار ته د سندهـ تر ټاکلې مالیې څه ډېره منلې وه.

تر هغه وروسته د سندهـ مشران او مخ روبي په امر کوټ کښې د خپل نوی امیر محمد مراد یاب خان حضور ته ورغلل او هغه یې د امیر مرکز ته بوت (د ۱۱۶۷هـ کال د صفر ۱۶مه) او شیخ ظفر الله د تته په حاکمۍ وګمارل شو.

دغه مهال دیوان ګدومل له احمد شاهي فرمان او فخر وړ سوغاتو سره د احمد شاه له حضوره امرکوټ ته ورسېد، هغه فرمان او سوغاتونه یې نوي امیر ته وړاندې کړل، نصر پورته نژدې په یوه میدان کښې د محمد

مراد یاب خان د تخت ناستې جشن جوړ شو، چې همدلته د نوي ښار (مراد آباد) بنسټ کښېښودل شو، (د ۱۱۷۰هـ محرمه- ۱۷۵۷م ستمبر).

محمد مراد یاب خان درې کاله په کامرانۍ حکومت وکړ، خو ځینې منبران ورسره مخالف شول او د ۱۱۷۱هـ د ذیحجې په ۵،۱۷۵۷م) یې دی په خپل ټاټوبي کښې بندي کړ، بله ورځ یې دده ورور میان غلامشاه پر تخت کښیناوه، ده د سند د خلکو او مشرانو په تسلي کښې زیار یوست. د فتح نومي په وینا مراد یاب خان عیاش او لاابالي سړی و ژوند یې په چټیاتو تېراوه او خلك ځنې زړه بدي وو، ځکه نو میر بهرام خان له نورو مشرانو سره لاس یو او د امیري له تخته یې وغورځاوه، خو د مراد یاب خان سکنی ورور یار محمد خان چې په خدا آباد کښې او د بهار شاه زوی مقصوره فقیر چې له مخ روبیو څخه و، مخالفان پاته شول.

دا وخت د سنده کورنۍ اوضاع ګډه وډه وه، عطر خان د امیرانو بل ورور چې د کندهار په شاهي اردو کښې یې د یرغمل په توګه ژوند کاوه د خپلو حقوقو په اړه یې د دربار د مشرانو په واسطه د احمد شاه حضور ته عرض وکړ او له شاهي حضوره هم یو فرمان صادر او عطرخان د سنده امیر وټاکل شو.

احمد یار خان د دغې پېښې په اورېدو سره یو لښکر غونډ کړ، خو سرایي مشرانو چې د عطرخان په نامه د احمد شاه فرمان صادرېدل واورېدل په احتیاط یې ګام اخیسته، میان غلام شاه چې په دې منځ کښې څه چانس نه درلود، د (۱۱۷۱هـ کال د صفر پر ۲۵مه - ۱۷۵۷م د نومبر پر ۸ مه) له خپلو قواو سره د سند د ریګستان خوا ته وخوځېد، په همدې وخت کښې مقصوده فقیر ته د عطر خان لیکونه ورسېدل، چې د هغو په اغېز محمد مراد یاب خان له بنده خوښي شو، د سرایي له یوې ډلې مشرانو سره د نوي



ټاکل شوي امیر عطر خان لیدو ته ورغی، او میان غلام شاه د راجه لیکهي او خپلو نورو طرفدارو مشرانو سره لیرې پاتې شو.

عطر خان چې سند تش ولید بې له کومه خنډه ور ننوت، احمد یار خان چې دا خبر واورېد نوښار خوا ته پر شا شو او د ۱۱۷۱هـ پر دویمه خور د ۱۷۵۷م پر دسمبر) محمد مراد یاب خان هم ور سره یو ځای شو.

د سرایي مشرانو او دغو دواړو ورونو داسې ګڼله چې عطر خان به د دوی د مشر تابهٔ حقوق وپېژني او دوی به د سنده په امارت ومني، خو عطر خان تر دوی زیات چلباز او ځان پالی و، د ورونو تر لیدو دمخه یې پر دوی د بندیګرت او خدا آباد ته د بیولو حکم وکړ. له همدغه وخته د عطر خان په اړه د خلکو او مشرانو بدګمانۍ پیل شوه. احمد شاهي دربار ته یې د مالیو په ټولولو او ورکړه کښې زیار ویوست، خلك یې تنګ کړل، خو دا کار یې تر سره نه کړای شو، نو په لږه موده کښې خلکو وغوښتل چې دی د امارت له تخته را وغورځوي.

دا مهال میا غلام شاه چې ادي پور ته شړل شوی و، بهاولپور ته ورسېد، خپل زوی میان سر فراز خان یې هلته پرېښوو، په خپله سنده ته ولاړ او د (۱۱۷۱هـ) کال د روژې په پای کښې په روهری کښې له عطرخان سره مخامخ شو.

تر څو جګړو وروسته د شوال پر لومړۍ عطرخان او ورور یې احمد یار خان له مقصوده سره مات او وتښتېدل، میان غلام شاه بریالی شو او د سرایي له مشرانو سره سیوستان ته راغی (د ۱۱۷۱هـ د شوال لومړۍ ۱۷۵۸م).

لږ وروسته محمد مرادیاب خان مړ شو او میا غلام شاه د خلکو او مشرانو رضا وګټله چې په کامرانۍ سره یې امارت کاوه، خو عطر خان او

احمدیار له سنده د کلات نصیر خان ته پناه یووړه او د سندهـ د وکیل ګدومل په لاس یې خپل عرایض د احمد شاه حضور ته ولیکل. احمد شاه له کندهاره د دوی د ملاتړ له پاره یو لښکر ور واستاوه احمد یار خان په شاهي دربار کښې پاتې شو او عطر خان د شاهي لښکر له افسرا عطایی خان سره بیا پر سندهـ یرغل وکئ، د فتحنامې د لیکوال په وینا د احمد شاه له حضوره یو فرمان د داؤد پو تره د قبیلو په نامه ولېږل شو چې له عطر خان سره مرسته وکړي، څکه نو داؤد د پو تره یو لوی لښکر دبهادر خان یو غوړي په مشرۍ د عطرخان خدمت ته چمتو شو.

میا غلام شاه د (۱۱۷۲هـ- ۱۷۵۹م کال تر دوهمې خور "ربیع الثاني" وروسته) په لښکر سمبالونه پیل وکړ، د دواړو خواو لښکرې په چاکچیکان کښې سره مخامخ او سختې جګړې ونښتې، نو میر بهادر خان تالپور چې د غلام شاه له خوا جنګېده د جګړې په ډګر کښې ووژل شو، عطر خان روغه ومنله او د روغلیك (صلح نامې) له مخې یې سندهـ پر درو برخو وویشه، یوه برخه میان غلام شاه ته ورکړ شوه او دوې برخې یې عطر خان او ورور ته ورکړې شوې.

خو د دغو دوو ورونو تر منځ هم شخړه پیدا شوه او میا غلام شاه د ۱۱۷۲هـ ۱۷۵۹م کال په روژه کښې پر عطر خان یرغل وکئ، له نوښاره یې وځغلاوه او ټول سندهـ یې ونیو، پر (۱۱۷۵هـ ۱۷۶۲م) کال په کندهار کښې د سندهـ د سفیر ګدومل په زیار له احمد شاهي درباره یو فرمان د امارت له سوغاتو سره غلام شاه ته ورسېد او دی یې د "شاه وردی خان" په لقب د سندهـ د امیر په توګه وپېژاند، تر هغه وروسته پر (۱۱۷۷هـ- ۱۷۶۴م) د کچه تر سوبو وروسته له احمد شاهي حضوره د "صمصام الدوله" لقب هم ورکړه شو، احمد شاهي فرمانونه یو د ۱۱۷۷هـ کال د دویمې خور پر ۲۰مه



او بل د ۱۱۷۷هـ کال د درېیمې خور پر لومړۍ د ده په نامه صادر شول، پر (۱۱۸۱هـ ۱۷۶۷م) کال دېره غازي خان او ډېره اسماعیل خان د احمد شاه بابا له خوا میا غلام شاه ته وسپارل شوې ده پر ۱۱۸۲هـ کال په پخواني نیرون کوټ کښې د حیدر آباد کلا ودانه کړه او هلته استوګن شو، خو د (۱۱۸۶هـ) کال د درېیمې خور پر ۳ مه (۱۷۷۲م د اګست پر ۲مه)د ګوزن (فلج) په ناروغۍ مړ شو.

د عبدالمجید جوکیه په وینا "غلام شاه یو ځل د خپل حماسي جوش په ترڅ کښې وویل: "زما لښکر ټول باید چمتو اوسي چې احمد شاهي ښار (کندهار) نیسم". د همدې وینا په وخت کښې د فالج ناروغی ور باندې راغله خبرې یې ودریدې او ژر مړ شو."

د میا غلام شاه تر مړینې وروسته د سندهـ مخ روبو او مشرانو د ده زوی محمد سرفراز خان پر تخت کښیناوه دوې میاشتې وروسته چې احمد شاه ابدالي په کندهار کښې له دنیا ولاړ، میان سرفراز خان، میر بهرام خان تالپور د درناوي او اطاعت له پار د افغانستان نوي پاچا تیمور شاه د احمد شاه زوی ته را وستاوه د کندهار دربار د سندهـ د حکمرانۍ فرمان له سوغات سره د ده په نامه ور ولېږه او د خدایار خان لقب هم ورته ورکړ شو.

## د احمد شاه مړینه او د هغه خویونه:

احمد شاه د خپل ژوند په پای کښې د پر له پسې جګړه ییزو سفرو د کړاوو له امله کمزوری شو او دی یې د کندهار له ښاره د کوړك، توبې غره ته چې لوړ او ښه هوا یې درلوده بوت، تر څو میاشتو وروسته د (۱۱۸٦هـ) کال د رجب پر شلمه د جمعې پر شپه همهلته د خوراړه (آکله) په ناروغۍ وفات شو، وزیر شاه ولي خان او یاقوت خان خواجه سرا دده مړی کندهار ته راوړ او په هغه ځای کښې یې ښخ کړ چې ده د مخه ټاکلی و، د مړینې پر وخت ۵۱ کلن و او ۲٦ کاله یې پاچاهي وکړه.(وګوري ۸۱ نومره عکس)

هغه ګنبده چې اوس په کندهار کښې د دغه نومیالي پاچا پر مزار ولاړه ده، د دوو تاریخي قطعو په استناد چې میرزا هادي خان د دربار منشي باشي ویلي دي په (۱۱۹۰هـ) کال د تیمور شاه په امر ودانه شوې ده او له دې دوو مصرعو څخه:

بګو "فیض آباد عالی مقام"

او

"مزار شاه فردوس برین ګو"

د دې ګنبدې د ودانۍ نېټه څرګندېږي.

(وګورئ ۸۲ نومره عکس)

احمد شاه متشرع، حنفي مذهبه، عالم او په دیني احکامو پابند باسواد سړی ؤ، د ده د پښتو اشعارو دیوان پر ۱۳۱۹هـ ش کال د عبدالحی حبیبي په زیار په کابل کښې چاپ شوی چې په هغه کښې د ده عشقي،



تصوفي، حماسي او اخلاقي کلام په دوه نیم زره بیتو کښې راغلي او د شعر مشهور اقسام: غزل، رباعي، قطعه، مخمس او مربع لري.

د ده په کلام کښې د تصوف ښه ښه ښکاره ده او ځینې اخلاقي او وطني اشعار هم پکښې شته دي، د خپل عصر د دوو تنو عارفانو د جلال آباد د حصارك شاه فقیر الله ته چې په ښکار پور کښې ښخ دی او د پېښور میا محمد عمر ته (چې پر ۱۱۹۰هـ مړ دی) ارادت درلوده، له ده څخه په تصوف او عرفان کښې هم ځینې منثور کلمات او ملفوظات پاتې دي چې د پېښور قاضي ملا محمد غوث پر هغو باندې د شرح الشرح په نامه په دري ژبه شرح لیکلې وه.

خو په سیاست کښې احمد شاه تل د اسلامي ورورګلوۍ، نرمۍ او دوستۍ پر خوا و. په ډهلي، بخارا، خراسان، بلوچستان او سندهـ کښې یې له خپلو هممهالیو امیرانو سره د روغې له لارې سوله ییز چلند لاره، پر شهنشاهي، برم او پوځي ځواك سر بیره یې هغه ټول امیران چې سرکښې به یې کوله څو واره عفو کړه او تاج بخښنې یې وکړې چې حتې د هغه وخت سترګور او د نظر خاوندان د ده دې تاج بخښۍ او د نظر وسعت ته هېښ حیران پاتې شوي دي. د شاه ولي الله دهلوي په وینا، د ابدالي دارویه "د دې مادي دنیا په چارو کښې حساب نه وه".

احمد شاه له جهانګیرۍ سره سره د مسلمان له وینو تویولو څخه ځان ژغوره، د جهاندارۍ په چارو کښې یې له عدالت او انصاف څخه کار اخیست او خلك یې د خپلو زامنو په شان پالل، نو ځکه افغانان ده ته "بابا" وایي او دا هغه لقب دی چې بې له میرویس او رحمانه د بل چا په برخه شوی نه دی.

احمد شاه جنګیالی او فاتح و، خو د ده له ټولو فتوحاتو او عسکري

اعمالو څخه څرګنده ده چې يو غارتګرو خرابکاره ستم پيشه او مظلوم وژونکی نه ؤ او که يو کار د روغې او مسالمت له لارې پر مخ تلای له مسلمانانو سره يې په جګړه لاس نه پورې کاوه، د ورور پر مخ يې توره نه ايستله. احمد شاه زموږ په ملي تاريخ کښې د اوسني افغانستان د بنسټ ايښوونکي او د افغانستان د خلکو د عظمت مجدد او د يو متحد هېواد او يو اولس جوړوونکي په حيث لوړ مقام لري، علامه اقبال وايي:

از دل و دست گهر ريزی که داشت
سلطنت هابردو بي پـروا گـذاشت

له همدغه امله ځينې ليکونکي ده ته ګوته نيسي چې ده ولې د ډهلي پاچاهي ناپوهو واکمنو ته پرېښووه؟ خو که د شاه ولي الله دهلوي او د نورو هندي مسلمانانو نوميالو او اميرانو ليکونه وکتل شي، را څرګندېږي چې هغه وخت احمد شاه هند ته د چور او چپاو د پاره نه ؤ تللی، دده يوازنی هدف دا و، چې د هغه ځای مسلمانان چې له ده څخه يې غوښتنه کړې وه - نجات ومومي بل دا چې ده نه غوښتل د خپل ملي قوت مرکز يعنې افغانستان پرېږدي، د پښتنو د نورو پاچاهانو لکه خلجيان، سوريان، لوديان او نورو کورنيو په شان په هند کښې ورك او مستهلك شي او يا دا چې د جهاد فی سبيل الله خالص خدمت به يې په دنيوي ککړتياوو ولړي، د ډهلي د پاچاهۍ د نيولو او د جهانګيري په حرص يې ککړ کړي، له همدې امله کټ مټ همدغه رويه يې څو واره د افغانستان له نورو ګاونډيو اميرانو سره په بخارا، خراسان، سند او بلوچستان کښې هم و کړه.

د افغانستان طبيعي بريدونه تل د احمد شاه په نظر کښې وو، که يې د ختيز خوا ته د پنجاب او کشمير ځمکې تر خپلې اداري لاندې ساتلې دا کار يې د خپل هېواد د ساتنې له پاره ؤ، دی پوهېده چې د ده د پاچاهۍ،



واك او قدرت چينه په خپله د افغانستان خاوره او د افغانستان خلك دي، ځکه نو که د پاني پت د فتح او د ډهلي له نيولو سره يې د خپلې پاچاهۍ او قدرت مرکز پرېښی وای، د خپلې انساني، فکري او اداري قواوې يې د هند په ارت هېواد کښې مستهلکې کړې وای ممکنه وه چې د ده هېواد افغانستان د پاچاهۍ د مرکزيت له نعمته بې برخې پاتې شوی وای او د ده کهول به هم د هغو نورو هندي شويو افغاني کهولو په سرنوشت اخته شوی وای چې بيخي له منځه تللي دي.

احمد شاه د ده د اشعارو د ديوان په شهادت د خپل وطن او خپلو خلکو سره توده مينه درلوده، په عين حال کښې صوفي مشر به ديندار سړی و، نه يې غوښتل چې د هند پاتې مسلمان اميران او خپل ګاوندی مسلمان اميران د خپلې جهانګيرۍ او د خپل دولت او جاه د حرص له پاره له منځه يوسي او د خپل ملي مرکزيت په محوه کولو خپلې مراندې په خپله پرې کړي. ځکه نو د ده سياست تل دا و چې خپل ګاونډی، اميران يې د شهنشاهي تر بيرغ لاندې د دوستۍ او پلار ګلوی په توګه ساتل او خپل ځان يې د کوم هېواد نيوونکی قهار او سرابن جهانګير نه ښوو.

## تر احمد شاه وروسته

د احمدشاه بابا تر مړینې وروسته یې له اتو زامنو څخه کشري زوی، شهزاده سلیمان د وزیراعظم شاه ولیخان په زیار په کندهار کښې پاچا شو، د ده مشر زوي تیمور چې د پلار پر ژوندانه د لاهور او ملتان حکمران و او هلته یې سکه هم وهله په دغه وخت کښې هرات کښې حکمراني کوله دستي کندهار خوا ته راغی (وګورئ ۸۳ نومره عکس) سلیمان یې له تخته واچاوه او شاه ولي خان یې وواژه، لږه موده وروسته یې پایتخت له کندهار کابل ته یو وړ، قاضي فیض الله دولت شاهي یې وزیر او د حاجي جمال الدین خان محمدزي زوی سرادر پاینده خان یې د سرفرازخان په لقب د کندهار د درانیو قبیلو مشر وټاکه او د خپلې پاچاهۍ دوره یې په کامرانۍ او د دښمنانو پر ټکولو تېروله د خراسان خلك درې واره نادري شهزاده شاهرخ میرزا ته پورته شول. تیمورشاه هم درې واره د هغه ملاتړ وکړ، دربیمه پلا، احمد خان نورزي پورته شوي کسان خورا سخت پر سر وټکول، پر (۱۱۸۸هـ ۱۷۷۴م) کال عبدالخالق خان سدوزی تیمورشاه نه یاغي شو، خو تیمور هغه مات او ړوند کړ او بیا پر (۱۱۹۳هـ ۱۷۷۹م) کال د پېښور او خیبر مشران لکه فیض الله خان خلیل او ارسلان خان مومند د پېښور په بالاحصار کښې تیمورشاه کلابند کړ، خو تیمور پر دوی بریالی شو او ټول یې ووژل، څنګه چې د سیکانو لښکر پر ملتان حمله کړې وه، نو څکه تیمورشاه پر(۱۱۹۶هـ ۱۷۸۱م) کال هغه ښار بېرته ونیو په سندهـ کښې هم میرفتح علي خان تالپوری یاغي شو، خو د تیمورشاه د لښکر پوځي مشر مدد خان د تالپور



قبیلې پر سر وټکولې او بېرته یې میرفتح علي خان د هغه ځای حکمران کړ (د ۱۲۰۱هـ ۱۷۸٦م په شاوخوا کښې). دوه کاله وروسته په کشمیر کښې آزادخان سر واخیست، خو تیمور هغه بېرته آرام کړ (۱۲۰۳هـ ۱۷۸۸م). څنګه چې د بخارا پاچاهان د سدوزیو د دولت مطیع او دوستان وو، څکه نو احمدشاه هم تل د دوی دوستۍ ته درناوی کاوه، خو د تیمورشاه په وخت کښې شاه مراد معصوم منغیتي مرو ونیوله، څکه نو تیمورشاه له سلزریز لښکر سره د کندوز او آقچې له لارې ورغی، او له شاه مراد سره یې روغه وکړه او آمو سیند یې برید وټاکه (۱۲۰۴هـ ۱۷۷۹م). هېواد یې پر خپلو زامنو داسې وویشه چې کندهار یې همایون، هرات یې محمود، پېښور یې عباس، کابل یې زمان، غزنه یې شجاع او کشمیر یې کوندل ته وسپاره او خپله دی تر دوویشتو کالو پاچاهۍ وروسته په داسې حال کښې چې پلرنی هېواد یې له کشمیر، پنجاب او سنده تر آمو او د خراسان تر مشهده ساتلي وو، د (۱۲۰۷هـ ۱۷۹۳م) کال د شوال پر اوومه په کابل کې مړ شو. څلورویشت زامن یې پاتې شول، چې د هغو له جملې څخه زمانشاه چې مور یې یوسفزۍ وه د سردار پاینده محمد خان محمدزي په مرسته د کابل پرتخت کښېناست او خپل ورونه یې د کابل په بالاحصار کښې بندیان کړل، خو همایون ورور یې له کندهاره د ده مقابلې ته راووت، د غلجیو په کلات کښې یې ماته وکړه او بلوچستان ته وتښتېد.

زمانشاه دننه په هېواد کښې په سختو کورنیو جګړو اخته شو د افغانستان بهرنیو دښمنانو د ورونو له دغه نفاقه ګټه واخیسته د شمال له خوا د بخارا منغیتي پاچاهانو، د لوېدیځ له پلوه د سندهـ میرانو د لوېدیځ له خوا آقا محمد قاجار او له ختیځ پلوه سیکانو د هېواد سرحدونه وګواښل څکه نو زمانشاه پر (۱۲۰۸هـ ۱۷۹۳م) کال د سیکانو د خطر د مخنیوي له

پاره د پنجاب خواته متوجه شو، خو چې پېښور ته ورسید همایون وروريې د سنده امیرانو په مرسته د بولان له خوا راغی او کندهار یې و نیو، شاه زمان ونه کړای شو د پنجاب سیمه تصفیه کړي، دستي یې په کندهار یرغل او همایون یې ونیو ړوند یې کړ او له هغه ځایه سنده د تالپوز د امیرانو د سرکوټلو له پاره د بولان تر درې تېر شو او له فتح عالي تالپور سره یې د درې لکو طلاوو په اخیستلو روغه وکړه بېرته د خپل ورور محمود مقابل ته چې له هراته یې لښکر را ایستی ؤ، ورغی هغه یې په فراه کښې مات کړ، او د محمود د مور په سپارښتنه یې هغه بېرته د هرات حکمران وټاکه تر هغه وروسته یې بلخ هم د بخارا له اوزبکو پاچهانو څخه ونیو او پر (۱۲۱۰ هـ - ۱۷۹۵م) کال له خپل لښکر سره تراټك پورېوت او په حسن ابدال کښې یې د سیکانو لښکر سره ومروړل او له دېرش زریز لښکر سره یې لاهور بیاونیو ځنګه چې محمود ورور یې په هرات کښې بیا سر اخیستی او یاغی شوی و بېرته کابل او کندهار ته وګرځېد محمود له هراته ایران ته وتښتېد او زمانشاه، هرات خپل زوی شهزاده قیصر ته وسپاره (۱۲۱۲ هـ - ۱۷۹۷م).

زمانشاه یو لوړ همته او ادعا طلبه سړی و او په کابل کښې یې د یوه لوی لښکر په جوړولو لاس پورې کړ چې پر هند یر غل وکړ د احمدشاه شهنشاهي بیا نوي کړي او هم د انګریزانو د متجاوزو قواو په مقابل کښې د هند له مسلمانانو سره مرسته وکړي په دغه وخت کښې ناپلیون هم مصر ته رسېدلی و او د زمانشاه دربار ته یې یو پیغام راواستاوه چې په هند کښې د انګریز د متجاوزو او بریالیو قواو مخه ونیسي او فرانسه امپراتور ته د دوستۍ او همکارۍ له لارې ور وړاندې شي ځکه نو زمانشاه هم په هند کښې د انګریز د استعماري قواو د مخنیوۍ لپاره ملا وتړله او د هند د نیولو په غرض له خورا درانه قوت سره پېښور ته لاړ (د ۱۷۹۸ م د اکتوبر



۲۵مه - ۱۲۱۳هـ) ده په لاهور کښې له رنجیت سنګهـ سره سیاسي خبرې اترې وکړې او هغه یې خپل اطاعت ته اړکړ او پر ډهلي باندې یې د یرغل له پاره خپل لښکر سمبالاوه.

انګریزي سیاست پوهانو چې په هند کښې یې تر اوسه خپل مخ ته داسې ځیږ خنډ نه و لیدلی او له بلې خوا یې د زمانشاه په مقابل کښې لښکري قوت هم نه شو رایستلای، نو په سیاسي فعالیت یې لاس پورې کړ، لارډ ولزلي د هند ګورنر جنرال د برتانیا د دولت یو سفیر کپتان جان ملکم د ایران دربار ته واستاوه د (۱۸۰۱م کال د جنورۍ د لسمې نېټې) تړون یې له ایران سره لاسلیك کړ چې د هغه له امله د ایران پاچا ژمن شو چې که افغان پاچا پر برتانوي هند حمله وکړي، د قاجار لښکر به پر افغانستان وردانګي او که افغان پاچا یا فرانسه پر ایران یرغل وکړي، د ایران پر سمندریزو کڅو تېری وکړي، انګریز دولت به خپل پوځونه د ایران مرستې ته واستوی، پر دغه تدافعي او حربي تړون سربېره د برتانیا سفیر جان ملکم لا پخوا د آقامحمد قاجار پر ځای ناست فتح علیشاه پر خراسان او هرات یرغل ته پارولی و، چې په دې توګه د جبهې تر شاه زمانشاه ته ګواښ پېښ او هغه پر هند باندې له یرغل څخه منصرف کړ (۱۲۱۴ هـ ۱۷۹۹م) ځکه چې د زمانشاه دغو لښکرکښیو په هند کښې لوی بدلون پېښ کړی و او نژدې و چې د احمدشاه د فتوحاتو تاریخ بیا له سره شي.

د "ولزلي" د اسیاسي فعالیت چې د ایران په دربار کښې یې د ملکم په واسطه کړي و، بریالی شو، د قاجار لښکر چې د انګریز په پارونه، پر خراسان یرغل وکړ، زمان شاه مجبور شو چې د پېښور او کندهار له لارې خپل ځان هرات ته ورسوي، فتح علیشاه په خپل مقصد کښې چې د هند له نیولو څخه د شاه زمان راګرځول و، بریالی شو، نو خپل لښکر یې له خراسانه

ببرته وغوښت.

خو زمانشاه د هند نيولو تکل پرې نه ښوو، بيا يې له افغاني ځواکونو څخه يو لوی لښکر جوړ کئ او په پېښور کښې يې په هر اړخيزه سمبالونه لاس پورې کئ، انګريزی ښکېلاګګرو چې دی په هند کښې د ځان خورا غښتلی رقيب باله، نو د ده له پاره يې اساسي چاره وسنجوله او و يې غوښتل چې د ده د ورو‌نو له رقابت او له افغاني کورني نفاق (زموږ د ملي تباه کوونکی ناروغی) څخه کار واخلي او خپل دا خطرناك رقيب بيخي له منځه يوسي. دا ځل د انګريز سياست پوهانو پام د زمانشاه شړل شوي ورور شهزاده محمود ته وراواښت، چې هغه وخت يې له سردارفتح خان بارکزي سره په ايران کښې يوځای و، سردار پاينده خان د فتح خان پلار چې د شاه زمان په امر وژل شوی و ځکه نو فتح خان هم د شاه زمان له مخالفانو څخه ګڼل کېده.

د ويلو وړده چې: هاغه مهال فتح خان يو غښتلی، هوښيار او متنفذ شخصيت و، چې په درانيو قبيلو کښې له فراه تر کندهاره يوازينی مرد ميدان او د ملي قوت خاوند ګڼل کېده. ده ډېر غښتلي ورو‌نه درلودل او د ده کهول تر شاهي کهاله وروسته د افغاني قوت يوازينی ښېلګه وه.

د قاجار په دربار کښې انګريزکار کوونکيو شاه محمود د شاه زمان د رقيب په حيث پېژاند چې په ترټلي او پرېشانه حالت له هېواده وتلی او د ايران خاورې ته يې پناه وړې وه، ځکه يې نو دا وار محمود د قاجار د پاچا په وسيله وپاراوه او د سردار فتح خان په ملګرتيا د سيستان او فراه له لارې د افغانستان خاورې ته رانغه ووت، دوی د درانيو او بارکزيو قبيلو په مرسته چې د ايران له بريده تر کندهاره پرتې وې سيستان، فراه او کندهار ونيول او بيا چې يې يو لوی او غښتلی لښکر تيار کئ نو د سردار فتح خان په مشرۍ



يې د ګابل خوا ته مخه وکړه، شاه زمان چې په پېښور کښې د هند نيولو په تکل لښکر جوړاوه د دغه خبر په اورېدو کابل ته راغی، د خپل ورور او سردار فتح خان د مخنيوۍ له پاره تر غزني تېر شو، د دواړو ورو‌نو لښکر د غزني او مقر تر منځ په تازي کښې سره وجنګېدل، په دې جګړه کښې زمانشاه مات شو، د خپل ورور په لاس کښېووت او ژر تر ژره يې ړوند کئ، انګريزانو په دې لويه پېښه خپل خطرناك رقيب له منځه يووړئ او هم يې په افغانستان کښې د کور پر کور جګړو اور بل کئ، چې تر هغې وروسته هېڅا د هند نيولو فکر ونه کئ" داوه د کور پر کور جنګېدو او داخلي نفاق بده نتيجه چې تل يې د افغان کور وران کړی دی."

محمود چې د کابل پر تخت کښېناست (۱۲۱۵هـ - ۱۸۰۰م) سردار فتح خان محمدزی يې خپل وزير وټاکه (چې تفصيل به يې د محمدزيانو په برخه کې راشي)، افغانستان د وزير فتح خان د ورو‌نو په لاس ورغی او محمود تش په نامه پاچاو.

شجاع الملك د زمانشاه سکنی ورور چې له ليرې دا ويرجنې پېښې ليدې، په پېښور کښې يې لښکر جوړ او د محمود مقابلې ته راووت، د شاه محمود د رېزريز لښکر چې له کابله راغلي وو، په اشپان نومي ځای کښې يې د شجاع الملك له لښکر سره جنګ وکئ او شجاع الملك يې د خيبر غرو ته پر شا کئ (۱۲۱٦هـ - ۱۸۰۱م)،خو کورنيو جګړو شامحمود هم غلی پرې نه ښوو، پر (۱۲۱۷هـ - ۱۸۰۲م) کال له غلجيانو او هم په پېښور کښې له شجاع او اپريديو سره او د هېواد په شمالي سيمو کښې د اوزبکو له حکمرانانو سره چې له جيحونه يې تيری کړی و، لوی جنګونه پېښ شول د ايران قاجاري دولت هم د نادري کهاله پايځوړ چې په خراسان او مشهد کښې يې د افغاني پاچهانو تر لاس لاندې حکومت کاوه له بيخه ويوست او مشهد

يې ونيو، له بلې خوا د بلوڅو اميرانو ته هم د خپلواکۍ فکر پيدا شو پردغو ټولو فتنو سربېره شاه محمود چې عياش او خېټور سړی و، په خپله يې کارنه کاوه او د هېواد چارې يې ټولې وزير فتح خان او د هغه وروڼو ته سپارلې وې، ځو چې خلکو بلوا وکړه او د شاه ولي خان باميزي زوی مختارالدوله شېرمحمد خان چې د ده پيشکارو شجاع الملك ته د کابل د پاچهۍ له پاره بلنه ورکړه، شجاع هم پر (۱۲۱۸هـ - ۱۸۰۳م) کال له پېښوره کابل ته راغی او د پاچهي پرتخت کښيناست شاه محمود يې لرې کئ او ويې باخښه، د محمود زوی شهزاده کامران او وزيرفتح خان چې په کندهار کښې وو ځکه نو شاه شجاع د زمان شاه زوی شهزاده قيصر د هغو د مخنيوي له پاره واستاوه، هغه کندهار بې جنګه ونيو او کامران يې فراه ته پرشا وشاړه؛ وزير فتح خان خپل ځان شاه شجاع ته تسليم کئ او دګرشك جنوبي خواته د بارکزيو د ناوې د "ادې" په کلا کښې ظاهراً منزوی شو، خو په باطن کښې يې د سياست په چارو کښې له مداخلې څخه لاس نه و راټول کړی، پر (۱۲۱۹هـ - ۱۸۰۴م) کال چې شاه شجاع په پېښور کښې د پرش زريز لښکر غونډ کئ او د کشمير، پنجاب او سند د تصفيې له پاره رهي کېده په کندهار کښې شهزاده قيصر د خپل اکا پر خلاف راپورته شو، شاه شجاع د خپل وراره غوړونه تاو کړل او بېرته يې د کندهار حکمران کئ په خپله يې د سند د تالپور پر شورشي اميرانو يرغل وکئ او تر ۳۲۰ زره روپيو اخيستلو وروسته يې روغه ورسره وکړه، خو داخلي اوضاع نا آرامه او ښوريدلې وه او د پاچا ناپوهو وريرونو کامران او قيصر تل د مخالفت هڅې کولې شاه شجاع چې د کشمير او پېښور په جګړه اخته و، د داخلي مخالفانو د مقابلې له پاره يې فرصت نه درلود، نو ځکه د افغانستان او ضاع بحراني، تيت پرکه او پرېشانه وه. دا مهال انګريز ښکېلاکګرو ځواکونو هندوستان تر لودهياني



پورې ونيو، خو دا چې د ايران په دربار کښې د فرانسې، له ورځ پر ورځ زياتېدونکې اغېزې څخه بېرېدل او غوښته يې چې د هند په فتوحاتو کښې خپل اروپايي رقيبان بېخي له منځه يوسي او د هند پرلويه مځکه يوازې خپته واچوي، ځکه نو د برتانوي هند د حکومت له خوا يو ايلچي "الفنستون" له مستر استر چې سره د (۱۸۰۹ م کال د مارچ پر ۵ مه) په پېښور کښې شاه شجاع ته راغله، دی يې پر افغانستان باندې د ايران له احتمالي حملې څخه و بېراوه، له دې کبله د شاه شجاع او برتانوي هند تر منځ د دوستۍ لومړی تړون وتړل شو، چې هغه بيا د (۱۸۰۹م کال د جون پر ۱۷ مه، ۱۲۲۴هـ) د هند ګورنر جنرال لاردمنتو تصديق کئ، دغه تړون دفاعي بڼه درلوده، ځکه چې په لومړۍ او دويمه ماده کښې يې ويلي شوي چې: که فرانسه او ايران د افغان پاچا پر متصرفاتو تېری وکئ، د برتانوي هند دولت به د کابل له پاچا سره مرسته کوي او پر افغانستان به د تېري مخه نيسي. درېيمه ماده يې د دواړو خواو دوستانه روابطو او يووالي ته اشاره کوي چې افغان پاچابه خپل هېواد ته هېڅ يو فرانسوی نه پرېږدي او دواړې خواوې به يو د بل په هېواد کښې مداخله نه کوي او تل به د دوستۍ ته په درنه سترګه ګوري.

دغه تړون شاه شجاع ته ګټورنه و، دی يې خلکو ته سپك کئ او شاه محمود بياد فتح خان په مرسته دی دوه کاله په هېواد کښې دننه په جګړو او فتنو اخته وساته - چې په پای کښې يې ماته وکړه او په هندوستان کښې يې برتانوي دولت ته پناه يوړه (۱۲۲۶ هـ - ۱۸۱۴م) خو دويمه پلا بيا د انګريزانو په ملاتړ پر تخت کښيناست دی په هند کښې برتانوي هند دولت د دې له پاره ساتلی و چې په راتلونکې کښې يې په افغانستان کښې و کاروي.

خو شاه محمود چې دويمه پلا پرتخت کښېناست د هېواد د چارو واکې اصلاً د وزير فتح خان په لاس کښې وې دغه زړور وزير بلوچستان، سند او کشمير د ځان تابع کړل او د شاه محمود په نامه يې پر هېواد حکم کاوه. افغانستان يې خپلو وروڼو ته سپارلی و. چې دا مهال رنجيت سنګهـ اټک کلا ونيوه، نو فتح خان په ضلع هزاره کښې تر يوې سختې جګړې وروسته هغه مات کئ او کشمير يې هم خپل ورور سردار محمدعظيم خان ته ورکئ (۱۲۳۰ هـ - ۱۸۱۴م).

دا وخت هرات د محمود د ورور حاجي فيروزالدين په لاس کښې و، پر (۱۲۳۲ هـ - ۱۸۱٦ م) کال فتح علي شاه قاجار د هرات نيولو اراده وکړه ځکه نوفتح خان د کابل له لښکر سره هرات ته ولاړ، لومړی يې حاجي فيروزالدين ونيو کابل ته يې واستاوه او بيا يې د هرات لوېديځ ته د کهسان په جګړه کښې د قاجاريانو د لښکر لس زره تنه ووژل او له هراته يې وشړل، په خپله د هرات د چارو په سمون بوخت شو. خو په دې وخت کښې يوه بدمرغه پېښه وشوه او هغه دا چې "سردار دوست محمدخان" د وزير ورور په هرات کښې د حاجي فيروزالدين کاله ته ورننوت، د ښځو ګېڼې، پسول جواهر او دانه نښانه قيمتي ملابند چې د (تاريخ احمدشاه دراني د مولف) شيرازي په وينا پنځوس زره تومانه قيمت يې درلود له نورو نفايسو سره واخيستل او کشمير ته ولاړ، دې پېښې پرشاه محمود او کامران ډېره ناوړه اغېزه وکړه او د دوی او وزير فتح خان د کهاله تر منځ بد وردي او کينه پيدا شوه، همدا د کرکې او بدبينی احساس و، چې په زړېوګنوونکې توګه د وزيرفتح خان د وژلو او د سدوزيو او بارکزيو د کهاله تر منځ د دښمنی سبب شو.

شاه محمود خپل ناپوه او کينه ناک زوی کامران هرات ته واستاوه،



کامران د وزير فتح خان د ورور د اعمالو د کسات اخيستلو په غرض وزيرفتح خان ونيو او د هغه پوه وزير په سترګو يې سيخ ومانده او ړوند يې کئ (۱۲۳۳ هـ - ۱۸۱۷م) د شهزاده کامران دا کار په ظاهره د فتنې آراموليو سبب وګڼل شو، ځکه سودوزي کورنی دا کارونه د وزير په اشاره ګڼل، خو رانده وزير ډېر غبنتلي وروڼه لرل، هغو چې د خپل مشر ورور د ړندېدو خبر واورېد، په ټول هېواد کښې له کشميره تر هراته فتنې وخوټېدلې او د قهر او غضب اور لمبې پورته شوې، سردار دوست محمد خان له کشميره راوګرځېد کابل يې ونيو او شاه محمود يې غزني ته وشاړه.

له هاخوا کامران له ۱۲ زرو لښکريانو سره په غزني کښې د خپل پلار مرستې ته راورسېد له بلې خوا سردارمحمدعظيم خان له کشميره د سردار دوست محمدخان مرستې ته راغی او د کابل او غزني په منځ کښې سره وجنګېدل، خو محمود او کامران مات شول په همدغه وخت کښې يې ړوند وزيرفتح خان هم د وردګو په سيدآباد کښې د کسات له مخې په ډېر بد عذاب ووژاه او بند پر بند يې پرې کئ ( ۱۲۳۴ هـ - ۱۸۱۸ م) دوی په خپله هرات ته ولاړل او هلته د حکومت پر سر د محمود او حاجي فيروزالدين تر منځ شخړه پيدا شوه کامران پر دواړو بريالی شو او دوی يې ووژل (۱۲۴۵هـ - ۱۸۲۹م) په خپله کامران تر (۱۲۵۸ هـ - ۱۸۴۲م) کال پورې پر هرات حکومت وکئ.

دا مهال چې پر ټول هېواد د نفاق اور بل و، د ايران قاجاري دولت بيا پر (۱۸۳۲ م) کال د تزاري روسيې په پارونه او د عباس ميرزا په قوماندانی دېرش زريز لښکر د هرات نيولو له پاره را واستاوه خو د انګريز له خوا له دغه کار څخه د قاجاريانو مخنيوی او خپل هېواد "افغانستان" ته د هراتيانو وفاداري د دې لامل شول چې هرات د پخوا په څېر د افغاني

سلطنت په پلازمینې پورې نښتی پاتې شي.

سدوزي پاچاهان:

* ۱- احمدشاه "باباابدالي" د زمانخان زوی (۱۱۶۰هـ ۱۱۸۶م)
۲- سلیمان د احمدشاه زوی (۱۱۸۶هـ)
۳- تیمورشاه د احمدشاه زوی (۱۱۸۶هـ ۱۲۰۷هـ)
۴- زمان شاه د تیمورشاه زوی (۱۲۰۷هـ - ۱۲۱۵هـ)
۵- شاه محمود د تیمورشاه زوی (۱۲۱۵هـ ۱۲۴۵هـ)
۶- شاه شجاع د تیمورشاه زوی (۱۲۱۸هـ ۱۲۵۸هـ)
۷- فیروز الدین د تیمورشاه زوی (په هرات کښې د ۱۲۳۰هـ شاو خوا).
۸- کامران د شاه محمود زوی (په هرات کښې ۱۲۳۴هـ - ۱۲۴۵هـ)

اخـځلیـك:

حیات افغاني، سراج التواریخ، تحفة الحبیب- تاریخ سلطاني- خورشید جهان- سیر المتاخرین، د سرجان مالکم تاریخ - تاج التواریخ - احمدشاه بابا، لوی احمدشاه بابا، مجمل التواریخ بعد نادریه، د فروغی تاریخ ایران، د عباس اقبال تاریخ عمومی - جهانکشاء نادری، دایرة المعارف اسلامي، صولت افغانی، تاریخ احمدی (قلمي)- تتمة البیان - نادر نامه (قلمي) - خلاصة الانساب (قلمي)، رهنمای افغانستان، مجمع التواریخ، ریاض المحبة - خصایل السعادة، مکتوبات سیاسی شاه ولي الله، مکتوبات شاه فقیر الله، رنجیت ظافر نامه، حیات حافظ رحمت خان، تاریخ نظامي ایران، تاریخ پښتون شوکت افغانی، تاریخ پشاور، شمس النهار کابل(جریده)، سراج الاخبار (جریده)، تاریخ افغانستان دملیسون، احمدشاه درانی د گنډاسنگ په انگریزی، تاریخ احمدشاه دراني د سید حسین شیرازی، عماد



السعاده د سید غلام علي خان، راجگان پنجاب د گریفن په انگریزي، تاریخ بلوچستان خزانهٔ عامره، تاریخ سنده د مولانا مهر، تاریخ سند په انگریزي، گزیتیر سنده، تاریخ کلهوره په انگریزي، تحفة الکرام.

# اوومه برخه

## محمدزايان

### له (۱۲۱٦ هـ) تر (۱۳۳۸ هـ)

محمدزي د کندهار د بارکزيو درانيو يوه پښه ده. د دوی پخوانی نيکه "محمد" د کندهار د ابداليو د قبيلو د حکمران ملك سدو هممهالی ؤ چې د (۱۰۰۰ هـ -۱۵۹۱م) پرشاوخوا يې د کنډهار جنوب ختيز خوا ته په ارغستان کښې له خپلې کوچنۍ قبيلې سره ژوند کاوه.

محمد د عمر زوی د دارو او بارك په ټبر پورې چې د سړبن ابدالي پښتنو يوه څانګه ده اړه لرله. د محمد نيکه مزار اوس هم د کندهار په ارغستان کښې دی. د محمد اولادې د بارکزيو قبيلو په منځ کښې د رياست مقام لاره، مرکز يې د بارکزيو ناوه ګرشك و چې د هلمند پر غاړه پروت دی. تر اوسه هلته د ادې کلا شته دا د دغه کهاله پخوانی ځای دی.

لکه مخکې چې مو ولوستل د شهر سرخ په جرګه کښې چې د پادشاه د ټاکلو له پاره جوړه شوې وه د دغې قبيلې مشر حاجي جمالُ خان د حاجي يوسف زوی د يارو لمسي او د محمد کړوسي هم ګډون کړی و، هغه وروسته د احمدشاه په دربار کښې مشاور ګڼل کېده چې پر (۱۱۸۴هـ) مړ او



د کندهار په جنوب سيمه "ذاکر کلي" کښې ښخ شو. تر ده وروسته يې زوی سردار پاينده خان د کندهار په جنوب کښې له ارغستانه د هلمند د بارکزيو تر ناوه پورې د بارکزيو قبيلو د مشر په توګه وپېژندل شو. تيمور شاه ده ته مهم منصوبونه ورکړل ده د کشمير د آزادخان او د عبد الخالق سدوزي د پاڅون په ټکولو او د مومندو لالپورې ته د تيمور د زوی شهزاده عباس په شړلو کښې، تيمورشاه ته غوره خدمتونه وکړل چې له همدغه امله د سرفرازخان په لقب و وياړل شو.

خو د تيمورشاه تر مړينې وروسته زمانشاه د ده پر ځای رحمت الله خان سدوزي ته د وفادارخان په لقب وزارت ورکړ او سردار پاينده خان د هلمند غاړې ادې کلا ته وشړل شو. خو دا چې نوموړی ځای د خلکو د ورتګ ځای و، نو زمان شاه دی له ځينو همکارنو سره په کندهار کښې وواژه (د روژې (۱۳مه ۱۲۱۴هـ - ۱۷۹۹م). سردار پاينده خان شل تکړه او مېړني زامن لرل چې د پلار تر وژل کېدو وروسته په افغانستان کښې خواره شول، د سردار پاينده خان مشر زوی، سردار فتح خان له کندهاره د زمانشاه ورور شاه محمود ته چې په ايران کښې اوسېده پنا وروړه، هماغسې چې د سدوزيو په اړه مو وويل: دا مهال زمانشاه پر هند د يرغل له پاره سل زريز لښکر جوړ کړی و، انګريز سياسي استازيو د دغه لښکر د ناکامېدو له پاره هرې خوا لاس او پښې وهلې، ډېر ډاربدل چې ناپليون د زمانشاه له دربار سره له سياسي خبرو او اړيکو څخه ګټه وانه خلي، څکه يې د ايران د قاجاريه حکومت په مرسته شاه محمود ولمساوه او افغانستان ته يې د زمانشاه پر خلاف راواستاوه. سردار فتح خان هم د سيستان او فراه له لارې هېواد ته راستون شو. د محمود د څواکونو په مشرۍ يې پر کندهار يرغل وکړ، د "تازي" په جګړه کښې يې شاه زمان مات او د محمود په حکم يې هغه ړوند

کړ. دوی کابل هم ونیو او د شازمان وزیر رحمت الله خان سدوزي یې وواژه.

همدا چې شاه محمود د کابل پر تخت کښېناست، سردار فتح خان یې د" شاه دوست" په لقب خپل وزیر وټاکه، ټول هېواد یې هغه او د هغه ورونو ته پرېښوو (۱۲۱۶ هـ ۱۸۰۱م). د سردار پاینده خان محمدزي زامن له همدغه مهاله د افغانستان حکمرانان شول، فتح خان چې هراړخیز واك یې لاره خپل ټول ورونه یې د افغانستان پر ولایتونو حکمرانان کړل. یوازې یو ورور سرداردوست محمد خان یې له ځان سره په مرکز کښې وساته، محمد عظیم خان او بیا وروسته عبداالجبار خان ته یې کشمیر ورکړ، پېښور یې تر اټکه یار محمدخان او سلطان محمدخان ته وسپاره، سند او ښکارپور یې رحمدل خان، غزني یې شېردل خان، بامیان یې کهندل خان، کندهار او د هغه خواوشا له کلاته تر بولان درې او فراه پورې مهردل خان او پردل خان ته او دېره جات تر پنجاب او د پېښور تر غرنیو سیمو پورې نواب عبدالصمد خان او د هغه زوی نواب زمان خان ته ورکړ شو. په دغه کشمکش کښې هېواد د جګړو او وینو بهولو ډګر شو خو په هرات کښې وزیر فتح خان د شهزاده کامران د وزیر عطامحمد خان په لاس ړوند کړای شو (۱۲۳۴هـ ۱۸۱۸م). دغې پېښې بارکزي ورونه غچ اخیستو ته اړ کړل او سخت اړدوړ پیل شو. وروسته تر هغې چې د سدوزیو د کهاله وروستی تغر یې ټول کړ، د وزیر فتح خان د ورونو تر منځ هم د پادشاهۍ پر سر شخړې را وزېږېدې. تر هغې چې سردار دوست محمد خان په کابل عیدګاه جومات کښې خپل امارت اعلان کړ او د کابل امیر په توګه یې په نامه خطبه ولوستل شوه، (۱۲۵۴هـ - ۱۸۳۸م).

امیر بې له ځنډه په افغانستان کښې خپل ټول زامن پر خپلو سیمو وټاکل خو رنجیت سنګه د افغانستان له کورنیو شخړو ځخه ګټه واخیسته



او ګرد پنجاب یې تر پېښوره ونیو، سردار سلطان محمد خان هم د بالا کوټ په جګړه کښې د میراحمدخان بریلوي او مولوي اسماعیل په مشرۍ د مجاهدینو په شهادت او د پېښور په صوبه کښې د یار محمد خان او د هغه د ورور په مړینه، کمزوری شوی و، دا وېره هم وه چې رنجیت سنګه به پر خیبر یرغل وکړي، ځکه نو امیردوست محمد خان د یوه لیك له لارې د هند له ګورنر جنرال لاردبنټك ځخه د پېښور د بېرته نیولو په چار کښې مرسته وغوښته او د باسول له لارې یې له شپېته زریز لښکر سره د پېښور پر لوري حرکت وکړ. خو سردار سلطان محمد خان د امیر لښکر تار پر تار او امیر بېرته ناکام له پېښوره خیبر او جلال آباد ته راستون شو. په دې توګه اشنغر تر کوهاټ او ټله د امیر ورور سلطان محمد خان ته پاتې شو (۱۲۴۵هـ ۱۸۳۸م).

امیر دوست محمد خان د رنجیت سنګه د ماتولو په تکل د لیکونو له لارې له انګلیس، ایران او زاري روس دولتو ځخه مرسته وغوښته. د هند وایسرای لاردآکلیند پر (۱۸۳۶ - ۳۷م) د بریتانوي هند له خوا سر الکساندر برنس، میجر لیچ، لفتننت او دومسترلارډ د لومړني سیاسي او اقتصادي هیئت په توګه کابل ته ولېږل.

په عین وخت کښې د روسیې یو نفر نماینده ویتکویچ (۱) هم کابل ته رسېدلی و، چې د کابل دربار او د کندهار حکمرانان یې په سند او پنجاب کښې د انګلیس د پرمختګ پر خلاف هڅـول، امیر دوست محمد خان له الکساندر برنس سره په دې شرط مفاهمه وکړه، چې که د انګلیس دولت دوه

۱- Vitkievitck په ۱۳۳۸ کښې کابل ته راغی، خو دا سفیر په غیر رسمي ډول د روسیې د وزیر مختار له خوا په تهران کښې کابل ته رالېږل شوی ؤ. (اریانا- ټ ۲- ګ ۱).

زره ټوپك وركړي او د سند درياب د لوېديځ ځمكې هم ده ته پرېږدي نو دی به تل د انګليسانو دوست او همكار وي.

مگر د هند برتانوي دولت د روس له احتمالي حملو څخه د هند د ساتلو له پاره پر شاه شجاع سدوزی چې له سلطنت څخه خلع او په لودهيانه كښې فراري و نظر درلود پر دې اساس لارډآكليند د اكتوبر پر لومړۍ (۱۸۳۸ م) د افغان او انګليس لومړی جنګ پيل او د امير دوست محمد خان د خلع او رينبې كښېنولو له پاره يې ملا وتړله.

شاه شجاع چې په دغه وخت كښې د خپل تخت و تاج د لاس ته راوړلو له پاره هر ډول پستی ته حاضر و، د مارچ پر ۱۲ (۱۸۳۴م) يې خپله لومړی تړون چې ۱۴ مادې يې لرلې له مهاراجه رنجيت سره وتاړه كه څه هم مخلوع پاچا په دغه وخت كښې هېڅ ډول حقوقي او رسمي حيثيت نه لاره، خو په معاهده كښې يې ټول كشمير، پنجاب او د اټك، پېښور ځمكې تر خيبر او سند پورې، رنجيت ته پرې ښووې، دوارو خواو د (۱۱ - ۱۳ - ۱۴) مادو پر بنسټ د خطر په وخت كښې د يوه بل لښكري مرسته قبوله كړه؛ د تجارت د جريان په هكله يې هم ځينې مواد په دغه تړون كښې ځای كړل، خو څرنګه چې دغه تړون يوازې د شاه شجاع او رنجيت تر منځ و او انګليسانو په هغې كښې ګډه نه درلوده د هند بريتانوي دولت هغه ونه منله پر هغې پسې د لاهور تړون د (جون ۲۶ - ۱۸۳۸م) د بريتانوي ګورنر جنرال، مهاراجه رنجيت سنګهـ او شاه شجاع الملك تر منځ په شمله كښې د جولای پر ۲۵مه ۱۸۳۸م وتړل شوه {دا هغه كال دی چې روسي نماينده ويتكويچ كابل ته راغلی و} په دغه معاهده كښې چې ګورنر او رنجيت سنګهـ حقوقي شخصيتونه وو او اختيارات يې درلودل دريم شخص شجاع الملك په هېڅ ډول د خپل هېواد د استازي صلاحيت نه لاره؛ په دغه وخت كښې دی يو



فراري او له ملي حقوقو فاقد سړی و.

په هر حال د لاهور تړون د مستر ډبليوايچ مكناټن په ذريعه چې د لارډآكليند د هند د نائب السلطنه له لوري يې استازي توب لاره، په "۱۸" مادو كښې لاسليك شو، شاه شجاع د افغانستان د تاج و تخت د بيا نيولو د وعدې په مقابل كښې د افغانستان له ټولو ځمكو چې په ماوراء بولان او خيبر كښې وې لاس واخيست او پر كال يې دوه لكه روپۍ باج له پېنځه زريز لښكر سره ومانه چې د تاج و تخت تر لاس ته راوړو وروسته يې رنجيت ته وركي او له بل هېڅ دولت سره چې د انګليس او مهاراجه د دولت مخالف وي د دوستی. او سياسي اړيكو تړون و نه كړې. په هرات كښې به هم خپل وراره حكمران وپېژني او د هرات په امورو كښې به مداخله نه كوي.

اتلسمه ماده د پوځي يووالي د تضمينولو تړون و چې كه له تړون كوونكيو څخه يو (انګليس، رنجيت او شاه شجاع) د كوم طرف تر خطر لاندې راشي نور به له ده سره د خطر په دفع كولو كښې لښكري مرسته كوي، په دغه عجيبه تړون كښې چې د دوو حكومتو او يوه فراري له خوا لاسليك شو، انګليس لښكريانو د سرجان كين په قوماندانی. شاه شجاع د (۱۸۳۹م فبروري ۱۲۵۴هـ). د سند او بولان له لارو راوست او پر كندهار يې حمله وكړه د اپريل پر ۲۰ - ۱۸۳۹م = ۱۲۵۵ هجري يې د كندهار ښار ونيو او د امير وروڼه ايران ته وتښتېدل شاه شجاع د كندهار پر پاچهي تخت باندې كښېناست د (صفر ۲۳ - ۱۲۵۵ هجري). په كندهار كښې مكناټن له شاه شجاع څخه ژمنه واخيسته چې د انګليس عسكر به له يوه نفر سياسي نماينده سره د تل له پاره په افغانستان كښې پرېږدي او په دغه ډول د بريتانيې عسكر د شاه شجاع په ملګرتيا د غزني له لارې او همدا رنګه "كپتان ويډ" له شهزاده تيمور د شاه شجاع له زوی سره د خيبر او جلال آباد

له لارې پر کابل باندې حمله وکړه د (اګست پر ۱۷ - ۱۸۳۹م - غره جمادی الاخر ۱۲۵۵هجري) شاه شجاع یې په کابل کښې پر پاچهۍ کښېناوه. امیر دوست محمد خان له خپلو زامنو سره بخارا ته ولاړ خو په هغه ځای کښې د بخارا پاچا دی بندی کړ. د هند ګورنر جنرال لارډآکلینډ د کابل د فتح او د امیر دوست محمد خان د ویستلو له کبله د لندن دربار له خوا د ارل Earl په لقب ویاړل شو.(۱۸۳۹م).

دغه مهال چې د حکومت مشران او امیر له هېواد څخه ولاړل او وطن یې دښمن ته پرېښووځ، افغان ملت د انګلیس متجاوز لښکر ته د غزا اعلان وکړ او له هر لوري پر انګلیسي لښکرو د افغاني ډلګیو له خوا حملې پیل شوې، یو کال وروسته امیر دوست محمد خان له خپل زوی محمد افضل خان سره له بخارا څخه راغی، له آمو څخه را تېر شو مګر په ایبك کښې یې د انګلیس له لښکر څخه ماته وخوړه او تاشقرغان ته ولاړل (۲۸ ستمبر ۱۸۴۰م ۱۲۵٦ هجري). تر دې وروسته امیر خپل ځان انګلیس ته تسلیم او کلکتې ته ولېږل شو (نوامبر ۱۸۴۰). خو ملي مجاهدینو د کابل په شمال کښې د مسجدي خان سلطان محمد نجرابي او نورو په مشرۍ د فرنګي متجاوزانو په مقابل کښې په غزا لاس پورې کړ عبدالله خان اڅکزی، امین الله خان لوګری او نورو هم د ۱۲۵۸هجري د مني په سر کښې د کابل په شاوخوا کښې د خلکو په اتفاق پر شاه شجاع او فرنګیانو را پورته شول، سردار محمداکبرخان د امیردوست محمد خان زوی هم د شمال له لورې له دوی سره یو ځای شو او پر انګلیسانو باندې یې کار تنګ کړ په دغه کش و ګیر کښې مکناټن Sir.w Macnaghten د ستمبر په ۲۳ مه نېټه ۱۸۴۱م د سردار محمد اکبر خان په لاس په کابل کښې ووژل شو او الکساندبرنس هم د نومبر په ۲ مه نېټه ۱۸۴۱ م



د غازیانو له خوا وژل شوی و. وروسته په خپله شاه شجاع هم په کابل کښې د غازیانو په لاس ووژل شو (د صفر ۲-۱۲۵۸ هجري د آپریل ۳-۱۸۴۲م) (وګورئ ۸۴ نومره عکس). څرنګه چې د انګلیس عسکر د دغه کال په ژمي له کابل څخه د جلال آباد په لوري ولاړل؛ په لار کښې د افغاني غازیانو په لاس ټول ووژل شول.

انګلیسانو په دغه جنګ کښې ډېر زیانونه ولیدل یعنې (۳۰) زره تنه یې ووژل شول او (۲۱) کروړه هندي روپۍ یې مصرف شوې، په پای کښې د خپل ځان له ساتلو څخه هم عاجز شول او د افغاني غازیانو له لاسه، له یو تن پرته چې ډاکټر (۲) برېډون نومېد، یو هم ژوندی پاتې نه شو؛ بېرته یې امیر دوست محمد خان له هند څخه راووست، امیر د خپل مجاهد زوی وزیر اکبرخان په همت د کابل پر تخت بیا کښېناست، وروېه یې له ایران څه راغلل پر کندهار باندې حکمرانان شول او هرات د یارمحمدخان الکوزي د شهزاده کامران د وزیر په لاس کښې پاتې شو.

امیردوست محمد خان د خپل امارت په دویمه دوره کښې د لومړي جنګ مشهور مشران چې د هېواد د ساتلو په لاره کښې یې قربانۍ ورکړې وې لکه نایب امین الله خان لوګری، سردارسلطان احمد خان سرکار، محمد شاه خان بابکر خیل، نواب محمد زمان خان او زوی یې شجاع الدوله خان، محمد عثمان خان او نواب جبارخان، مسجدي خان او نور تر باور لاندې رانه وستل، او د هېواد په چارو کښې یې شامل نه کړل پر عکس ټول هېواد یې د خپلو زامنو تر واك لاندې وساتۀ، پر دې اساس سردارسلطان احمد خان د

۲ - William Brydon ولیم برېډون (۱۸۱۱ - ۱۸۷۸م) د انګلیسي لښکرو ډاکټر چې له دیارلس زریز لښکر څخه یوازې دی ژوندی پاتې شو او جلال آباد ته ورسېد.د جنورۍ ۱۳مه - ۱۸۴۲م (اندین بیوګرافي ۵۸).

امیر ورارد او زوم چې له ده څخه مایوس شوی و کندهار ته لاړ او له هغه ځایه یې له پېنځه زرو کندهاري لښکرو سره پر کابل حمله وکړه، خو امیر ده ته په مقر کښې ماته ورکړه تر هغه وروسته سلطان احمد خان ایران ته فرار شو او د امیر نامتو مجاهد زوی وزیر اکبرخان هم په مزار شریف کښې له دې دنیا څخه لاړ (۱۲۶۳ هجري = ۱۸۴۶م). (وګورئ ۸۵ نومره عکس).

سردار محمد اکرم خان د امیر زوی په شمالي ولایاتو کښې ایشان اوراق د میر بلخ، ایشان صدور د اقچې، میر حکیم خان د شبرغان والي، میر بابا بیګ د ایبك رئیس، غضنفرخان د اندخوی سالار، ګنج علي د خلم مهتر، محمودخان د سرپل د اور او شاه مراد د قطغن برید ساتي مطیع کړل، تر آمو پر مخ ولاړ، او د هېواد شمالي برید یې وساته (۱۲۶۵ هجری ۱۸۴۸م) په دې ډول یوازې کندهار او هرات د امیر له امارت څخه د باندې پاتې شول. څو کاله وروسته کندهاري سرداران د امیر ورونه (کهندل، پردل، مهردل) مړه شول او رحمدل پاتې شو، ده له خپلو وریرونو سره جنګ وکړ. پر (۱۲۷۱ هجری = ۱۸۵۵م) د رجب ۱۱ مه امیر دوست محمد خان خپل ولیعهد سردار غلام حیدرخان جمرود ته ولېږه چې د سرجان لارنس د پنجاب چیف کمشنر د اندریومارکویس د هند له ګورنر جنرال استازي سره یې وکتل وکړ او د پېښور تړون چې د مارچ پر ۳۰ مه - ۱۸۵۵م شوی و او درې مادې یې لرلې، د هند له بریتانوي دولت سره یې وکړه.

دغه تړون د دوستۍ د مراسمو او د یو او بل د هېواد په چارو کښې د طرفینو د نه ګوتوهنې متضمن وه، دریمې مادې ویل چې تړون کوونکي به یو د بل دوست - دوست او دښمن به دښمن بولي.

په دغه تړون سره امیر له ختیځ لوري مطمئن شو، ضمناً یې د کندهار په نیولو کښې بریتانوي هند دولت پلوي هم تر لاسه کړه، تر هغه



وروسته یې له کابل څخه لښکر ویوست کندهار یې ونیو او خپل زوی غلام حیدر خان ته یې وسپاره په دې ډول کندهار مستقیماً د کابل په امارت پورې اړه پیدا کړه.

خو په هرات کښې د سدوزیو د کورنۍ پایځوړ د یارمحمد خان الکوزي د کامران د وزیر په لاس له منځه لاړ، یارمحمد خان الکوزی هم په (۱۲۶۷هـ = ۱۸۵۰م) کال وفات شو او نالایق زوی یې چې سید محمد خان نومېده د ده پر ځای کښېناست، خپل مسکوکات یې د ناصرالدین شاه قاجار په نامه ووهل، خو د هرات خلکو دغه وضع خوښه نه کړه هغه یې وواژه او شهزاده یوسف د حاجي فیروزالدّین لمسی چې د سدوزیو له پاتې شونیو څخه و، د هرات په پاچهۍ وټاکه (محرم ۱۲۷۲هـ = ۱۸۵۵م) تر هغې چې ناصر الدین شاه هرات ته لښکرې راولېږلې او هاغه ښار یې ونیو (۱۲۷۳هـ).

افغاني مشرانو هرات د افغانستان پخوانی نه بېلېدونکي برخه ګڼله او نه یې غوښتل چې پردي هېوادونه دې په هغه کښې لاس ولري، پر دې اساس امیر دوست محمد خان له مرکز سره د هرات راساً یو ځای کېدل غوښتل. په دغه وخت کښې امیر دوست محمد خان انګلیسانو جمرود ته دعوت کړ او د سرجان لارنس په ذریعه یې د پېښور تړون پر (جنوري ۲۶- ۱۸۵۷م = ۲۹ د جمادی الاول ۱۲۷۳هـ) کال له ده سره وتاړه، دغه تړون چې د (۱۲) مادو درلودونکی و د هند د ګورنر جنرال جان وایکونت کېننګ له لوري د جان لارنس چیف د پنجاب کمشنر او لفټننټ کرنل ایچ، لی ایدواردس، د پېښور کمشنر په وسیله له امیر سره وتړل شوه.

تړون وایي: دا چې د ایران پاچا تړون مات او پر هرات یې قبضه وکړه او په افغانستان کښې مداخله کوي، نو د هند انګلیسي حکومت به امیر دوست محمد خان ته مرسته ورکړي او د ده د ځمکو په ساتلو کښې به د

قاجاریانو پر خلاف زیار وباسي؛ تر هغه وخته پورې چې له قاجاري دولت سره جنګ جاري وي د میاشتې یو لك روپۍ به امیر ته ورکوي په دې شرط:
چې امیر خپل سواره او توپخانه لښکر له (۱۸) زره پلیو سره ډېر ښه وساتي او تل (۱۳) زره روزل شوی لښکر ولري. په کابل کندهار بلخ او یا په هر ځای کښې چې له قاجاریانو سره جنګ ونښلي، د انګلیس نمایندګان به له هندي عملې سره مقرر وي څو د مرستې پیسې د دوی تر نظارت لاندې په لښکري چارو کښې ولګول شي، خو په کورنیو چارو کښې به ګوتې نه وهي او یوازې به له جنګي پېښو څخه خبر اخلي.

امیر دې خپل یو نماینده په پېښور کښې مقرر کړي او سربېره به پر میاشتنۍ مرستې پینځه لکه روپۍ نقدې ده ته ورکوي. په مقابل کښې امیر نه شي کولای په پټه یا ښکاره له بل دولت سره په سیاسي مفاهماتو لاس پورې کړي څلور زره ټوپك یې هم د دغه تړون پر اساس امیر ته په تل کښې وسپارل.

سربېره پر دې انګلیس دولت پر قاجاري دولت هم سیاسي فشار راووست چې هرات چې د افغانستان د مځکې پخوانۍ برخه ده ژر خوشې کړي همدارنګه یې پر نومبر ۱۸۵۷ م = ۱۲۷۳ هجري یو لښکر له جنګي کښتیو سره د عرب د بحیرې له لارې پر بوشهر باندې وروهڅاوه، هغه ښار یې ونیو او د هغه پرېښوول یې د هرات په پرېښوولو پورې اړ کړه.

دا چې د پردې ترشا یا د سیاست په فضا کښې د هرات په باره کښې په هند، لندن، تهران او کابل کښې فعالیت کېده د تړون د نص او د انګلیس له بحري لښکرکښیو څخه ښکاره ده، خو د افغانستان او هرات خلك هم د قاجاریانو تر بار لاندې رانه غلل، هر طرف ته ملي حرکتونه ولیدل شول، سربښندویه خلك د آزادۍ په لار کښې پر خوځښت راغلل او له هرات



څخه یې د متجاوزو لښکرو ایستل وغوښتل. پردې اساس قاجاریه لښکر د جولای پر ۲۷مه-۱۸۵۷ = ۱۲۷۳ هجری هرات تخلیه او مشهد ته ولاړل، خو په دغه وخت هماغه کښې سردار سلطان احمد خان سرکار د امیر وارره هرات ته راغی او دی یې د هغه ځای حکمران وپېژاند، په دغه ډول زړورو هراتیانو خپل ښار د پردیو له واکمنۍ خلاص کړ.

دغه سرادر د انګلیس له مخالفو عناصرو څخه ؤ، چې په لومړي جنګ کښې د ملي مجاهدینو له مشرانو څخه ګڼل کېده، پر دې اساس په هرات کښې د ده شتوالی د هند دولت له پاره خاطر جمعي نه وه.

هرات ته د سردار له راتلو سره خلك پرده باندې راټول شول او سیاسي فعالیت هم شروع شو، د بریتانیا حکومت یو سیاسي هیئت د میجرتیلر په مشرتابه له بغداد څخه هرات ته ولېږه په دې توګه د روس دولت یو هیئت د خانیکوف په ریاست د سردار دربار ته راولېږه، سلطان احمد خان د انګلیس لېږلي په ناکامۍ له هراته وویستل (۱۲۷۴ هجری) او په آزادۍ سره یې حکم چلاوه.

د هغه بل لوري امیر دوست محمد خان چې له مرکز سره د هرات په یو ځایوالي د خلکو هیله ولیده په خپل لښکر باندې ګوتې ووهلې او پر هرات یې حمله وروړه، د صفر پر لسم ۱۲۷۸هـ ۱۸۶۱م خپل وراره او زوم سلطان احمدخان یې په هرات کښې کلابند کړل.

کلابندي ۱۸ میاشتې اوږده شوه، سلطان احمدخان له نړۍ سترګې پټې کړې، زوی یې شهنواز خان هم تر دوو میاشتو پورې مقاومت ته دوام ورکړ، خو تر دوو میاشتو وروسته د امیر په لاس ورغی (د ذیحجې اتمه ۱۲۷۸هـ ۱۸۶۱م)، خو امیر په خپله څو ورځې وروسته د سالنډۍ په مرض د ۷۷ کالو په عمر له دې دنیا څخه لاړ او په هرات کښې د خواجه عبدالله

انصاري د مزار تر څنګ په ګازرګاه کښې ښخ شو، د ذیحجې (۲۱ - ۱۲۷۸ه =۱۸۶۱م). هغه ګټور کار چې امیر د خپل عمر په پای کښې د هېواد د یووالي په خاطر وکړ، په افغاني مرکزي دولت پورې د هرات ترل و چې سیاسي وحدت او د هېواد پخواني حدود یې تامین کړل. (وګورئ ۸۶ نومره عکس)

امیر دوست محمد خان د محمدزیو کورنۍ، امیر او په (امیر کبیر) مشهور دی چې د سپینو زرو د روپیو پر سکه باندې یې دغه بیت لیکل شوی و:

سیم و طلا شمس و قمر میدهد نوید
وقت رواج سکهٔ پاینده خان رسید

دی یو جاه طلب، نرم خویه او عشرت دوست سړی، خو زړور او مدبر و چې ۱۴ منکوحه ښځې او په سل هاو سراری او (۵۲) اولاده یې درلودل (۲۹) تنه اولاد یې د ده تر مرګ وروسته په افغانستان کښې د ویروونکیو کورنیو جنګو لامل وګرځېدل.

په لومړي امارت کښې چې امیر دوست محمد خان کابل ونیو د خپلو وروڼو جرګه یې جوړه کړه او د ۱۲۴۲ هجري کال د ربیع الثاني د میاشتې د تړون له مخې چې اصل یې د کابل په موزیم کښې موجود دی، هېواد یې په خپل منځ کښې وویشه د دغې جرګې ریاست نواب عبدالصمد خان کاوه چې تر ټولو مشر و او دغه لاندینی تړون یې دده په ضمانت سره وکئ:

۱ - کوهاټ وهنګو او د هغه توابع چې پخوا بنګښ ورته ویل کېدل: نواب عبدالصمد خان ته.

۲ - پېښور سردار یار محمدخان، سلطان محمدخان، پیر محمدخان



او سید محمدخان ته: اشنغر او د هغه توابع، له یو لکو روپیو سره د کابل له عایداتو چې امیر دوست محمد خان ورکولې.

۳ - د حصارك غلجایي سیمه د کابل ختیز خوا نواب عبدالجبار خان ته.

۴ - کابل، کوهدامن، لوګر او د هغه توابع تر بامیان پورې امیر دوست محمد خان او سردار امیر محمد خان د ده سکه ورور ته.

۵ - نواب محمد زمان خان او د ده سکه وروڼوته (د نواب اسد خان زامن د پاینده خان لمسي) د کابل د ختیزه خواء لغمان، جلال آباد تر خیبر او د هغه تر توابعو پورې.

۶ - سردار حبیب الله خان او سردار محمد اکرم خان (د سردار محمد عظیم خان دامیر د مړه ورور زامن) ته لوګر، بتخاك، څرخ، میدان او غوربند.

۷ - کندهاریو سردارانو پینځو وروڼو (پردل، کهندل، شیردل، رحمدل، مهردل) ته کندهار له شاه جوی څخه تر فراه پورې.

د هېواد په دغه اوو برخو کښې پورتنیو اشخاصو حکم چلاوه، نواب اسد خان ډېره جات په خپل واك کښې لاره او رحمدل خان د بولان پر درې تر ښکارپور پورې حکمراني کوله.

د بارګزیي وروڼو د هڅو دغه نتیجه وه چې سدوزیو د سلطنت له ضعف څخه وروسته هېواد په خپل منځ کښې وویشي. د احمد شاه بابا د شاهنشاهۍ قوي مرکزیت له منځه ولاړ پردې اساس قوی او نیرومند هېواد موقتاً په ناتوانۍ او تجزیې محکوم شو.

د موهن لال په په قول چې د سید حسین د کابل مستوفي او د مستوفیت د غړو دیوان میتها او دیوان بیربا او له "یارام" څخه یې اورېدلي دي د ده د امارت په لومړۍ دوره کښې د امیر د قلمرو ټول عواید

(۲،۵۰۹،۲۳۸) کابلي روپۍ وې، چې د کابل او د هغه له شمالي سمت څخه له غوربند ميدان وردګ، غزني، بهسود، باميان، زرمت ګرديز هزاره کورم، خوست، جلال آباد او لغمان څخه لاس ته راتلې.

د کندهار تر يووالي او د کندهاري سردارانو د خپلواکۍ تر پای ته رسېدو وروسته، د امارت عايداتو د فراه له شاوخوا څخه تر کندهار او شاه جوی د کابل په مرکز پورې اړه پيدا کړه، د فيض محمد هزاره په وينا امير له دغو عوايدو څخه (۱۵) لکه روپۍ تنخواه د کندهار پاتې سردارانو ته چې د ده ورېرونه وو مقرر کړې.

خو د پېښور، اشنغر او د هغهٔ تړابع حکمرانانو سردارانو عايدات د کال (۶۹۲) زره روپيو په شاوخوا کښې وو، چې هره روپۍ "لس شاهي" له لسو آنو سره برابره وه او پردې سربېره د خواراکه بابو د ماليې، د هندوانو د جزيې او له نورو متفرقاتو څخه هم د (۶۲) زره روپيو په شاوخوا کښې عايد و چې ټول (۷۵۴) زره روپۍ شي. (د پېښور تاريخ).

په دغه ډول که مونږ د کابل، کندهار او پېښور پر عايداتو او ماليانو سربېره د شمالي ولاياتو عايدات يعنې قطغن، بنګښ او ختيزه خوا، لغمان او دېره جات ټول په جلا ډول سره د (۵۰) لکو روپيو په شاوخوا کښې اټکل کړو نو د بارکزيو وروڼو (امير دوست محمد خان او وروڼه يې) ټول د لس (۱۰) مليونو روپيو په شاوخوا کښې کېدې.

په دغه وخت کښې د افغانستان له لارې د هند او بخارا تجارت روان و، له امرتسر او ښکار پور څخه تجارتي قافلې کابل، کندهار، بخارا او مشهد ته تللې، په ځانګړي ډول د کشمير د شالو او نفيسه پارچو تجارت کېده. څرنګه چې د ۱۸۶۲ په تجارتي راپور کښې راغلي دي چې د افغانستان او هند ټول تجارت ۱۱۸، ۹۳۹ پونډه و او ګمرکي محصول هم



په سلو کښې دوه نيمې روپۍ اخيستل کېده. د کوچيانو په وسيله هم د يو مېليون او درې لکو روپيو مالونه له افغانستان څخه هند ته وړل کېده او د يو مېليون او شپږ لکو روپيو مالونه واردېدل په کابل کښې ملا رحيم شاه، غلام قادر او ښکار پوري ګوپالداس او په کندهار کښې ملا جلال اڅکزی او ملانسو لوی تاجران وو، د کابل ګمرك د څلورو لکو روپيو په شاوخوا کښې تجارتي محصول درلوده. په کابل کښې سيد حسين خان او وروسته عبدالرزاق خان او ميرزا عبدالسميع خان مستوفي الممالك (د ماليې وزير) و، ميرزا محمدحسن خان د سلطنت دبير (سرمنشي) شاغاسي شير دل خان بارکزی د کورنيو چارو او دربار وزير، غلام محمدخان پوپلزی لښکري مشاور، قاضي عبدالرحمن خانعلوم بارکزی د عدليې وزير او قاضي القضاة مير حاجي د مير واعظ زوی د ديني امور مشاور او فراموز خان نورستانی سر لښکر او د امير د دربار سپه سالار و.

خو د امير لښکر د مستر کيمپل انګليسي (چې په لومړي جنګ کښې مسلمان شوی او نوم يې شېر محمد اېښودل شوی و) او امريکايي ډاکټر هارلان چې د رنجيت سنګه له دربار څخه کابل ته راغلی و، تر اداره او تعليم لاندې و او نايب عبدالصمد هندي و، چې د هغو شمېر د سلطنت په لومړۍ دوره کښې (۱۲) زره سوعاره، درې نيم زره پياده ټوپك لرونکي، (۵۰) لوی توپونه او (۲۰۰) کچرو په منځ کښې توپونه وو، سوارانو يو تن (۱۲۰) روپۍ او پلي يو تن (۸۴) روپۍ د کال تنخواه درلوده خو د امير دوست محمد خان د امارت په پای کښې د ده عسکري تشکيلات داسې وو:

۱ - په کابل کښې دوه پيلي غنډونه له(۱۸) صحرايي توپو سره دوه درانه توپونه يو مورټر او يو زنبورك.

۲ - په بلخ کښې درې پيلي غنډونه او دوه سواره غنډونه له ۱۶

صحرايي توپو سره.

۳ - په باميان کښې يو پلی غنډ له دوو جبل توپو سره.

۴ - په کوهستان کښې يو پلی غنډ له دوو صحرايي توپو او دوو جبل توپو سره.

۵ - په فرا کښې يو پلی غنډ او څلور صحرايي توپونه.

۶ - په گرشك کښې يو پلی غنډ او څلور صحرايي توپونه.

۷ - په غزني کښې يو پلی غنډ او څلور صحرايي توپونه.

۸ - په آقچه کښې يو پلی غنډ او دوه صحرايي توپونه.

۹ - په غلز يي کلات کښې يو پلی غنډ د درو جبل توپو او يو صحرايي توپ سره.

۱۰ - په کندهار کښې درې پلي غنډونه او يو سپور غنډ، له دوو ثقيلو، دوو جبل او دوولس صحرايي توپو سره.

۱۱ - په ز مينداور کښې يو پلی غنډ له څلورو صحرايي توپو سره.

په دغه ډول د امير تر اداري لاندې څمکو کښې يوولس عسکري مرکزونه وو او هر غنډ ۸۰۰ تنه چې په ورځنيو تمريناتو کښې ۶۰۰ نفر حاضرېدای شول، خو هر غنډ سواره عبارت و له (۳۰۰) تنو څخه چې ټول منظم عسکر يې عبارت وو له:

۱۶ پلي غنډونه، هر غنډ ۸۰۰ تنه - ټول ۱۲،۸۰۰ تنه.

۳ سواره غونډونه ۳۰۰ تنه ټول ۹۰۰ تنه.

۶۷ صحرايي توپونه - ۶ جبل توپونه - ۴ ثقيل توپونه، يو مورترـ چې ټول منظم عسکر - ۱۳، ۷۰۰ تنه له ۸۱ توپو سره وو، پر دې سربېره د ايلجاري لښکرو شمېر د ضرورت په وخت کښې په کابل کښې ۳۱ زره - په کندهار کښې ۱۸ زره - په هرات کښې ۲۲ زره - په بلخ کښې ۲۹ زره وو



(افغانستان، د لندن طبع ۱۹۰۶م) مگر کورنی امنيت د کوتوال او د کوتوالی د پوليس په ذريعه اداره کېده، شرعي محاکمو، عدليه امور، اداره کول، چې قاضي د خانعلوم په ذريعه د امير له حضور ټاکل کېده. د امير د حکمدارۍ او له دوره يو ډول مشترك امارت و چې افغانستان د ده د ورونو تر منځ د پخواني - ترون له مخې وېشل شوی و، هر ورور په خپله حکمدارۍ سيمه کښې خپلواکي درلوده، په دويمه دوره کښې د هېواد مرکزيت قوي شو او د امير د ورونو نفوذ له منځه ولاړ د ده د امارت توابع د امير د زامنو تر منځ ووېشل شول، مگر دوی د پلار په اجازه سره حکم چلاوه او د خپلو سيمو له عوايدو څخه يې يوه برخه د خپلو مصارفو له پاره گرځوله او پاتې يې د کابل په خزانه کښې تحويلوله د پلار له اجازې څخه پرته يې ټول کارونه سرته نه شول رسولای، په دويمه دوره کښې د امير زامنو په دغو سيمو کښې حکم چلاوه:

سردار شېرعلي خان د بنگښ په کورم کښې (د پېښور جنوبي خوا).

سردار محمد افضل خان پر زرمت د کابل په جنوب کښې چې وروسته د بلخ په نيولو او حکمرانۍ باندې مامور شو.

وليعهد سردار غلام حيدر خان په غزني او کندهار کښې چې وروسته په جلال آباد کښې حکمران او د ده پر ځای سردار شمس الدين د امير سکه وراره چې په کوهستان کښې حاکم و په غزني کښې وټاکل شو.

سردار محمد اعظم خان پر لوگر د کابل په جنوب کښې، سردار محمد شريف خان پر باميان د کابل شمال لوېديځ او وروسته په کلات او فراه کښې.

سردار محمد امين خان په کوهستان د کابل په شمال کښې. سردار محمد اکرم خان پر هزاره جات د کابل په لوېديځ کښې چې وروسته شمالي

ولایتو او قطغن ته وګمارل شو.

سردارمحمداکبرخان په لغمان او جلال آباد کښې د کابل ختیزه خوا.

د امیر تر مړینې وروسته په هرات کښې، دده ولیعهد سردارشېرعلي خان د امارت اعلان وکړ (د ذیحجی ۱۲ مه - ۱۲۷۸ هجری ۱۸٦۱ م) او په دغه سجع یې سکه ووهله:

جمال دولت پاینده قسمت ازلیست

وصی دوست محمد، امیر شیرعلیست

یو له هغو مهمو سړیو څخه چې له امیرشیرعلي خان سره د تخت ناستې پر مهال په هرات کښې و، سید جمال الدین "افغان" دی چې ده ته یې د کورنې سمون پروګرام او د نوي مدنیت د اصولو طرح ورکړه، خو امیر د خپل لومړي امارت په دوره کښې چې تر (۱۲۸۳ هـ - ۱۸٦٦ م) پورې پېنځه کاله وه، له خپلو وروڼو سره په کورنیو جګړو بوخت و؛ د هېواد د سمون له پاره یې فرصت ونه موند؛ سید جمال الدین هم له هېواده ووت، د اسیا او اروپا هېوادو د ځوانانو اروا یې راویښه کړه، د اسلامي یو والي غږ یې اوچت او د اروپایي ښکېلاك پر وړاندې یې ستره مبارزه پیل کړه.

مومندو قبیلو پر (۱۲۸۰هـ - ۱۸٦۳م) کال د سعادت خان د زوی سلطان محمد خان په مشرتابه د انګریز پر وړاندې پاڅون وکړ.

امیر شیرعلي خان خپل زوی محمدعلي خان او وزیرمحمدرفیق خان لودین، مومندو ته ورولېږل چې له قبایلو سره خپل اړیکې وساتي، خو انګریز د ده امارت په رسمیت ونه پېژاند، د امیر ورور محمد اعظم خان یې د ده پر خلاف په پېښور کښې وساته، تر ده وروسته د امیر بل ورور محمدافضل خان هم سر غړاو شو او د هندوکوش په "باجګا" دره کښې یې د ده له لښکر سره جګړه وکړه، خو په پای کښې یې غاړه کښېښووه او بندي شو، زوی یې



سردار عبدالرحمن خان بخارا ته لاړ.

تر دې وروسته یې له خپل بل ورور محمد امین خان سره چې د کندهار حکمران و د کلات د ترنك په کجباز کښې جګړه وکړه، په نوموړې جګړه کښې یې ورور محمدامین او زوی محمدعلي دواړه ووژل شول (۱۲۸۲هـ - ۱۸٦۵ م). یو کال وروسته عبدالرحمن خان له بخارا راوګرځېد او د محمداعظم خان په مرسته یې پر کابل یرغل وکړ او ویې نیو. د امیر شیرعلي خان مشر ورور محمدافضل خان یې پر پلاز (تخت) کښېناوه (۱۲۸۳ هـ - ۱۸٦٦م) او امیر شیر علي خان کندهار ته لاړ.

امیر محمدافضل خان د کورنیو جګړو پر مهال تر یوه کال امارت وروسته مړشو (۱۲۸۴ هـ) او دده بل ورور، امیر محمداعظم خان پر کابل تخت کښېناست، وراره یې عبدالرحمن خان د هېواد شمالي ولایتونه ونیول او بیا یې له کابل سره وتړل.

خو کندهار او هرات له امیر شیرعلي خان سره پاتې شول ده هلته نوی پوځ چمتو او د کندهار له لارې یې پر کابل ورودانګل، هغه یې ونیو او امیر محمداعظم خان او عبدالرحمن خان ایران ته لاړل، محمداعظم خان همهغلته مړ شو او روسي حکمران "جنرال کوفمن" په ترکستان کښې د عبدالرحمن خان هرکلی وکړ او په سمرقند و تاشکند کښې یې مېشت کړ.

امیر شیرعلي خان دویم ځل د ټول افغانستان امیر وګڼل شو (۱۲۸۵ هـ - ۱۸٦۸ م).

امیر داخل په کابل کښې په نویو اصولو لښکر جوړکړ؛ نوي ښوونځي یې پرانیستل؛ د "شمس النهار" په نامه یې د افغانستان لومړنی اخبار چاپ او خپور کړ؛ په کابل کښې یې نوې چاپخونه جوړه کړه او په هغې کښې یې ځینې کتابونه "له هغې ډلې": یوځې قواعد له انګریزي نه په پښتو

او دري وژباړل او چاپ يې کړل.

امير شيرعلي خان، سيد نورمحمد شاه کندهاری د سر وزير (صدراعظم) په توګه وټاکه او د وزيرانو لومړنی کابينه يې منځته راوسته چې عصمت الله خان د کورنيو چارو، ارسلاخان د بهرنيو چارو، حبيب الله خان وردګ د ماليې، حسين علي خان د دفاع او احمدعلي خان د زېرمو (خزانو) وزيران او محمدحسن خان د دربار سرمنشي و. نوموړې کابينه د افغانستان له استوګنو قامونو څخه، پرته له ژبنيو او قامي توپيرونو جوړه شوې وه چې د شاهي کورنی او د امير له خپلوانو څخه هيڅوك هم په کښې نه و، دغه کار دا راښيي چې امير په سياسي چارو کښې په پراخه سينه او اسانی چلند کاوه او هېواد والو ترمنځ يې عدل په پام کښې ساته .

د امير له يادونې وړ کارو څخه يو هم د نوي، چمتو او سمبال پوځ جوړول دي، سره له دې چې دغه پوځ هېواد او امير ته د اړتيا او ګواښ پر مهال مرستندوی نه شو، خو بيا د دغې دورې په تاريخ کښې د يادونې وړښکاري.

دغه پوځ په اتو پوځي هډو: کابل، جلال آباد، شيرآباد، کندهار، کورم، هرات، ميمنه او بلخ کښې په لانديني شمير، درې ټولګيه و:

١ - ٦٢ پلي غنډونه، هر غنډ ٦٠٠ جنګيالي - ټول ٢٠٠، ٣٧ جنګيالي.

٢ - ١٦ سپاره رر رر رر رر رر ٩،٦٠٠ رر.

٣ - د پيلانو، آسونو، غويانو او کچرو د توپخانو ټول ٥،١٩٠ جنګيالي.

په دې ګڼه د ټولو وسلوالو چمتو پوځيانو شمېر پر (١٨٧٢ م) کال (٥١،٩٩٠ ) و، سر بېره پردې (٨٠٠٠) پلي او (١٦٠٠٠) سواره ايلجاري (پوځي ډولي) هم وو.

د وسلو ډولونه يې (٤٠،٨٢٥) انګريزي او افغاني ټوپك او (٣٦٩)



انګريزي توپونه وو. بريتانوي هند دولت د (١٨٧٧) تر مارچه پورې امير شيرعلي خان ته نه ويشت زره ټوپك بخښلي وو. (افغانستان هملټون).

امير د توپونو د جوړولو له پاره په کابل او هرات کښې کارخانې جوړې کړې چې په هغو کښې يې ارابه لرونکي درانده توپونه جوړول، همداراز يې د ټوپك جوړولو کارخانې هم لرلې چې تر اوسه هم په هماغو کارخانو کښې جوړ شوي توپونه شته.

د بريتانوي هند دولت چې د افغانستان اوضاع ډاډمنه او سمه وليده، د نوامبر د (٢مې) نېټې (١٨٦٨م). (١٢٨٥هـ، شوال) ليك له لارې يې د امير شيرعلي خان سلطنت په رسميت وپېژاند، دولس زره ټوپك او شپږ سوه زره روپۍ يې ورته راولېږلې.

امير د اړيکو د لا ټينګښت له پاره، د هند د وايسرای په بلنه پر (١٢٨٦هـ، ١٨٦٩م) امبالې ته لاړ. د هند ګورنر جنرال د سياسي کنفرانسونو په ترڅ کښې د امير ټولې غوښتنې ونه منلې، د افغانستان په چارو کښې يې د امير په ښېګڼه د نه لاسوهنې ځرګندونه وکړه او (١٢٠٠٠) ټوپك يې له درې سوو زرو روپيو سره امير ته ډالۍ کړې.

امير چې کابل ته راستون شو، خپل کشر زوی "عبدالله" يې خپل ځای ناستی وټاکه او مشر زوی يې "محمد يعقوب" له کابله وتښتېد او په هرات کښې يې اړ دوړ پيل کړ، خو امير دی د هرات حکمران وټاکه او د ناخوالو مخه يې ونيوه.

امير ځينو سياسي پوښتنو ته پام واړاوه، له تزاري روسيې سره يې د افغانستان د شمالي بريدونو په ټاکلو لاس پورې کړ، له ايران سره يې د انګريز په منځګړتابه د هلمند د اوبو وېش پيل کړ او صدر اعظم سيد نور محمد شاه يې تهران ته واستاوه، ورسته بيا نوموړې صدر أعظم د بريتانوي

هند له دولت سره د شملې (۱۸۷۳م) او پېښور (د جنوري ۳۰مه، ۱۸۷۷م) په کنفرانسونو کښې ورګډ شو، خو څه هوکړه ونه شوه. دغه د ډيپلوماتيکې ويناوې کېدې چې د روسيې دولت پر "خيوا" يرغل راوړ، هغه يې ونيوه او هند ته ګواښ لا پسې کلك شو (ربيع الاول، ۱۲۹۰هـ).

څرنګه چې دپېښورپه کنفرانس کښې دصدراعظم سيد نورمحمد شاه دريځ کوم ځای و نه نيو او دی هماغلته ناروغ او مړ شو، دا مهال د بريتانوي هند دولت د افغانستان پر بريدونو خپل څرګند سياست "فارورډ پاليسي" ترکار لاندې ونيو او دهند دساتنې له پاره يې تيرى يوازينۍ لار وګڼله.

د روسيې دولت چې خپل استازی "جنرال ستوليتوف"(۱) کابل ته رالېږلی و، دده راتګ دهندسياست چارې اندېښمن کړل، ترهغې چې دافغان- انګرېز دويمه جګړه يې پيل کړه او د افغانستان پر خاوره يې تېرى وکړ.

د انګرېز سمبال جګړه مار د (۱۸۷۸م د نومبر پر (۲۰)مه د خيبر، کورمې او بولان له لارې پر مخ تلل، امير شيرعلي خان د روس د مرستې په هيله په خورا ګډوډۍ کښې کابل پرېښوو او مزار شريف ته لاړ او هلته د ماتې په درشل کښې د ۱۲۹٦هـ ۱۸۷۹م کال د صفرې پر ۲۹ مه د "نقرس" په ناروغۍ مړ شو. (وګورئ ۸۷ نومره عکس)

د امير تر تګ وروسته په کابل کښې ناوړې پېښې منځته راغلې

---

۱- د دغه سياسي پلاوي د هر کلي څرنګوالى چې د روسيې مختار وزير "Stoletoff" په مشرتابه راغلى و د ګولوس "Golos" جريدې د (۱۸۷۸م) کال د نومبر مياشتې په ګڼه کښې چې په سنتپترزبورګ کښې خپرېده راغلى او ژباړه يې د اريانا مجلې د دويم کال په لومړۍ ګڼه کښې چاپ شوې‌ده.

له جنرال ستوليتوف سره ۲۲ قزاقان، (۱۵) قرغيزان او (۴) چوپړي ملګري وو، دی د جنون پر ۱۴ مه له سمرقند راوخوځېد او د ۱۸۷۸م کال د اګست پر ۱۱مه د کابل بالاحصار په شاهي ودانۍ کښې امير ته را ورسېد.



وګړي بې مشرتابه پاتې وو او دښمنان پر مخ راتلل.

دا مهال ځينو مشرانو شهزاده يعقوب خان تر (۸) کالو بند وروسته له زندانه را ووېست او د ۱۲۹٦هـ کال پر ربيع الثاني يې په پاچهۍ وټاکه.

انګرېز جګړه مارو په خونړې خواك، افغانستان ونيو او د امير ناپوه زوی يې خپلې پوځې هډې (ګندمك) ته بوت. ګندمك د کابل - جلال آباد تر منځ يو ځای دی چې د افغان غازيانو د لومړۍ جګړې پر مهال، انګرېز لښکر تر پايه هلته سټ شوی و، خو اوس د امير دغه ناپو زوی دغلته راکښل شو او د ګندمك کرغېړن تړون يې‌چې د افغانستان په تاريخ کښې يو تور ټکې دی او د دغه هېواد ځمکنۍ بشپړ تيا يې درې ورې کړه-لاسليك کړ. د ۱۲۹٦هـ د جمادی الثاني ۴ = ۱۸۷۹م د مې ۲٦مه).

د ګندمك تړون چې لاسليك شو، په ټول هېواد کښې کلك اړ و دوړ پېښ و. يعقوب خان هم په کابل کښې د پرديو تر سيوري لاندې اوسېده، دی هېڅکله هم د ټول افغانستان د پاچا په توګه ونه پېژندل شو او تر څو مياشتو وروسته له افغانستانه هند ته وتښتېد او د بريتانوي هند په غېږ کښې ولوېد، ځکه نو دغه تړون حقوقي ارزښت نه لري. د نوموړي تړون له مخې خيبر، پښين او کورمه له افغانستانه بېل او بريتانوي هند په خاوره پورې وګڼل شول. سرلويس کيوناري "Sir Piere louis Napoleon Cava Gnari"(۱) چې د ګندمك په تړون کښې د انګرېزانو استازی و، د انګريزي استازي په توګه

---

۱- د جنرال ادولف زوی پر ۱۸۵۷م کال د ايست انډيا کمپنۍ په لښکر کښې شامل شو، وروسته يې په هند او نورو سرحدي سيمو کښې لوړې دندې وموندې او تر ۱۸۷۷ کال پورې د کوهاټ او پېښور واکمن و. پر ۱۸۸۷م کال د سرچمبرلين د کابل پلاوي غړی و، چې افغاني مامورينو د دغه پلاوي د راتلګ مخه ونيوله. (انډين بيوګرافي ۷٦) .

د (۱۹۷۹م کال د جولای پر میاشت) په کابل بالاحصار کښې استوګن شو، خو څو میاشتې وروسته په افغانستان کښې ملي غورځنك پیل شو او افغان غازیانو د پرنګیانو په وژلو لاس پورې کړ. د کابل بالاحصار پوځیانو هم پاڅون وکړ او د مجاهدینو ملګري شول، تر ټولو لومړی یې په بالاحصار کښې انګریز استازی د هغه له همکارانو سره وواژه (د ۱۲۹٦هـ د روژې ۱٦مه - ۱۹۷۹ د ستمبر ۳مه).

د افغان، انګریز دویمه جګړه ډېره توده پر مخ تله، ستر ملي مجاهدین د جنرال چمبرلین(۱) Sir N. Chamberlain چې د خیبر درې له لارې یې پیاوړي انګریزي ځواك سره یرغل کړی و، جنرال رابرټس(۳) Sir E. Roberts چې د کورمې لـه لارې پـر مـخ راتـلو او جنرال ستیوارټ(۴) J. Stewart چې د بولان درې له لارې یې یرغل کړي و، پر وړاندې په مېړانه ودرېدل.

د انګریز دغه بشپړ سمبال پوځونه تر پنځوسو زرو لږ نه وو، خو غازیانو ستره مېړانه وښوده، د مجاهدینو مشران لکه: محمد جان خان وردګ، ملا مشك عالم اندړ، صاحبجان تره کی سرادر ایوب خان او محمد عثمان خان ساپي او نورو په بېلابېلو ځایو کښې له یرغلګرو سره جګړې وکړې. له دغو ټاکونکیو جګړو څخه یوه هم چې انګریزان یې وځپل د میوند ډګر جګړه وه. په نوموړې جګړه کښې له هرات او کندهارد د امیر شیر علي خان د زوي سرادر محمد ایوب خان جرنیل تاج محمد خان سلیمانخېل په

۱- پر ۱۸٦۵ کال زوکړی (چارلس چمبرلین زوی چې پر ۱۸۷۳ کال د هند حکومت په لښکري خدمت کښې شامل شو، پر (۱۸۷۸ - ۸۰م) له رابرټس سره په افغان جګړه کښې و. تر دې وروسته په مدراس او کشمیر کښې لښکري منصبدار و، پر ۱۸۹۰ کال د خیبر د قواوو قوماندان او تر دې وروسته په جنوبي افریقا د لارد رابرټس ځانګړی سکرتر و. پر ۱۹۰۰م کال د ایرلنډ د قواوو انسپکټر جنرال و. (انډین بیوګرافي ۷۷).



مشرۍ او د مولوي عبدالرحیم کندهاری او د کندهار د نورو پوهانو په فتوا، ملي ځواکونه راغونډ شول.

سردار ایوب خان له هرات او فراه څخه ګرشك ته راغلی و او انګریز پوځ د جنرال بروس Burrows په مشرتابه د میوند پر ډګر د هغه مخ ته ورغی، توده جګړه ونښته او د (۱۸۸۰م) د جولای د (۲۷مې) تر مازیګري پورې د غازیانو په بري او د پرنګیانو په ماته پای ته ورسېده، د انګریز ژوندی پاتې لښکر کندهار ته وتښتېد او په حصار کښې دننه پټ شو. جنرال رابرټس تر دوه ویشتو ورځو وروسته ځان له کابله کندهار ته ورساوه (د ۱۸۸۰) د اګست له ۹مې تر ۳۱مې) او د سپتمبر پر لومړۍ یې د سردار ایوب خان پوځونه ژوبل کړل، سرادر له خپلو ملګریو سره هرات او له هغه ځایه ایران ته لاړ. په ایران کښې د بریتانوي هند د دولت لاس ته ورغی او د ژوند تر پایه په راولپنډۍ او لاهور کښې استوګن شو. (۱۹۱۴ د اپریل ۱۷مه)

د دغه غازي مزار د پېښور سهیل ته په سید حبیب هډیره کښې دی.

د امیر زوی یعقوب خان هم د ۱۲۹٦ هـ پر ذیحجه -۱۸۷۹) کال له خپل کهاله او خپلوانو سره له کابله وتی و. انګریزانو چې نېغ پر نېغه و نه شو کړای چې په افغنانستان کښې پښې ټینګې کړي. ځکه یې د محمد افضل خان له زوي سردار عبدالرحمن خان سره چې تاشکند ته تښتېدلي و، اړیکي وموندل. سردار په چټکۍ تر امو راواوښت او چاریکار ته راغی، د بریتانوي هند له سیاسي استازي سرلیپل ګریفین (۴) Lepel Henry Griffin سره خبرو

* پر (۱۸۴۰م) زوکړی چې پر (۱۸٦۰م) د پنجاب ایالت لوی سکرتر، پر (۱۸۷۰م) په افغانستان کښې سیاسي استازی او تر (۱۸۸۰م) وروسته یې هم په هند کښې لوېې چارې لرلې، د ده له لیکنو څخه د پنجاب مشران (۱۸٦۳م) د پنجاب راجګان او نور پېژندل شوي کتابونه دي (انډین بیوګرافي ۱۸۰).

اترو ته کېناست، چاریکار ته له راتلو سره سم یې خپل امارت اعلان کړ (د ۱۸۸۰ د جولای ۲۷مه).

د انګرېز سیاست چارو، عبدالرحمن خان چې وسپنیز سړی و، ومانه او په بهرني سیاست کښې د اطاعت منني په شرط د مرستې ژمنه ورکړه.

سردار د اړتیا له مخې و منله او د ۱۲۹٦هـ د روژې پر (۵مه) کابل ته راغی او پر تخت کېنېناست.

امیر عبد الرحمن خان چې د ده د کتاب له مخې له کوچنیوالي د اداري په چارو پوه او د ژوندانه ډېرې سړې تودې یې لیدلي وې، ده د افغانستان د خلکو اروا ښه پېژنده او په دې پوهېده چې د خپلې پاچهۍ د ساتلو له پاره د هېواد د قبیلو له مشرانو سره څه ډول کلك چلند وکړي او له بریتانوي هند سره په بهرني سیاست کښې څومره پوست وي چې له هغوی نه هم په خپله کار واخلي.

په دغه ډول نوی امیر پر کابل برلاسی شو او ژر یې په دغه ښار کښې امنیت ټینګ کړ او بیا کندهار ته لاړ.

خو مخکښې تر ده، جنرال رابرټس له لسو زرو جګړنو سره محمد ایوب خان له کندهاره وېستلی او ایران ته یې شړلی و.

همدا چې امیر کندهار ته ورسېد، انګریزانو هغه ده ته وسپاره، جنرال رابرټس د کندهار او بولان درې له لارې او جنرال ستیوراټ د جلال آباد او خیبر له لارې له افغانستانه ووتل او افغان - انګریز دویمه جګړه پای شوه.

امیر عبد الرحمن خان په کندهار کښې خپل مخالفین ووژل، هغه سیمې یې ګرد سره اېل کړې، د افغانستان د نورو سیمو اېلولو ته یې هم پام واړاوه، ډېر ژر یې خپل مخالفان مړه، بندیان او یا بهر ته وشړل.



د بریتانوي هند دولت هم امیر غښتلی کړ، پر (۱۸۸۰م) کال یې پینځه سوه زره روپۍ، څو سوه توپونه او څو زره ټوپك ورکړل، هر کال یې (۱۸) زره پونډه مرسته ورسره کوله، په دې توګه امیر ژر پیاوړی او پر ټول هېواد واکمن شو. پر ۱۸۸۱ع کال یې هرات او کندهار ونیول او پر (۱۸۸۴م) یې بدخشان او شغنان لاس ته راوړل. په واخان کښې یې علیمردان وپرځاوه او پر ځای یې غفار خان تاتار د حاکم په توګه وټاکه.

تر هغې وروسته یې د افغانستان شمالي ولایتونه تر میمنې او اندخوي پورې پر (۱۸۸۵م) کال ونیول او خپل تره زوی محمد اسحاق خان ته یې وسپارل، خو نوموړي سردار پر ۱۸۸۸ع هلته سرغړاو شو.

امیر عبدالر حمن خان سمدلاسه مزار شریف ته لاړ، اسحاق خان یې تر امو ها خوا وشاړه او ګرد سره شمالي ولایتونه یې لاس ته راوړل.

د ده پر مهال غلجیو له غزني تر کلاته پاڅون وکړ، خو امیر هغوی پر سر وټکول او تر دې وروسته یې د منځني افغانستان هزاره ګان هم اېل کړل (۱۳۱۱هـ ۱۸۹۳ع).

د کونړ شمال ته کوهسار او بلورستان چې سپین کالي او تور کالي کافران په کښې اوسېدل او تل به د افغاني حکومت له واکمنۍ نه بهر وو هم پر (۱۳۱۳=۱۸۹۵) د امیر له حکم سره سم د جنرال غلام حیدر خان څرخي تر برید لاندې راغی، ټول وګړي یې اېل او مسلمان کړل او په "نورستان" یې ونوماوه.

امیر په کورنیو چارو کښې زړور، جنګیالي او پیاوړي واکمن و، چې د مخالفانو په وژلو کښې یې ساري نه لاره، دی نوښتګر او په نړیوالو پېښو پوه سړي و، څه نا څه لیك لوست یې هم زده و. په دري ژبه یې (پندنامه) نومې کتاب هم لیکلی او "تاج التواریخ" یې هم د ده په لارښوونه لیکلي او

په ده پورې اړه لري.

د ده د ډاډمنو سپه سالارانو په مشرۍ لکه: غلام حیدر خان "څرخي" فرامرزخان، غلام حید خان "لنډی" پیاوړی پوځ جوړ کړ، په ځانګړې توګه یې د جاسوسۍ اغېزمنه کړۍ منځته راوسته، کارپوه حاکمان یې هر خوا ولېږل؛ په افغاني ولایتو او ښارو کښې یې د پوستې ځانګې پرانیستې؛ شرعي محکمې یې بیا روغې کړې؛ دین پوهان یې د کابل په شاهي مدرسه کښې په ښوونه او روزنه بوخت کړل، چاپخونه یې جوړه او د ټوپك جوړولو یوه کارخانه یې هم ودانه کړه.

د پلازمېنې د مستوفي الممالك او د ولایتونو د مستوفیانو تر څارنې لاندې یې د مالیې ځانګې سمې کړې؛ د کورني تګ له پاره یې دارهدارۍ پاڼې (لارپاڼې) دود کړې او غله، لارشکوونکي او ناړامي یې تر کلك څار او ګواښ لاندې ونیول، ځکه نو امینت ټینګ شو او سوداګري او صنعت وده وموندله او ټول هېواد د یوازینۍ اداري خاوند شو.

خو په بهرني سیاست کښې:

امیر پوست سړی او ښه ډیپلومات و، له انګلیس دولت سره یې په سړه سینه چلند کاوه، تل به یې د دوستۍ لار هواروله، مادي او معنوي مرستې یې منلې. وروسته تر هغې چې د امارت په پیل کښې یې هېواد اېل کړ او پر ۱۸۹٦ع یې د "ضیاء الملة والدین" بلنوم واخیست او په نوموړي بلنامه خطبه وویل شوه، سکه ووهل شوه، ناړامي او سرغړاوي ټول ووژل او پاتې یې وشړل؛ بېغمه د هند د ګورنر جنرال لارد دفرین د لیدو له پاره راولپنډۍ ته لاړ او د دوستۍ مزي یې لا پسې ټینګ کړل. (۱۸۸۵م) څو کاله وروسته یې خپل کشر زوی سردار نصر الله خان لندن او د انګریز ملکې دربار ته هم واستاو (۱۹۸۵- اپریل، ۱۳۱۲هـ).



## له ګاونډیو هېوادونو سره د امیر د مهال غوره سیاسي پېښې:

۱- د تزاري روسیې دولت د هرات پر شمالي سیمه (پنجده) یرغل وکړ (۱۳۰۳هـ، ۱۸۸۵ع) سره له دې چې د افغاني پوځونو قوماندان، جنرال غوث الدین په مېړانه ساتنه کوله، خو پنجده د روسانو لاس ته ورغله.

امیر عبد الرحمن خان په تاج التواریخ کښې په دې اړه داسې لیکي:

د ۱۸۸۴ع کال د جولای پر میاشت د بریدونو د ټاکلو له پاره د انګریزي کمیسیون مشر جنرال سرلمسدون او د روسي کمیسیون مشر جنرل یلتاي غوره شوي وو، خو د کار تر پیل وړاندې روسانو پنجده ونیوه.

تر دې پېښې وروسته یو بل کمیسیون چې مشري یې سرجوزف ویست رجوي Sir west Ridgeway د هند د بهرنۍ ځانګې دویم منشي کوله او غړي یې کرل هیولدیچ، کرنیل ایت او قاضي اسلم خان وو، د هند حکومت له خوا د افغانستان او روس د برید ټاکنې له پاره وټاکل شو، نوموړي کمیسیون د ۱۸۸٦م کال د اکتوبر پر میاشت خپل کار پای کړ.

امیر د هغوی د خدمت او هڅو ستاینه وکړه او د سرو زرو نښانونه یې ورکړل، په پای کښې د ۱۸۸۷م پر جولای د برید ټاکنې وروستۍ هوکړه په سنتپترزبورګ کښې لاسلیك او پنجده په رسمي توګه له افغانستانه بېله شوه.

د رجوي په تړون کښې د ذوالفقار له خولې تر خواجه سالاره پورې سیمې راغلې. امیر له هند دولت څخه غوښتل چې هغه د پامیر تر کوهسار پورې په نخښه کړي، خو داسې ونه شول تر دې وروسته پر ۱۸۹۳ع کرنیل ایت د پخواني تړون پاتې ټکې هم حل کړل، په دې توګه امیر وکړای شول چې د دوو سترو امپراتوریو تر منځ حکمراني وکړي.

۲- بل هغه سیاسي کار چې امیر د افغانستان د خلکو د جرګې له خوښې پرته وکړ او د هغه له کبله د افغانستان په تاریخ کښې ستره ګرمه د ده پر غاړه ده، هغه د ډیورند تړون دی چې د بریتانوي هند له دولت سره یې د افغانستان ختیز او جنوبي بریدونه وټاکل.

امیر وایي: ما له هندي وایسرایانو لاردرپن او لارد سالیسبري څخه هیله وکړه چې د هند د بهرنیو چارو وزیر د برید ټاکنې د کمیسیون د مشر په توګه راولېږي خو زما ناخوښۍ او د سردار اسحاق خان نارامۍ هغه وځنداوه.

لاردلنسډون د سلطنت نایب لارډ رابرټس دغه کار ته غوره کړ، خو رابرټس چې په افغانستان کښې ناوړه سابقه لرله او کېدای شوه چې خلک ورته راپورته شي، ما د هغه راتګ وځنداوه چې په پای کښې د ۱۸۹۳م د سپتمبر پر وروستیو د هند د بهرنیو چارو وزیر "سرهنري مارتیمر ډیورنډ Sir Morteimer Durand(۱) د برید ټاکنې د کمیسیون په مشرتابه کابل ته راغی.

د دغه کمیسیون غړي کلنل الیس، کپتان مانریس اسمت، مستر کلارك، مستر وانلد او څو نور هندیان وو.

په کابل کښې له امیر سره سیاسي مرکه پیل شوه او په پای کښې یې د ډیورند کرغېړن تړون لاسلیك شو.

نوموړي تړون اووه مادې لرلې چې د هغه له مخې د ډیورنډ برید له بلوچستانه تر چترال او واخان پورې وټاکل شو.

۱- د (۱۸۵۰م) د فبروری پر (۱۴مه) زوکړی، د میجر جنرال سرایج زوي دی. ایم ډیورنډ پر ۱۸۷۳ د بنګال هېوادني خدمت ته ونیول شو، پر (۱۸۷۹م) په کابل کښې د رابرټس سیاسي سکرتر و، له (۱۸۸۴ - ۹۴م) کالو پورې د هند حکومت د بهرنیو چارو سکرتر او وروسته په تهران کښې د انګریز سفیر و. (مادرید، واشنګټن هند بیوګرافي، ۱۲۸).



د چمن، پښین، چغنی، وزیرستان، بلند خېل، کورمه، پاړه څنار، اپریدي، باجوړ، سوات، بنیر، دیر، چیلاس او چترال چې د افغانستان ځمکه وه، له افغانستانه بېله او په هند پورې وتړل شوه او د انګریز له لوري امیر ته د یو مېلیون و دوو سوو روپیو پر ځای د کال یو مېلیون و اته سوه زره روپۍ وټاکل شوې همدا راز یې د وسلو د مرستې ژمنه هم ورکړه.

په دغه ډول ډیورند تړون د ګندمك کرغېړن تړون رېښتیني کړ، خو امیر زوی یعقوب خان په بیړني، ګډوډ حالت او د پردیو لښکرو د یرغل په ترڅ کښې په زور د ګندمك تړون لاسلیك کړی و، همداراز دی چې د خلکو استازي او د هېواد پاچاه نه و، ځکه نو هاغه تړون هم حقوقي ارزښت نه لاره.

امیر عبد الرحمن خان د ملت د استازیو او ولسي جرګې له منلو یا نه منلو پرته په ځانګړې توګه ډیورنډ تړون منلی و.

په هرډول د ډیورنډ کمیسیون د (۱۸۹۳م) د نوامبر پر۱۴له کابله ووت.

امیر عبد الرحمن خان د خپل امارت په پیل کښې د ۱۳۰۰هـ شاوخوا ۵۸,۷۴۰ پوځیان لرل، خو په کابل، هرات، کندهار، بلخ، جلال آباد، اسمار، امو غاړه او د ایران او هند په بریدونو کښې یې د امارت تر ټینګښت وروسته دغه چمتو او یلجاري پوځیان لرل:

- (۸۰) پلي غنډونه هر غنډ (۷۰۰) سرې ټول (۵٦۰۰۰) سرې.
- (۴۰) سواره غنډونه هر غنډ (۴۰۰) سرې ټول (۱٦۰۰۰) سرې.
- (۱۰۰) د توپخانې بتریې هره یوه (۱۰۰) سرې له (٦) توپو سره ټول (۰۰۰ر۱۰) سرې.
- شاهي ځانګړې پلي (۴) غنډه (۱۰۰۰) سرې ټول ۲,۴۰۰ سرې.
- پولیس ځواك ټول (۰۰۰ر۲) سرې.

- سواره ایلجاري ټول (۱۰,۰۰۰) سرې

په دې توګه د ټول وسله وال پوځ شمیر ۱۴۸,۴۰۰ ته رسېده چې امیر د هغوی په مرسته وکړای شو چې په هېواد کښې بېساری امنیت ټینګ او سرغړاوي وټکوي.

امیر عبدالرحمن په کابل کښې د سکې وهلو، د کارتوسو، ټوپکو، وسپنګرۍ، توپ جوړولو، عرق وېستلو، څرمنې، بوټ جوړولو، سابون، د ګنډنې کارخانې، چاپخونه او صحافۍ جوړې کړې.

پوځي، کورنۍ، عدلیه، د ودانولو، روغتیا، کانو، سوداګرۍ، د پوستې څانګې او دیني مدرسې یې پرانیستې، څو ماڼۍ او کابل شاهي ارګ یې ودان کړ او ټول هېواد یې تر یوازینۍ اداري لاندې راوست چې دغه هڅې یې د مننې وړ دي.

امیر عبد الرحمن خان تر (۲۱) کالو امارت وروسته په کابل کښې د "نقرس" په ناروغۍ مړ شو (۱۹ جمادی الثاني ۱۳۱۹ = ۱۹۰۱م) (وګورئ ۸۸ نومره عکس).

ده خپل زوي ته داسې ایل او له سرکښو تش هېواد پرېښوو چې خلك یې د نامه په اورېدو لړزېدل او تر مرګ وروسته یې هم د ده مړینه نه باوروله.

تر ده وروسته یې مشر زوي حبیب الله خان د "سراج الملة و الدین" په بلنامه د کابل پر تخت کښېناست د اکتوبر ٦مه ۱۹۰۱م) او پر (۱۹۰۴م) یې خپل مشر زوی عنایت الله د هند وایسرای لاردکرزن لیدو ته واستاوه، وروسته د هند د بهرنیو چارو سکرتر لویس ولیم کابل ته راغی او له امیر سرۀ یې د (مارچ پر ۲۱ - ۱۹۰۵م= ۱۴ محرم۱۳۲۳هـ) تړون لاسلیك کړ.

د امیر حبیب الله خان د (۱۸) کلن سلطنت پر مهال، پرته له یوه



پاڅونه چې په جنوبي کښې د جانداد احمدزي په مشر تابه شوی و، بله پېښه نه ده لیدل شوې څکه چې پلار یې وړاندې هېواد، د کار له سرېو تش کړی و، په دې توګه امیر په وړ چاپیریال کښې په سړه سینه ژوند کاوه.

پر ۱۳۲۵ کال یې کندهار، هرات، میمنه او بلخ وکتل، او د ۱۹۰۷م پر جنورۍ د سلطنت د مرستیال لاردمنتو په بلنه هند ته لاړ او د همدغه کال د مارچ پر (۷) د پېښور او خیبر له لارې بېرته راستون شو.

امیر له وزګارتیا او کورني امنیت سره سره هم په هېواد کښې کوم غوره کار و نه کړ، ده د نوي مدنیت څو کوچنۍ نخښې راوړې، له هغو څو وړو کارو څخه چې ده وکړل، د حبیبیې په نامه د یوه ملکي ښوونځي پرانیستل، یو پوځي ښوونځی او په کابل کښې څو نور لومړني ښوونځي دي. همدا راز یې (سراج الاخبار افغانیه) خپور کړ او په کابل کښې یې دوې چاپخونې، څو ماڼۍ، باغونه، سړك او دمه ځایونه ودان کړل.

د لویې جګړې (۱۹۱٦م) پر مهال یې ځان ناپیلی وباله.

د امیر کورنی سیاست، د پلار په توپیر پوست و او خلك یې نه ازارول، په خپله یې دیني حکمونه (روژه لمونځ) پر ځاي کول، خو د اداري په ډول، تشکیل، مالیې غونډولو او نورو هېوادنیو چارو کښې یې د وخت له غوښتنو سره سم بدلون رانه وست او هماغه له پلاره پاتې زوړسیستم یې پر ځای پاتې شو.

امیر حبیب الله خان د ۱۳۳۷هـ د جمادی الاولی (۱۸) د پنجشنبې پر شپه (۱۹۱۹م) د لغمان د کله ګوش په ښکارځي کښې د تومانچې په ګولۍ وویشتل شو او له نړۍ یې سترګې پټې کړې. (وګورئ ۸۹ نومره عکس)

په جلال آباد کښې یې ورور د پاچهۍ غړ پورته کړ خو د افغانستان

خلکو د خپلواکۍ او ځمکنۍ بشپړتیا د ګټلو له پاره د اتلولۍ غورځنګ پیل کړ، افغان خپلواك غوښتونکیو د (۱۲۹۷ل = ۱۳۳۷ق = ۱۹۱۹م) د مارچ پر لومړۍ د امیر حبیب الله خان دویم زوی سردار امان الله خان د پاچهۍ پر تخت کښېناوه او د خپلواکۍ جګړه پیل شوه.(۱)

❀❀❀

۱ - د نوي خپلواکۍ او نوي افغانستان تر جوړېدو را وروسته پېښې بېل تاریخ نیکلو ته اړتیا لري، ځکه نو دغه کتاب دلته پای شو.

# ټولنیزه او فکري اوضاع

د کندهار هوتکي دولت تر ړنګېدو او د نادر افشار تر لنډې **واکمنۍ** وروسته چې لس کاله کېږي، پر (۱٦۰۱ هـ ق) کال د احمد شاه **غورځنګ** او د آزاد افغانستان نوی جوړښت د هغو پر له پسې پېښو نتیجه ده چې د افغانستان په تاریخ کښې پخوا منځته راغلې وې، د افغانستان خاورې او اقتصادي اوضاع دا غوښتل چې د روښان، خوشال او میرویس د هڅو او غورځنګو له امله دې یو افغاني آزاد او غښتلی دولت منځته راشي.

د افغانستان خلکو د هرات د تیموریانو دولت تر ړنګېدو وروسته څو پېړۍ د صفویانو او بابریانو د یرغلو په پېښو کښې د سختۍ، تریخوالي او کور پر کور جګړو په درشل کښې تېرې کړې او د خپل ملي مرکزیت له نه درلودلو څخه متحسس وو، خو چې د کندهار هوتکیانو او د هرات ابدالیانو د ایران د صفویانو پردۍ واکمني پر شا وشړله او له منځه یې یووړه.

روښانیانو، خوشال خان خټك، ایمل خان مومند، شېرخان ترین او نورو د هند د بابري پاچهانو د پایځوړ - مقابلې وکړې او خپل ولس یې له ښکېلاکه وژغوره.

په دغو ترخو جګړو کښې خلك په کلکه مبارزه اخته وو، د علومو، ادبیاتو او فرهنګ پالنې ته یې فرصت نه درلود، خو بیا هم لیدل کېږي چې

په کندهار کښې د شاه حسين هوتك دربار د ادب او ادبيانو او پوهانو ځای و او د دغه دربار سرمنشي محمد هوتك د پټې خزانې کتاب وليکه چې د (۱۱۴۰هـ ق) شاوخوا د فکري او ادبي حرکت يوازنۍ ښکارندوی دی.

د احمد شاه دربار هم له فکري نظره روښانه ښکاري، ځکه چې په خپله احمد شاه د ښې قريحې خاوند شاعر او تصوف خوښوونکی سړی و، چې د پښتو شعر ديوان لري، د ده په کورنۍ کښې تيمور شاه د دري او پښتو ديوان څښتن او شاه شجاع د دري شعر د ديوان لرونکی و. د شاه زمان زوی شهزاده عبدالرزاق چې دري يې تخلص کاوه او د شاه شجاع زوی شهزاده نادر او نور څو تنه شهزادګان باذوقه شاعران وو.

احمد شاه د خپل هېواد په ښارو کښې علمي کورنۍ وروزلې چې د هغو پايښت په وروستيو دورو کښې د خورا لويو فکري، ادبي او سياسي کارنامو مصدر وګرځېد، لکه د کندهار د بارکزيانو د خانعلوم کورنۍ چې د خپلواکۍ تر جګړې پورې د قاضي القضات منصب په همدې کورنۍ پورې اړه لرله چې دا منصب اوس د عدليه وزير له منصب سره سم و په دې کورنۍ کښې د علمي تاليفاتو خاوندان هم تېر شوي دي او يا د دوی په تشويق نورو مولفانو د کتابو په تاليف لاس پورې کړی دی لکه ملا محمد سعيد بارکزی چې د سدوزي شاه محمود په وخت کښې قاضي القضات و او د هغه زوی قاضي عبدالرحمن خان د نصيحة المومنين رسالې ليکوال دی، د عبدالقادر سليمان خېل زوی اختر محمد د امير شيرعلي خان په وختو کښې يې د الدفعه رساله د خانملاعبدالسلام د محمد سعيد د زوی په هڅون ليکلې وه.

د الکوزي ملا اسماعيل کورنۍ هم د احمد شاه ابدالي پر مهال په کندهار کښې وه چې زوی يې ملا احمد د معقول او منقول استاد د احمد شاهي ښار قاضي او بيان الوافيه لطوايف الصوفيه و تعليم السلوك او د



کاشفه او فارقه رسالو مولف و، چې د ۱۲۳۳ هـ کال د دويمې خور (ربيع الثاني) پر ٦ مړ دی. د ملا احمد ورور پير محمد هم په کندهار کښې د هغه مهال نامتو عالم و، چې پر ۱۲۳۳ هـ کال يې د عقيدة المشايخ والعلما کتاب په عربي ژبه ليکلی دی.

قاضي غلام محمد هوتك هم د کندهار نامتو عالم او د ښار قاضي و، چې پر ۱۲٦۴ هـ کال يې د ارشاد الحق کتاب په عربي ژبه وليکه، د هغه زوی عبدالاحد په کندهار کښې له سيد جمال الدين سره آشنايي درلوده، د توخي محمد حسن زوی محمد نور هم د جامع السلوك په نامه په عربي ژبه د ۱۲۳۰ هـ په شاوخوا کښې کتاب ليکلی دی چې د ميا فقير الله جلال آبادي شاګرد و.

د ملا بابړ موسی خېل علمي کورنۍ د هوتکيانو له وختو په کندهار کښې وه چې زوی يې مولوي فيض الله په احمد شاهي عصر کښې د اشرف الوزرا شاه ولي خان د کورنۍ استاد او په منطق کښې د تدريسي رسالې مولف و، تر هغه وروسته د سدوزيو د وختو په پای کښې د فيض الله زوی مولوي حبيب الله مشهور په محقق قندهاري په کندهار کښې ژوند کاوه (۱۲۱۳-۱۲٦۳ هـ) چې په عربي، دري او پښتو ژبو يې په معقولو او منقولو علومو کښې ۳۳ ټوکه کتابونه ليکلي دي، په رياضي منطق اصول فقه او نورو اسلامي مروجو علومو کښې يې تازه او بکر انتقادي آثار ليکلي دي، تر ده وروسته يې زوی مولوي عبدالرحيم او لمسی يې مولوي عبدالروف او د هغه زامن مولوي عبدالواسع او مولوي عبدالرب د راوروستيو دورو نامتو عالمان وو چې په صحافت، معارف او د عدلې قوانينو په ترتيب کښې يې د ستاينې وړ خدمتونه کړي دي.

د هرات د سلجوقيانو علمي کورنۍ د ملا محمد له اولادې څخه

وه چې په روزآباد کښې ښخ دی، احمد شاه بابا د هغه زوی علامه ملا میرزا هرات ته راوست، د پای حصار مدرسه یې وروسپارله، له دې کورنۍ څخه ډېر عالمان او مدرسان پیدا شول چې د هغو له جملې څخه عبدالاحد خلیفه، ملا محمد عمر د محمد ایوب زوی، د نورالدین لمسی او د ملا میرزا کړوسی و، څو کتابه یې لیکلي دي چې یو له هغو څخه په اصول فقه کښې الملهم نومي کتاب دی (د ۱۲۶۰ هـ شاوخوا) همدا راز د محمد صدیق زوی ملا محمد رفیق سلجوقي د رسالهٔ نحو مولف، محمود مشرف او خلیفه محمد حسین خوش نویس د هغې کورنۍ پوهان او هنرمندان غړي و.

یوه بله علمي او سیاسي کورنۍ په پېښور کښې ډېره مشهوره وه، چې ستر نیکه یې د تاج خان زوی اخون ترکمان، د کندهار له غوري مرغۍ څخه تللې او د پېښور د شمالي سیمې په امازی کښې اوسېد، زوی یې ملا محمد غوث د حاجي محمد سعید واعظ شاګرد په علم او عرفان مشهور او پېښور کښې د احمد شاه له خوا قاضي و، چې په منطق کښې یې پر میرزا کلان حاشیه لیکلې وه، د احمد شاه په نامه یې د ده د عرفاني وینا په شرح کښې د شرح الشرح په نامه په دري ژبه یو کتاب لیکلی دی، د ده لمسی د داد الله زوی قاضي عبدالکریم د نصاب التوحید په نامه یو کتاب ولیکه، خو د محمد غوث لمسی د قاضي اکبر شاه زوی قاضي محمد حسن چې په خان علما ملقب و، د سردار پاینده خان د کورنۍ استاد او د شاه شجاع وزیر و، چې د ده له خوا پر ۱۸۳۸م کال د لاهور دري خواییز (مثلث) تړون لاسلیکوونکی و. همدا راز قاضي طلا محمد د قاضي حسن زوی د علم او ادب خاوند د شعر دوه دیوانونه په دري او عربي ژبو درلودل او د جواهر نغز، سلوة التقریر فی ترجمه التحریر، نفحة المسك او تسلیه العقول او سلوة الکئیب مؤلف او د قصیدهٔ بائیه وویونکی و. قاضي عبدالقادر د فضل قادر



زوی د قاضي حسن لمسی د امیر شیر علي خان د دربار عسکری سر منشي او له انګرېزي څخه په پښتو او دري د عسکري قواعدو د کتاب ژباړن و، چې دا کتاب د کابل د شمس النهار په مطبعه کښې چاپ شوی دی.

د هرات د برنا باد د میرزایانو کورنۍ هم د فرهنګ او ادب پوهان لرل چې د هغو له جملې څخه میرزا ارشد د خواجه محمد صلاح منشي او متخلص په فایض د هرات د ابدالیانو او درانیانو منشي او خطاط و، دا شعارو د یوان او ډېره خوږه مثنوي یې درلوده (د یوولسمې پېړۍ منځ) بل میرزا ابو طالب د ده مشر وراره چې مایل یې تخلص و، هم د دري اشعارو دیوان درلود، د محمد کاظم زوی میرزا رضا د اشعارو مجموعه درلوده او داربعین او د برناباد منثوری تذکرې خاوند په هرات کښې د هادي متخلص په عشرت هروی په هرات کښې د شهزاده تیمور منشي و، چې د ملا عبدالله روزی ملك سنجر د غور د ملکانو اولاد او یا سهل وملا مسکین (دهزاره لهجی شاعران) په هرات کښې د ده معاصرین وو.

د سدوزیو په دوره کښې او تر هغو وروسته د مجددیانو کورنۍ هم زیات روحاني شهرت درلود، عالمان او د ښې قریحې شاعران په کښې پیدا شوي دي، چې په ټوله منځنۍ آسیا کښې له خراسانه نیولې تر سر هند ماوراء النهر او د چین د خاورې تر ختنه پورې د نقشبندي طریقت د تلقین مرجع و او یو ډول خراساني اسلامي ثقافت یې روزلی دی چې مدار یې شریعت او تصوف و، خو په نقشبندي طریقت کښې یې تصوف تل د خلکو په ګټه او د اخلاقو د سمون له پاره بې له انزوا او رهبانیته کاراوه، نقشبندي مجددیانو چې د افغاني پاچهانو له دربارو سره رابطه درلوده ځکه یې نو په سیاست، فرهنګ او ټولنه کښې هم لوی لاس درلود.

دا فاروقي کورنۍ د شهاب الدین فرخشاء اولاده ده، چې د کابل

شمال ته د پنجشير. فرخشاه په دره کښې ښخ دی. امام رفع الدين له همدې کورنۍ څخه له کابله سر هند ته ولاړ. دده له اولادې څخه شيخ احمد مجدد الف ثاني د مولان عبدالاحد زوی چې د نسب سلسله يې په ۲۸ واسطه حضرت عمر فاروق ته رسېږله، د ۹۷۱ هـ کال د شوال پر ۱۴ په سر هند کښې وزيږېد او په طريقت کښې يې د خواجه محمد باقي کابلي (چې پر ۱۰۱۲ هـ مړ دی) لاس ونيو. او استفاضه يې وکړه په هند او افغانستان کښې يې ستر عملي او روحاني شهرت درلود (د ۱۰۳۴ هـ کال د صفری پر ۲۸ د سه شنبې پر ورځ د ۶۳ کالو په عمر په سرهند کښې مړ شو.

د سدوزيو د شهنشاهۍ په وختو کښې له دې کورنۍ څخه شاه غلام محی الدين مجددي د غلام صادق زوی د حضرت مجدد شپږم لمسی او د هغه زوی شاه نظام الدين متخلص په نظام د دری ديوان خاوند په ښکار پور کښې روحانی شهرت او د کرهنې ډېرې ځمکې درلودې د غلام صادق بل ورور چې شاه غلام محمد نومېد (پر ۱۱۷۸ هـ کال په پېښور کښې مړ دی) د کندهار د مجددينو نيکه دی. د دوی د بل ورور شاه عزت الله اولاده په يار کند کښې او سيد له اوشاه صفی الله متخلص په صفی د دری د ديوان خاوند و او څلور نور کتابونه يې هم تاليف کړي وو (۱۱۵۶ - ۱۲۱۲هـ) د يمن په حديده کښې ښخ دی اولاده يې په کابل او ننګرهار کښې وه چې د هغو له جملې څخه شاه عبدالبقی متخلص په باقي (چې پر ۱۲۸۷ هـ کال په کابل کښې مړ دی) د دري اشعارو ديوان درلود، چې د کابل د شوربازار د حضرتانو نيکه دی، زوی يې غلام عمر مخلص په عمر (د ۱۲۹۰ هـ په شاوخوا کښې) او د هغه زوی ناصرالدين متخلص په جانان او شمس المشايخ فضل محمد متخلص په فضلي د ديوان خاوندان شاعران وو، شاه فضل الله د شاه غلام نبي زوی او د شاه غلام محمد لمسی (۱۱۸۴- ۱۲۳۸هـ) د



عمدة المقامات ليکوال او په دري شعر د ديوان خاوند د تيمور شاه او شاه زمان د دربار له لويو روحاني کسانو څخه و، محمد حسن د عبدالرحمن زوی او د شاه فضل الله دريېم لمسی د انساب الانجاب او انيس المريدين او نورو ليکوال دي. مير احمد متخلص په اظهر (۱۲۰۶ - ۱۲۶۹هـ) د پېښور او بدخشان له حضرتانو څخه د هفت مجلس، اربعين، سبيل الرشاد او مناقب الطاهرين مؤلف د غزلياتو ديوان او شپږ مثنوي او څو نور کتابه لري.

د علي خان پوپلزی کندهاري د زوی وکيل الدوله عبدالله خان کورنۍ هم اداري لښکري خلك او د فرهنگي او د ادبي ذوق خاوندان درلودل، د هغو له جملې څخه په خپله عبدالله خان (چې پلار يې پر ۱۲۰۱هـ مړ دی) دري شعر وايه د هغه زوی محمد علم خان وکيل الدوله متخلص په "علم" هم په دری ژبه شعر جوړاوه (دی پر ۱۲۹۳ هـ مړدی) مير هوتك خان متخلص په افغان د زمان خان پوپلزی زوی (د ۱۲۱۸ هـ په شاوخوا کښې) له هنرمندو شاعرانو څخه و، په دری ژبه يې ديوان درلود، بل ورور يې الله يارخان راسخ هم شعر وايه او مولوي محمد ابراهيم بل ورور يې د خپل وخت له عالمانو څخه و، دې کورنۍ د هنر، ادب او فرهنگ په خپرونه کښې لوی لاس درلود.

بله ادبي او روحاني کورنۍ د شيخ سعدالدين احمدانصاري د عبدالغفار د زوی ده، چې صوفي او اديب سړی و، د ده آثار د معدن وحدت او ديوان شور عشق او نور تر ۴۳ ټوکو پورې رسېږي، دی د کابل په ده يحيی کښې پر ۱۲۲۵ هـ کال وفات شوی او زوی يې ميرظهورالدين ظهور د شعرديوان لرې او دطب د کتابو مؤلف و، د ده بل زوی ميرامام الدين متخلص په درويش د پښتو او دري ژبو شاعر او د احوال و اثار حاجي صاحب پای منار مؤلف دی، ميرقطب الدين متخلص په فارغ د دري ژبې

شاعر د مثنوی سمرقند مؤلف و، میر حسام الدین احمد، میرنجم الدین احمد، میر نظام الدین او هم میرسیف الدین عزیزی د میرمقام الدین زوی (د ۱۲۸۲ هـ په شاوخوا کښې) د دری شعر د قریحې خاوندو.

د دې دورې نور شاعران او لیکونکي دادي:

سیدابوالحسن عنوان چې پر ۱۱۲۳ هـ کال د بدخشان په جرم کښې زیږېدلی او پر ۱۳۰٦هـ کال وژل شوی دی، عبدالرحمن عارض بدخشي چې پر ۱۲۲۳ هـ مړدی، میرزامحمد واصل فروغی د شاه زمان معاصر، امیرسبحان قلي خان دروازی (د ۱۲۳۰ هـ په شاوخوا کښې) لعل محمد عاجز د پیرمحمد زوی ملقب په عبدالشافي په دري ژبه د اشعارو د دیوان خاوند چې پر ۱۲۳۸ هـ کال مړ او د تیمور شاه د دربار طبیب و، میرعصمت الله متخلص په کشوری د عبدالله زوی د بلخ د دهدادي دی د اشعارو د دیوان خاوند و، چې پر ۱۲۵۷ هـ مړدی، جنیدالله حاذق د صوفي اسلام هروی زوی چې پر ۱۲۵۹ هـ کال په کندهار کښې مړ دی د اشعارو دیوان او د یوسف و زلیخای حاذق په نامه یې مثنوی درلوده، شهاب ترشیزی هروی د تیمور شاه د وختو شاعر او د دیوان خاوند، میر محمد نبي احقر بدخشي چې پر ۱۲٦۹ هـ کال په رستاق کښې مړ دی په عروضو کښې د حدایق الحقایق د کتاب د قوافي رسالې، په فلسفه حکمت او دینیاتو کښې د هشت بهشت مؤلف د لیلی او مجنون، د حضرت امام حسین د شهادتنامې د مثنویاتو ناظم، میرزا احمد خان مستوفي کابلی (په ۱۲۸۰هـ مړ) د دیوان خاوند شاعر، د میرزاعلي خان زوی میرزا محمد محسن دبیر (۱۲۲۷ - ۱۲۸۲ هـ) د محمدزیو پاچهانو د دربار منشي، د لعل محمد خان عاجز کابلی زوی میرزا عبدالواسع "۱۲۰۸ - ۱۲۸۳ هـ" د اشعارو دیوان درلود او د دربار طبیب و د سیدانو د تنګي د سعدالله زوی میر سعدالدین "۱۱۹۸هـ -



۱۲۸۴" د اشعارو د دیوان خاوند، علي نقي متخلص په وصفی "د ۱۲۰۰هـ په شاوخوا کښې" د اشعارو د دیوان څښتن، فرحت هروي د اشعارو د دیوان لرونکی، ولی طواف کابلی د محمدعلی زوی "د ۱۲۸۸ هـ په شاوخوا کښې" د دري ژبې ناخوانه شاعر، د محمد نبي خلمی زوی دا ملا عبدالقیوم صوفي مشر به شاعر چې "پر ۱۲٦۵ هـ زیږېدلی د اشعارو د دیوان او د تنبیه المرایې او قیامت نامې د مثنوی او د دری او تورکي د مجمع الاشعار، د درةالشهزاد د مثنوي خاوند، محمد غلام غلامی د ملا تیمور زوی د انګریز او افغان د لومړی جګړې د پیښو په اړه د جنګ نامې په نامه د منظومې ویونکی، د میرواعظ د کورنۍ "د ۱۲۵٦ هـ شاوخوا" میر محترم حافظ جي د دری اشعار د دیوان خاوند، د مرتضی کابلی زوی میرمجتبی متخلص په الفت "چې پر ۱۲۲۴هـ زیږېدلی" د اشعارو د دیوان څښتن، د مراد محمد بدخشي زوی دا ملاعبدالله چې د خپلو اشعارو دیوان یې پر ۱۲۹۸هـ کال ترتیب کړی دی، میرزامحمود سالك بالاحصاری "د ۱۲٦۰هـ په شاوخوا کښې" د اشعارو د دیوان خاوند، د وزیرفتح خان منشي شرر کابلي د اشعارو د دیوان خاوند، په بخارا کښې ګل محمد افغان د اشعارو د دیوان څښتن، د محمد علي پادخابي لوګري زوی مولانامحمد عثمان د عجایب الاخبار، ګلشن اسرار، بزم طرب، نزهةالمشتاق، ګلچین بساتین، مشرق انوار او نورو کتابو مؤلف "د ۱۳۰۰ هـ په شاوخوا کښې" د نذرعلی زوی قربان په کاتب د ناظم الوقایه او مفاتیح الاعجاز ناظم او د اشعارو د یوان لرونکی.

میرعنایت الله بدخشی د اصول المعیشت ناظم او د اشعارو د دیوان خاوند "چې پر ۱۲۹۰ هـ مړ دی" د میریوسف علي بدخشی زوی برهان الدین لاغردجام جم او روضهٔ نور ناظم او د اشعارو د دیوان خاوند د ۱۲۹۱هـ په شاوخوا کښې) د میراحمدشاه بدخشي زوی میرمحمود شاه د اشعارو د دیوان

خاوند (چې پر ۱۲۹۵ هـ مړ دی) د عبدالصمد رستاقی زوی سید جعفر د ګلشن عشق او چمن عشق ناظم او د اشعارو د دیوان لرونکی (چې پر ۱۲۸۴هـ مړ دی) نعمت الله محوی میمنوی د اشعارو د دیوان خاوند، د سکندر هروی زوی احمد قلي د اتش فشان په نامه د شاعرانو د تذکرې لیکونکی (د ۱۲۹۰ هـ په شاوخوا کښې) محمد رسول شهید مارملی بلخي شاعر د دیوان خاوند (د ۱۲۷۰هـ په شاوخوا کښې) د یعقوب علي بارکزي لور عایشه د دري ژبې شاعره او د تیمورشاه په وختو کښې د دیوان خاونده، د سکندرخان لور محجوبهٔ هروی د دري ژبې شاعره (د ۱۲٦۴ هـ په شاوخوا کښې) د سیدمحمد عظیم لور مستورهٔ غوري د غور د پرچمن اوسیدونکی (د ۱۲۴۵ هـ په شاوخوا کښې) د اشعارو د دیوان خاونده، د سید عبدالله کرخی هروی لور مریم د دري ژبې شاعره او د دیوان خاونده (۱۲۵۷ - ۱۳۰۸هـ) د میرحسین زوی سید محسن بالاحصاری کابلی شامل (۱۲۲۸ ۱۳۰۵ هـ) په دري ژبه د دوو دیوانو خاوند، د محمد هاشم ملقب په دبیرالملك زوی میرزا محمد نبي واصل "۱۲۴۴ - ۱۳۰۹هـ" د امیر شیرعلي خان او امیر عبدالرحمن خان د دربار سرمنشي په دري ژبه د دیوان خاوند، د محمد امان دروازی زوی شمس الدین شاهین د بدایع الصنایع مولف د لیلی مجنون او تحفهٔ دوستان ناظم، احمد علی شاه کندهاري په دري ژبه د دیوان خاوند (چې پر ۱۳۱۱ هـ مړ دی) سید میرمشوانی هروی (۱۲۸۰ - ۱۳۳۳هـ) په دري ژبه د دیوان خاوند او رسام، خطاط چې ډېر متین اشعار يې درلودل، سید فخرالدین مجنون شاه کابلی (۱۲۴۲- ۱۳۰۵) د بستان خیال مولف، رحمت بدخشي د میرزا اسمعیل زوی (د ۱۳۰۰هـ په شاوخوا کښې)، په دري ژبه د پینځو دیوانو خښتن، صاحبزاده عشرت کندهاری (د ۱۳۰۰هـ په شاوخوا کښې) عبدالغفور ندیم کابلی (۱۲۹٦ - ۱۳۳۴ هـ) په



دري ژبه د دیوان خاوند د رحمت الله زوی ندیم بلخي (۱۲۵۴ - ۱۳۳٦ هـ) د شعر د دیوان خاوند، محمد ابراهیم حریت کابلی (۱۲۵۰ - ۱۳۳۸هـ) د دیوان شاعر او د مخمس د پینځو کتابو او د تحفهٔ شهنشاهی ناظم، او د شهاب الدین زوی سیداحمد مشهور په ادیب پشاوری (۱۲٦۰ - ۱۳۴۹هـ) د پخو او متینو اشعارو د دیوان خاوند و او د عربی قصیدو او قیصر نامې ویونکی.

## پښتانه شاعران:

عبدالرحیم هوتك د دیوان خاوند، عبدالحمید مومند (۱۱۰۰ - ۱۱۵۰هـ) د درومرجان په نامه د دیوان او د شاد و ګدای په نامه د مثنوی خاوند، همدا شان نیرنګ عشق او شرعةالاسلام په پینځلسو زروبیتو کښې د ده آثار دی (۱۱۴۸هـ). پیرمحمد کاکړ چې د اشعارو دیوان يې پر ۱۱۹٦هـ کال بشپړ شوی او هم يې د پښتو ګرامر کوچنی کتاب د معرفة الافغاني په نامه پر ۱۲۳۸هـ کال لیکلی دی، شمس الدین کاکړ کندهاری چې پر ۱۲۳۸هـ د شعر دیوان او د سراج الموتی په نامه کتاب او نور منظوم کتابونه يې درلودل، شاه حسین هوتك، د عبدالله زوی مسعود د آدم خان او درخانۍ د نکل ناظم (د ۱۲۰۰ هـ په شاوخوا کښې) ملاپیرمحمد هوتك د سرور زوی د ۱۱۴۰هـ شاوخوا کښې د افضل الطرایق ناظم، د داودخان کندهاري زوی محمد هوتك د پټې خزانې او خلاصةالفصاحة مولف (د ۱۱۴۲هـ په شاوخواکښې) د حسین زوی عبدالرشید (پر ۱۱٦۹ هـ کال) په فقه کښې د رشیدالبیان مولف، مریدي خان مومند د شاه محمود هوتك د حالاتو په اړه د محمودنامې ناظم (د ۱۴۰۰ هـ په شاوخواکښې) شېر محمد هوتك (۱۰۹۲ ۱۱۷۵هـ) د اسرارالعارفین او تجوید افغاني مولف، اخوند ګدا د نافع

المسلمين مولف او د اشعارو د ديوان خاوند (د ۱۱٦۰ هـ په شاوخواکښې) محمدی صاحبزاده (۱۱۸۰هـ کال) په پېښور کښې د اشعارو د ديوان لرونکی، حافظ مرغزی پر (۱۱۷٦هـ کال د احمدشاهي شهنامې ناظم، محمد مظفر د اسماعيل زوی د ۱۱۲٦ هـ په شاوخوا کښې) د اعثم کوفي د تاريخ مترجم، د حافظ رحمت بړيڅ زوی نواب الله يارخان د ۱۲۲۸هـ په شاوخوا کښې د عجايب اللغات پښتو مولف، عبدالکريم کاکړ کندهاری پر ۱۲۳۴هـ کال د زين العلم ناظم چې له عربي عين العلم څخه يې ژباړلی و، حافظ الپوری (پر ۱۲۰۰ هـ کال) د ديوان خاوند، قاسم علي اپريدي د څو کتابو مولف، عبدالعظيم سواتی د اشعارو د ديوان لرونکی (۱۱٦۷-۱۲۵۳هـ ملاحسن تلوکانی کندهاری د اشعارو د ديوان خاوند چې پر ۱۲۴۵ هـ کال مړ دی ، رحمت داوی کندهاری د اشعارو د ديوان او د ليلی و مجنون د مثنوی خاوند د (۱۲۱۰هـ په شاوخوا کښې)، ميانعيم متي زی پر ۱۲۳۰ هـ کال د شعر د ديوان خاوند، معين الدين پېښوری پر ۱۲۵٦ هـ کال دوامق او عذراناظم، عبدالرسول کندهاری د اشعارو د ديوان، د سفرنامې او آزادنامې څښتن (۱۲۹۰هـ) ملاجمعه بارك زی کندهاری شاعر چې پر ۱۲۵۹هـ مړ دی، عزيز خان رناخيل د ۱۲۵۰هـ په شاوخوا کښې د هرات د جنګنامې ناظم، د عبدالرحمن زوی مراد علي کاموی پر۱۲۸۲ هـ کال د تفسير يسير مولف، دوست محمد ختك کندهاری پر ۱۲۹۰ هـ د بدرمنير، بحرالعلوم او اخلاق احمد مولف، معزالله مومند پر ۱۲۰۰هـ د شعر د ديوان خاوند، ميرزاخنان کندهاری، صديق اخوند زاده او ګل محمد هلمندی د اشعارو د ديوانو خاوندان.



د پښتو شاعرانې:

نازو توخی د سلطان ملخي لور او د حاجي ميرويس خان هوتك مور پر ۱۰٦۱هـ زيږېدلې ده، د ميرويس خان لور زينبه هوتکي (پر ۱۱۲۷هـ مړه ده) او سپينه هروي (د ۱۲۵۵ هـ په شاوخوا کښې).

له عالمانو څخه مولوي محمداعظم اندړ د غزني د شلګر اوسېدونکی، مولوی عبدالله غزنوي او ملاعبدالحق د کندهار د خرقې شريف متولي، صوفي محمد رسول ساکزی (پر ۱۲۸۷ هـ په کندهار کښې مړ دی)، ملامشك عالم اندړ غزنوی او ملاسکندر (چې د اميرشيرعلي خان د لښکر قاضي و) ملامحمود او ملا عبدالله د انار درې قاضي، ملا عبدالفتاح او ملا ابوالحسن (د ۱۲۷۰ هـ په شاوخوا کښې د هرات عالمان)، محمد حسين د مداح الکوزي کندهاري زوی چې د ميرزاهد هروي د تصور او تصديق پر حاشيې باندې د شرح انکشافيه مولف دی، مسعود ګل د قاضي عبدالرحمن پېښوری زوی پر ۱۲۲٦هـ د عجايب الاخبار مولف، عبدالحليم کاکړ کندهاری پر ۱۲۳۴ هـ درد حليميه علی مطاعن احمديه مولف، ملاعبدالحق د عبدالغفور خروټی زوی د پښتو د ياقوت السير ناظم او د شرح اربعين مولف، ملاقطب توخي چې په کندهار کښې يې پر ډېرو ادبي کتابو شرح ليکلی دي، مولاناعبداللطيف د تيمورشاه د دربار صدرالعلما (چې پر ۱۱۹۵هـ مړ دی) مولوی محمد عمر ساکزی چې د تجويد په علم کښې يې په پښتو يو کتاب تاليف کړی او پر ۱۲۰۵ هـ مړدی، سعدالله خروټی چې پر جلالين او پر مولوي عبدالغفور يې شرح ليکلې او پر ۱۲۰۹ هـ مړ دی.

• سره له دې چې په دې عصر علمي او ادبي هڅه بيخي پر ځای ولاړه نه وه او لکه چې و مو ليدل د هېواد په هر ګوټ کښې پوهان وو، خو که په انتقادي او پرتليز نظر يې وګورو دا دوره نسبت پخوا ته د علم او ادب د

زلمیتوب او فعالیت دوره ګڼلای نه شو، بلکې دا د تقلید او انتحال دوره ده، ځکه نو په دې دوره کښې، علمي او فکري بکر آثار لږ لیدل کېږي.

د دري ژبې ادبیاتو هم د دغه عصر په نثر او نظم کښې د انحطاط دوره وهلې او کوم نوښت په کښې نه لیدل کېږي ښایي وویل شي چې حضرت نورالدین عبدالرحمن جامي د دري ژبې خاتم شعراء وو، خو پر عکس د پښتو ژبې ادب ښه وده وکړه، د پیر محمد کاکړ کندهاری، حمید مومند او نورو غونډې د ابتکار او ښې قریحې خاوندان شاعران په کښې پیدا شول، په تېره بیا حمید او کاظم خان خټك متخلص په شیدا د هندي سبك چاشني پر پښتو ګډه کړه.

د سدوزیو دوختو په دري ادبیاتو کښې داسې شاعران لرو چې د حافظ، جامي، د خراسان او عراق د سبك پیروان دي، خو تر ۱۲۵۰ هـ وروسته په دري ادب کښې یوه هڅه او خوځښت وینو چې زموږ شاعران د هند د سبك پیښې (تقلید) کوي دا هغه اغېزه ده چې د میرزا عبدالقادر بېدل د اشعارو او هغه د اشعارو د کلیات پشپړ مقبولیت په نتیجه کښې منځته راغلې ده، په غزل کښې ،: دغه سبك لومړی پیرو سردار مهردل خان د سردار پاینده خان زوی دی چې مشرقي یې تخلص و. تر هغه وروسته سردار غلام محمد خان طرزي او زوی یې محمد امین عندلیب هم ددغه سبك ډېره پیروي کوي، خو په ـــ ي کورنۍ کښې د سردار پاینده خان وروڼه سردار هارون خان، سردار غلام حیدرخان او سردار احمدخان د امیر دوست محمد خان زامن دري واړه شاعران او په دري ژبه دیوانونه لري، سردار شهنواز خان د سردار سلطان احمد سرکار زوی، خوشدل خان د مشرقي زوی، سردار محمد حسن خان سیاه د تیمور قلي خان زوی او د وزیر فتح خان ورور (د ۱۳۰۰ شاوخوا)، سردار محمد عزیز د سردار شمس الدین خان زوی د (۱۳۱۰هـ پر



شاو خوا) او سردار عباس خان د سردار سلطان محمد خان زوی شاعر او د ګل عباسي، جواهر خمسه، عناصر اربعه مولف او د تفسیر کلام الله مفسر (۱۲۵۲ ـ ۱۳۴۳ هـ) هم په دري ژبه شعر ویلی دی، خو د دوی په کلام کښې د هند د سبك پیروي اغېزه او د هغه سبك شاعرانه تلازمات او د تخیل طرز لږ لیدل کېږي.

د احمد شاه بابا له وختو بیا د امیر عبدالرحمن خان د دورې تر پایه (د ۱۳۲۰ هـ شاوخوا پورې) دري شعر د پخوانیو شاعرانو په تېره بیا د هند د سبك د فکري او عروضي تقلید په قالب کښې پاتې شو، هغه شاعران چې په دې دوو پېړیو کښې منځته راغلل ټول د تېرو دورو د شاعرانو مقلدان و، خو د افغان او انګریز تر لومړۍ او دویمې جګړې وروسته چې د هند د شمال له خوا د اروپایي نوي مدنیت اغېزې افغانستان ته راورسېدلې، د دغه ځای پر ادب یې هم اغېزه وکړه او همدا د (۱۳۲۰ هـ ق شاوخوا) د افغانستان په نویو ادبیاتو کښې د نوي فکر ځرك ښکارېږي.

هغه بدلون چې د اروپا د صنعت او مدنیت اغېز د دغه وخت په ادب کښې راووست هغه فکري بدلون دی چې د شعر پر ظاهري سبك او قالب یې اثر ونه کړ. زموږ شاعرانو همهغه پخواني عروضي قالبونه ښه وبلل، خو لږ تر لږ زموږ پر ملي ادب د نوي فکر اغېزه ولوېده او وینو چې مولوي محمد سرور او اصف کندهاری د جهان اوضاع ته د ځیر کېدلو او نوی مدنیت ته د ترغیب او تشویق په اړه یوه قصیده ویلې ده او د ۱۲۹۰ هـ په شاوخوا کښې د امیر شیرعلي خان پر مهال لومړي ځل د "شمس النهار" په نامه یوه جریده د کابل له بالاحصاره خپره شو، تر هغې وروسته پر ۱۳۲۳هـ کال د سراج الاخبار افغانستان لومړۍ ګڼه د مولوي عبدالروف خان کندهاري په مدیریت د پوهانو د یوې ټولنې له خوا چاپ شوه، د معارف د خپرېدو،

د ښوونځیو او مطبوعاتو د تأسیس او د ادبي نویو عصري اثارو د لیکنې، ژبارنې هڅه هم پیل شوه. د دغې نوې فکري او ادبي هڅې مخکښ د سردار غلام محمد خان طرزي کندهاري زوی محمود طرزي چې پر ۱۳۸۴هـ کال په غزني کښې زیږېدلی او د ۱۹۳۳م کال د نومبر پر ۲۲ مه په استانبول کښې مړ شوی دی، پر ۱۳۲۹هـ ق کال سراج الاخبار افغانیه چې پر ۱۳۲۳هـ ق کال یې یوازې یوه ګڼه خپره شوې وه بیا راژوندی کړ او هغه یې تر اتو کالو پورې د یوې پینځلس ورځنۍ موقوتې جریدې په توګه خپره کړه، چې د افغانستان د خلکو د ویښتابه او خپلواکۍ غوښتنې هڅوونکې شوه، د دري ژبې په نثر او نظم کښې یې نوی فکر او نوې انشاء وروزله؛ شل کتابه یې له تورکي څخه په دري ژبه ترجمه او یا تألیف کړل، دی لومړی سړی دی چې د افغانستان د صحافت او لیکنې په ډګر کښې یې د فکرې او ادبي نوي مکتب بنسټ کښېښوو.

دا مهال د پښتو او دري ژبو نورو لیکوالو او شاعرانو هم افغاني ادب ته نوی فکر ننه یوست د عبدالعلي مستغني (۱۲۹۳ ـ ۱۳۵۲ هـ ق) قاري عبدالله (۱۲۸۸ هـ ق ـ ۱۳۲۲ هـ ش)، عبدالغفور ندیم، عبدالهادي داوي، مولوي صالح محمد هوتك، مولوي غلام محی الدین افغان، مولوي عبدالرب کندهاري او نورو لیکوالو او شاعرانو په شان منځته راغلل، سره له دې چې د دوی لیکنې په زړو کلاسیکي قالبو کښې وې، خو څه نا څه یې نوي افکار او مفاهیم چې شلمې پېړۍ زیږولي وو هم وروزل.

د ۱۹ پېړۍ پر لومړۍ نیمایي د انګریز ښکیلاك چې د نوي تمدن او صنعتي بدلون نښې ورسره وې پر ټول هندوستان د سند د سیند تر غاړو خپور شو او زموږ د هېواد له ختیزو طبعي سرحد و سره ونښت، د افغان او انګریز لومړۍ جګړه چې پر ۱۸۳۹م کال د سند د لښکر (اندس ارمی) له خوا



پیل شوې وه تر پینځو کالو وروسته د افغان ملي ځواك په بري او د یرغلګرو په غوڅه ماتې پای ته ورسېده، تر هغې وروسته د هند د ریل پټلۍ دې لورته راوغځېده، د بمبیي او کراچۍ بحري بندرو هم افغاني سرحدو ته د سمندریزو لېږدونو لار پرانیسته، د هېواد لوېدیز خوا ته په قاجاري ایران او د شمال پلو ته په تزاري روسیې کښې هم د نوي مدنیت بنسټونو او نوي فکر وده موندله؛ دغو ټولو اغېزناکو عواملو د افغانستان د خلکو پر ژوندانه، فکر، سیاست او اداره هم اغېزه کوله.

د دې فکري هڅې او حرکت له ممثلانو څخه یو هم سید جمال الدین د کونړ د سید صفدر زوی و (۱۲۵۴ ـ ۱۳۱۵ هـ ق) چې خپل جهاد یې له افغانستانه د ختیځ د بدمرغۍ د دریو عاملو (استعمار، استبداد او خرافاتو) پر ضد پیل، په هند، ایران، عثماني ترکیه او مصر کښې یې فکري او اصلاحي نوی نهضت راووست، نړیوال شهرت یې وموند، ده ته د افغانستان او ختیزو هېوادو د ویښتابه او نوی فکر لومړی روزنکی ویل کېدای شي. خو د ښکیلاك دسیسو، په افغانستان کښې د شهزادګانو کورنیو جنګو او په هېواد کښې د مرکز نشتوالي پرې نه ښوو چې دا فکری هڅه او حرکت خپل طبعي تګ ته دوام ورکړي، څو چې امیر شیرعلي خان پر خپله دویم خل پاچهۍ وکړای شول لومړی افغاني کابینه د سید نور محمد شاه کندهاري صدراعظم په مشرۍ تاسیس او شمس النهار جریده، منظم لښکر او یوه برخه عصري تشکیلات منځته راولي، په سیاست کښې یې هم آزاد خپلواك تګلوری پر مخ بوت. خو د افغان او انګریز د دویمې جګړې پیل (۱۲۹۵ ـ ۱۲۹۷ هـ ق) دا لړۍ پریکړه او د امیر عبدالرحمن خان دوره (۱۲۹۷ ـ ۱۳۱۹ هـ ق) د استبداد تر فشار لاندې په یو ډول فکري جمود کښې تېره شوه، تر هغې چې پر ۱۳۲۳ هـ ق کال په کابل کښې سراج الاخبار

**ټولنه** تاسیس او په نوی فکرې هڅه یې بیا لاس پورې کړ، مولوي عبدالرؤف کندهاری سراج الاخبار خپور کړ او په کابل کښې دارالعلوم حبیبیه هم تاسیس شو چې دا نو د ساینس او نویو مضمونو د تدریس پیل و.

دغې فکري هڅې سره له دې چې کورني او بهرني خنډونه یې **درلودل** پر ۱۳۲۹ق کال د سراج لاخبار افغانیه د بیا راژوندي کولو په واسطه د محمود طرزي له خوا ادامه ومونده، د "اخوان افغان" په نامه په کابل کښې لومړی افغاني سیاسي ګونډ تاسیس شو، چې مرام یې "مشروطیت، خپلواکي او داخلي اصلاحات" وو، خو د دغه ګونډ غړي پر ۱۳۲۵ هـ ق کال یا ووژل شول او یا بندیان شول تر ۱۳۲۹ ق چې سراج الاخبار د محمود طرزی په واسطه بیا خپور شو همدا دا خوان افغان ګونډ هم بیا راژوندی شو، تر ۱۳۳۷هـ ق پورې د افغاني روشن فکرانو په تنظیم او د معارف په خپرونه کښې یې زیار ویوست، د هېواد د بشپړې سیاسي آزادۍ ګټلو او د خپلواکی د جهاد له پاره د ولس په عمومي پاڅون او د افکارو په تنویر کښې ددې ټولنې زیار ګټورو او چې پر ۱۹۱۹م افغان ولس خپله خپلواکي بېرته وګټله ټولو روشن فکرانو دنیا ته د نوي آزاد افغانستان د ورپېژندلو، د ادارې د نوي تشکیل، د مدني چارو په ترتیب د ښوونځیو د تاسیس او مطبوعاتو د پراختیا په لاره کښې زیار ویوست چې دا ګټور زیار تر اوسه پر مخ ځي.

پای

# اخځلیکونه:

هغه کتابونه چې د دغه کتاب په لیکلو کښې ګټه ترې اخیستل شوې:


۱- د سید جمال الدین افغان "تتمة البیان" د قاهرې چاپ-۱۹۰۱م.

۲- د افغان او فارس جګړه - له لاتیني څخه په انګریزې د جارج نیون هامفورد ایزك ژباړه - د لندن چاپ.

۳- زندګانی نادرشاه - د نور الله لارودي لیکنه، تهران - ۱۹۳۹ م.

۴- روضة الصفای ناصري - ۸ ټوك د رضا قلي هدایت لیکنه - تهران ۱۳۰۲هـ ق.

۵- پټه خزانه او پایخوړ یې د حبیبي په قلم، کابل ۱۹۴۴ م.

۶- ایین اکبري - د ابو الفضل لیکنه - لکنهو ۱۳۱۰ هـ ق.

۷- تاریخ افاغنه (اردو) د سید ظهور الحسن موسوي لیکنه - د هند چاپ - ۱۳۳۰ هـ ق.

۸- تاریخ نظامي ایران - لومړی ټوك - تهران ۱۳۱۵ هـ ش.

۹- نادرنامه (خطي) د حبیبي د کتابتون نسخه-مولف یې څرګند نه دی.

۱۰- سیرالمتاخرین - د غلام حسین لیکنه، د لکنهو د نولکشور چاپ.

۱۱- درۀ نادره - د میرزا مهدی استر آبادي لیکنه - بمبیي ۱۳۰۹ هـ ق.

۱۲- مجمع التواریخ د میرزامحمد خلیل مرعشي صفوي لیکنه-

تهران ۱۳۲۹هـ ل كال.

۱۳ - كاوه مجله - ۲ كال - د برلين چاپ ۱۳۰۳ هـ ل.

۱۴- تاريخ ايران د سرجان ملكم - بمبيي - ۱۸۶۷م

۱۵- تاريخ افغانستان - د مليسون تاليف د لندن دويم چاپ - ۱۸۷۸م.

۱۶- تاريخ سلطاني - د سلطان محمد خالص كندهاري تاليف - بمبيي ۱۲۹۸هـ.

۱۷ - خورشيد جهان - د شيرمحمد ليكنه - گنداپور - لاهور ۱۸۹۴ م

۱۸ - منتخب اللباب - د خافي خان - ايشياتك سوسايتي - كلكته ۱۸۹۶م.

۱۹ - حيات افغاني - د محمد حيات خان - لاهور ۱۸۶۷م.

۲۰ - ميرويس نيكه - د ښنوا ليكنه، كابل ۱۳۲۵ هـ ل.

۲۱ - آريانا مجله د تاريخ ټولنې له خپرونو څخه.

۲۲ - عباسنامه - د محمد طاهر وحيد قزويني، تهران - ۱۳۲۹هـ ل.

۲۳ - خلاصة الانساب ابدالي (قلمي).

۲۴ - مشاهير ابداليان - د حبيبي - كابل ۱۳۲۵ هـ ل.

۲۵ - رهنماى افغانستان - كابل - ۱۳۲۸ هـ ل.

۲۶ - لوى احمد شاه بابا - د حبيبي - كابل - ۱۳۱۹ هـ ل.

۲۷ - دول اسلاميه - د خليل ادهم - استانبول ۱۹۲۷م.

۲۸ - مخزن افغاني - د نعمت الله هروي - (قلمي).

۲۹ - تذكرة الابرار والاشرار - د اخون دريزه - پېښور هندو پريس چاپ، ۱۳۰۸هـ ق.

۳۰ - صولت افغاني - د محمد زردار خان افغان - د لكنهو د نولكشور چاپ - ۱۸۷۶ م.

۳۱ - تاريخ افغانستان - لومړى او دويم ټوك د كهزاد - كابل ۱۹۴۶ م.





۳۲ - افغانستان درقرن نزدهم - دسيدقاسم رشتيا- كابل چاپ ۱۳۲۹هـ ل.

۳۳ - اكبرنامه - منظومه - د حميد كشميري - كابل ۱۳۳۰ هـ ل.

۳۴ - در زواياى تاريخ معاصر افغانستان، د احمدعلي كهزاد-كابل ۱۹۵۲م.

۳۵ - مشاهيرالشرق - د جرجي زيدان - لومړى ټوك - قاهره - ۱۹۱۰ م.

۳۶ - المسالك و الممالك - د ابن خرداذبه، ليدن - ۱۳۰۶ هـ ق.

۳۷ - دائرة المعارف اسلامى - ليدن - ۱۹۲۷ م.

۳۸ - ايرانشهر - د ماركوارت - برلين چاپ ۱۹۰۱ م.

۳۹ - د كرستن سين د"ساسانيانو په وخت كښې ايران" ژباړه - د ډهلي چاپ ۱۹۴۱ م.

۴۰ - فتوح البلدان - د بلاذرى - قاهره ۱۹۰۱ م.

۴۱ - مجمل التواريخ والقصص - د بهار چاپ - تهران ۱۹۳۸ م.

۴۲ - تاريخ سيستان - دبهار چاپ - د تهران ۱۹۳۴ م.

۴۳ - تاريخ طبرى - د بلعمى ژباړه - لكنهو ۱۹۱۶ م.

۴۴ - چچنامه- د علي حامد كوفي سندي - داود پوته چاپ ډهلي - ۱۹۳۹م.

۴۵ - د امان افغان جريده - د كابل چاپ ۱۹۱۹ م.

۴۶ - د پښتنو تاريخ - د قاضي عطاء الله، د پېښور چاپ - ۱۹۴۷ م.

۴۷ - د ابن النديم الفهرست - قاهره - ۱۳۴۸ هـ ق.

۴۸ - د پېښور د موزيم كتيبې - د عبدالشكور - پېښور ۱۹۴۸ م.

۴۹ - تاريخ التمدن الاسلامى - د جرجي زيدان، قاهره - ۱۹۰۲ م.

۵۰ - تاريخ ادبيات فارسي - د براون - لندن ۱۹۰۲ - ۱۹۲۴م.

۵۱ - كتاب الخراج - د قدامه بن جعفر- ليدن ۱۸۹۲ م.

۵۲ - تاریخ روابط سیاسي ایران - د نجف قلي معزی - تهران - ۱۹۴۷ م.

۵۳ - تاریخ هند - د دولافوز - تهران - ۱۹۳٦ م.

۵۴ - اقبال نامهٔ جهانګیری - د معتمد خان بخشی - کلکته ۱۸۸۵ م.

۵۵ - تزك جهانګیر - د فیروز هادی چاپ - لکنهو - ۱۳۲۷ هـ.ق

۵٦ - مآثر رحیمی - د عبدالباقی - کلکته ۱۹۲۵ م.

۵۷ - تزك بابر - د عبدالرحیم خان خانان ژباړه، بمبیي ۱۳۰۸ هـ ق.

۵۸ - رقعات عالمګیر - د دارالمصنفین اعظم ګډه چاپ - ۱۹۴۵ م.

۵۹ - منتخب التواریخ - د عبداقادر بدایونی - د کلکتې چاپ.

٦۰ - اکبر نامه - دابو الفضل - کلکته ۱۸۸٦ م.

٦۱ - عالمګیر نامه - د محمد کاظم ۱۸٦۸ م.

٦۲ - طبقات اکبری - د نظام الدین هروی - کلکته ۱۹۳۱ م.

٦۳ - مآثر الامراء - د صمصام الدوله - کلکته ۱۳۰۹ق.

٦۴ - بابر - د فرانسوی فرنارد ګروناد - د پاریس چاپ - ۱۹۲٦ م.

٦۵ - فارس نامه - د ابن البلخی - د کمبرج چاپ ۱۹۲۱ م.

٦٦ - افغانستان در عصر تیمویان هند - د حبیبي، د کابل چاپ ۱۳۴۱ هـ.ل

٦۷ - تاریخ فرشته - د محمد قاسم - د لکنهو چاپ ۱۳۲۱ هـ ق.

٦۸ - زینت الزمان فی تاریخ هندوستان - د ملك الکتاب شیرازی - بمبیي ۱۳۱۰ هـ ق.

٦۹ - تاریخ مختصر هند-د ابو ظفر ندوی- د اعظم ګډه چاپ ۱۳۵۵هـ ق.

۷۰ - مجمع السلاطین - د نواب محمد غوث خان بمبیي ۱۲۷۹هـ ق.

۷۱ - تاریخ ایران - د عبدالله رازی - تهران ۱۹۳٦م.

۷۲ - کیمبرج هستری آف انډیا - ۴ ټوك، لندن.





۷۳ - مطلع سعدین - د عبدالرزاق سمرقندی (خطي - کابل).

۷۴ - روضة الصفا - د میر خواند - لکنهو.

۷۵ - تاریخ سند - د سید معصوم - بمبیي ۱۹۳۸ م.

۷٦ - مفتاح التواریخ - د جان ولیم بیل - لکنهو.

۷۷ - لب التواریخ - دیحیی قزوینی - تهران ۱۹۳۵ م.

۷۸ - پر بابر نامه باندې د بیورج تعلیقات، لندن ۱۹۲۲ م.

۷۹ - تاریخ هند - د ارسکن - لندن ۱۸۵۴ م.

۸۰ - تاریخ ګزیده - د حمدالله مستوفی - لندن ۱۹۱۰ م.

۸۱ - مخزن اسلام - پښتو - داخون درویزه (خطی).

۸۲ - سلوك الغزات - پښتو - د ملامست زمند (خطی).

۸۳ - تارخ مرصع دافضل خان خټك، هر تفورډ ۱۸٦۰

۸۴ - دخوشحال خان د کلیاتو مقدمه - د حبیبی - کندهار - ۱۹۴۰ م.

۸۵ - پښتانه شعرا - ۱، ۲ ټوك - د حبیبی - کابل ۱۹۴۰ م.

۸٦ - تاریخ افغاني - د شیخ امام الدین خلیل (خطی - کابل)

۸۷ - الکامل - د ابن الاثیر - د مصر د بولاق چاپ ۱۲۹۰ هـ ق.

۸۸ - زین الاخبار - د عبد الحی ګردیزی - تهران د ۱۹۳۵.

۸۹ - طبقات ناصري - د منهاج السراج - د ع، حبیبي په زیار، کابل - دوه ټوکه ۱۳۴۲هـ ل.

۹۰ - تذکرة الاولیاء پښتو - د سلیمان ماکو - د پښتانه شعراء په لومړی ټوك کښې - کابل ۱۹۴۰ هـ ل.

۹۱ - تاریخ بیهقی - دابو الفضل بیهقی - ۳ ټوك، تهران ۱۹۴۷ م.

۹۲ - تاریخ یمینی - د ابو نصر العتبی - قاهره ۱۲۹۰ هـ ق.

۹۳ - تاریخ بخارا - د محمد نرشخی تهران ۱۹۳۷ م.

۹۴ - حدود العالم - مؤلف يې معلوم نه دی. تهران ۱۹۳۲م.

۹۵ - پادشاهان متأخر افغانستان، د یعقوب علي خوافي، کابل ۱۹۵۳م.

۹٦ - قابوس نامه - د تهران چاپ، ۱۹۴۰ م.

۹۷ - جغرافیای تاریخی ایران، د بارتولد، تهران ۱۹۲۸.

۹۸ - مسالك الممالك - د اصطخري - لیدن ۱۹۲۷م.

۹۹ - احسن التقاسیم - د المقدسي - لیدن ۱۸۷۷ م.

۱۰۰ - چهار مقالهٔ عروضي او د محمد قزویني تعلیقات، لیدن ۱۹۰۹م.

۱۰۱ - جوامع الحکایات - د عوفی (خطي) - کابل.

۱۰۲ - لباب الالباب - د عوفی - لندن ۱۳۲۱ - ۱۳۲۴هـ ق.

۱۰۳ - منتخبات آداب الحرب والشجاعة د فخر مدبر - لاهور.

۱۰۴ - طبقات سلاطین اسلام - د لن پول - تهران ۱۳۱۹ هـ ل.

۱۰۵ - تاریخ مختصر ایران د پاول هورن - تهران ۱۹۳۴م.

۱۰٦ - تاریخ ادبیات ایران - ددکتور شفق - تهران ۱۹۴۲ م.

۱۰۷ - اخبار الدولة السلوقیة د صدر الدین علی - لاهور ۱۹۳۳ م.

۱۰۸ - ذیل جامع التواریخ - د حافظ ابرو - تهران ۱۹۳۷ م.

۱۰۹ - جهانکشای جویني - تهران ۱۳۱۵ هـ ل.

۱۱۰ - تاریخ مفصل ایران - د عباس اقبال - تهران ۱۹۳۲ م.

۱۱۱ - حبیب السیر - د خوان میر - بمبیي ۱۲۷۳ هـ ق.

۱۱۲ - سیرة جلال الدین - د محمد نسوي - تهران ۱۳۴۴ هـ ل.

۱۱۳ - تاریخ هرات - د سیفي هروی - کلکته ۱۹۴۳ م.

۱۱۴ - ظفر نامه دشرف الدین علی یزدی، د کلکتې چاپ.

۱۱۵ - د تعدیل نسب نامه آل کرت مقاله - د حبیبی په قلم - آریانا مجله ٦۸مه گڼه کابل ۱۹۴۸ م.





۱۱٦ - ریاض الانشاء - د محمودګاوان - حیدر آباد دکن

۱۱۷ - نسب نامهٔ افاغنه- د محمد عبدالسلام خان عمر خیل، هند - ۱۹۱۴م.

۱۱۸ - ظفرنامه رنجیت د امرنات لاهور، ۱۹۲۸م.

۱۱۹ - عمل صالح - د محمد صالح لاهوری - کلکته ۱۹۳۹ م.

۱۲۰ - تزك افغاني - دمحمد عباس خان رفعت - دهندچاپ ۱۲۹۹هـ.ق.

۱۲۱ - فرهنګ او ستا دبمبیي چاپ.

۱۲۲ - خوشال خان خټك - د دوست محمد کامل پېښور ۱۹۵۱ م.

۱۲۳ - تاریخ افغانستان - دعلی قلی میرزا - تهران.

۱۲۴ - تاریخ ایران - د فروغی - تهران ۱۳۱۸ هـ ق.

۱۲۵ - تحفة الحبیب د فیض محمد هزاره (خطی).

۱۲٦ - تاج التواریخ، د امیر عبدالرحمن - بمبیي ۱۳۲۲ هـ ق.

۱۲۷ - مجمل التواریخ بعد نادریه - د ابن محمد امین - تهران ۱۹۴۰م.

۱۲۸ - احمد شاه بابا. د میر غلام محمد غبار - کابل ۱۹۴۴ م.

۱۲۹ - ریاض المحبة - د نواب محبت خان (قلمی).

۱۳۰ - د شاه ولي الله دهلوی سیاسی مکتوبات، د خلیق احمد نظامی چاپ - علی ګډهٔ ۱۹۵۰م.

۱۳۱ - د شاه فقیر الله علوی مکتوبات - لاهور.

۱۳۲ - حیات حافظ رحمت خان - د سید الطاف علي بدایون ۱۹۳۳م.

۱۳۳ - سراج التواریخ - ۲ ټوك، د فیض محمد هزاره، د کابل چاپ - ۱۳۳۱ هـ ق.

۱۳۴ - دامیر دوست محمد خان ژوند - د موهن لال - کلکته - ۱۸۳۲م.

۱۳۵ - د بارکزیو عروج - د الایسیس - لندن.

۱۳۶ - د کابل پاچهي - د الفنستن - لندن ۱۸۵۱ م.

۱۳۷ - د هند د غرب شمال سرحد - د سرولیم بارتن - لندن.

۱۳۸ - د افغان دویمه جګړه - د ډیورند - لندن.

۱۳۹ - د غزني او کابل سیاحت - دواین اثر - لندن.

۱۴۰ - دسنداردو - د هوك اثر - لندن.

۱۴۱ - د هند شمال ته سفر - د کونولی - لندن.

۱۴۲ - افغانستان - د سر مکموهن - لندن ۱۹۲۹م.

۱۴۳ - د افغانستان بربادی - د جنرال سیل - لندن.

۱۴۴ - د هند سرحدونه - د هولدیچ - لندن.

۱۴۵ - افغانستان - د کپتان ګری - لندن.

۱۴۶ - بلوچستان - د پوتنچر - لندن.

۱۴۷ - تاریخ افغانستان، دسر پرسی سایکس - لندن.

۱۴۸ - د پښتو ادبیاتو تاریخ- ۱، ۲ ټوك د حبیبی، کابل ۱۹۵۰م.

۱۴۹ - مورخان ګمنام افغان، د حبیبی، کابل ۱۹۴۶ م.

۱۵۰ - محاربهٔ کابل - د قاسم علی - اګره ۱۲۷۲ هـ ق.

۱۵۱ - فتوح السلاطین - منظوم - د حسامی - اګره ۱۹۳۸ م.

۱۵۲ - تاریخ احمدی - د منشي عبدالکریم - نولکشور ۱۲۶۶ هـ ق.

۱۵۳ - نوای معارك - د عطا محمد - د حبیبی په زیار او سریزه- کراچی- ۱۹۵۹ م.

۱۵۴ - د پښتو ګرامر - سریزه راورتی - کلکته ۱۸۵۶ م.

۱۵۵ - الاصابه فی تمییز الصحابه - دابن حجر عسقلانی-مصر - ۱۳۲۳هـ ق.

۱۵۶ - کتاب البلدان - د یعقوبی - لیدن ۱۸۹۲ م.

۱۵۷ - سیاست نامه - د خواجه نظام الملك - د تهران چاپ.





۱۵۸ - ریسز آف افغانستان - د دبلیو بلیو - کلکته.

۱۵۹ - فتوحات عرب در آسیای میانه - د ګب - لندن- ۱۹۲۳ م.

۱۶۰ - خلافت - دولیم تمبل میور - لندن ۱۹۲۴ م.

۱۶۱ - تاریخ الاسلام السیاسی والدینی و الثقافی والاجتماعی - د حسن ابراهیم - درې ټوکه - دقاهرې چاپ ۱۹۴۸م.

۱۶۲ - تاریخ مبارکشاهی - دیحیی بن احمد سهرندی - کلکته - ۱۹۳۱م.

۱۶۳ - قانون همایوني- د خوند میر - کلکته ۱۹۴۰ م.

۱۶۴ - تذکرهٔ همایون و اکبر - د بایزید بیات - کلکته ۱۹۴۱ م.

۱۶۵ - خصایل السعاده-د محمد سعادت خان ترین لکنهو ۱۸۵۵م.

۱۶۶ - تاریخ عمومی-د عباس اقبال-دویم چاپ - تهران ۱۳۰۵ هـ ل.

۱۶۷ - مرآة الاشباه - دمحمد حسن - داوده چاپ.

۱۶۸ - کابل کالنی - له ۱۹۳۰ څخه تر۱۹۵۳ پورې د کابل چاپ.

۱۶۹ - کابل مجله - ۱، ۲ ټوك د میر غلام محمد غبار د "افغانستان ونګاهی بتاریخ آن" مضمون ۱۹۳۱ - ۱۹۳۲ م.

۱۷۰ - حدیقة الاقالیم - د مرتضی حسین بلګرامي لکهنو ۱۲۹۶هـ.

۱۷۱ - مسکوکات افغانستان در عصر اسلام - د احمد علی کهزاد - کابل ۱۹۳۹ م.

۱۷۲ - منجم العمران - د سید محمد امین خانجی - مصر ۱۳۲۵ هـ ق.

۱۷۳ - فصلی از خلاصة الاخبار - د خواند میر، د ګویا اعتمادی -کابل - ۱۹۴۶ م.

۱۷۴ - اثار هرات - ۳ ټوکه - د خلیل الله افغان - هرات ۱۹۲۹ م.

۱۷۵ - خراسان - دمیر غلام محمد غبار - کابل ۱۹۴۷ م.

۱۷۶ - واقعات شاه شجاع-د شاه شجاع سدوزی - کابل - ۱۹۵۳ م.

۱۷۷ - وفيات الاعيان ـ دابن خلكان ـ د مصر بولاق ۱۲۹۹ هـ ق.
۱۷۸ - مروج الذهب ـ د مسعودي ـ پاريس ۱۸٦۱ م.
۱۷۹ - تاريخ عرب ـ د فليپ هتي ـ لندن ۱۹۳۴ م.
۱۸۰ - تجارب الامم ـ د ابن مسكويه ـ ليډن ۱۹۰۹ م.
۱۸۱ - شوكت افغاني دمحمد عبدالحكيم خان لودي- اگره ـ۱۳۲۵هـ ق.
۱۸۲ - دول الاسلام ـ دشمس الدين ذهبي ـ حيدر آباد دكن ۱۳۳۳ هـ ق.
۱۸۳ - تاريخ محمود شاهي ـ د فيض الله بنياني (خطي ـ پېښور).
۱۸۴ - تزك تيموري ـ بمبيي ـ ۱۳۲٦ هـ ق.
۱۸۵ - سبحة المرجان فی آثار هندوستان ـ د سيد غلام علي بلگرامی ـ د بمبی چاپ ۱۳۰۳هـ ق.
۱۸٦ - تذكرهٔ نصر آبادي ـ تهران ۱۳۱۵ هـ ق.
۱۸۷ - مجالس النفايس ـ د امير علی شير نوايی ـ تهران ۱۹۴۴ م.
۱۸۸ - تذكرهٔ علماى هند ـ درحمان علی ـ لكهنو ۱۲۹۲ هـ ق.
۱۸۹ - د پښتونخوا د شعر هارو بهار ـ د فرانسوي جم دارمستتر ـ پاريس ۱۸۸۸م.
۱۹۰ - د افغان د ۱۷ پيړۍ اشعار ـ د بيدولف ـ د هرتفورد چاپ ـ ۱۸۹۰م.
۱۹۱ - هفت اقليم ـ د امين احمد رازی ـ كلكته ۱۹۱۸ م.
۱۹۲ - شمع انجمن ـ د سيد صديق حسن بهوپال ۱۲۹۲ هـ ق.
۱۹۳ - شكرستان افغانی ـ دمير احمد شاه رضواني ـ لاهور د ۱۳۰۵ هـ ق.
۱۹۴ - بهارستان افغانی ـ د مير احمد شاه رضواني ـ لاهور ـ ۱۳۰۵ هـ ق.
۱۹۵ - سكينة الفضلا ـ د عبدالحكيم رستاقی ـ ډهلي ۱۳۵۰ هـ ق.
۱۹٦ - قاموس الاعلام ـ د شمس الدين سامي ـ استانبول ۱۳۰۸ هـ ق.
۱۹۷ - مذكراحباب ـ د حسن خواجه بخاري (خطي ـ برلين).





۱۹۸ - حجة الاورنگ شاهيه ـ د تاش محمد القندوزی (خطی ـ كابل).
۱۹۹ - آتشكدهٔ آذر ـ د لطف علی آذر- د بمبيي چاپ ـ ۱۳۰۹ هـ ق.
۲۰۰ - گلشن روه ـ دراورتي ـ هر تفورد ۱۸٦۰ م.
۲۰۱ - چراغ انجمن ـ د عبدالحكيم رستاقی ـ ډهلي ۱۵۲۹ م.
۲۰۲ - تذكرهٔ حسيني-د محمد حسين سنبهلی لكنهو ۱۲۹۲ هـ ق.
۲۰۳ - كليد افغانی ـ د هيوز- لاهور ۱۸۹۳ م.
۲۰۴ - جامي ـ د علی اصغر حكمت ـ تهران ۱۹۴۰ م.
۲۰۵ - خزانهٔ عامره ـ د غلام علی آزاد ـ د هند چاپ.
۲۰٦ - تاريخچهٔ شعر پښتو د عبدالحی حبيبی ـ دكندهار چاپ ـ ۱۹۳۵م.
۲۰۷ - رياض الشعراء ـ دواله داغستانی (خطی ـ كابل)
۲۰۸ - مرآة الخيال ـ د امير شير علی لودی ـ د هند چاپ.
۲۰۹ - تذكرة الخواتين ـ دعبدالباری آسی ـ د لكنهو چاپ.
۲۱۰ - خزينة الاصفياء-د مفتی غلام سرور لاهوری، لكنهو ۱۹۱۴م
۲۱۱ - د عبد القادر خان خټك د ديوان مقدمه ـ د عبد الحی حبيبی ـ د كندهار چاپ ۱۹۳۷ م.
۲۱۲ - فوايدالشريعة ـ پښتو ـ داخون قاسم پاپن خيل ـ د لاهور چاپ.
۲۱۳ - تاريخ روساى پنجاب ـ د سرليپل گريفن لاهور.
۲۱۴ - د پېښور تاريخ ـ دراى گوپال داس ـ لاهور ۱۸۷۰م.
۲۱۵ - البرامكه ـ د محمد عبدالرزاق ـ د هند چاپ.
۲۱٦ - د گنداهارا پخوانی جغرافيا ـ د موسيوفوشه ـ كلكته ۱۹۱۵ م.
۲۱۷ - اخباربر امكه د عبداعظيم گرگانی ـ تهران - ۱۲۱۲ هـ ل.
۲۱۸ - تاريخ تمدن ايران ساسانی ـ د سعيد نفيسی ـ د تهران چاپ- ۱۳۳۱هـ ل.

۲۱۹ - تهذیب و تمدن اسلامی ـ لومړی او دوهم ټوك ـ دزشید اختر ندوی ـ د لاهور چاپ ۱۹۵۲ م.

۲۲۰ - نقود الاسلامیه ـ د مقریزی ـ (خطی نسخه ـ د مشق ـ د تهذیب او تمدن اسلامي په ذریعه).

۲۲۱ - تاریخ طبرستان ـ د بهاء الدین محمد بن حسن بن اسفندیار ـ په ۶۱۳ هـ ق- د تهران چاپ ۱۳۲۰ هـ ل.

۲۲۲ - افغانستان به یك نظر ـ د میر غلام محمد غبار د کابل چاپ.

۲۲۳ - روضة السلاطین-د فخري هروی ـ د تبریز چاپ ۱۳۴۵ هـ ل.

۲۲۴ - تاریخ ادبیات فارسی - د ډاکتر بروان د لندن چاپ

۲۲۵ - تاریخ ادبیات در ایران ـ د ډاکتر صفا. دتهران چاپ ۱۳۳۸ هـ.ل.

۲۲۶ - تاریخ الادب العربی - د برو کلمان - (۱۹۶۲ م)

۲۲۷ - د بهارسبك شناسی دري ټوکه - د تهران چاپ ۱۳۳۷ هـ ل

۲۲۸ - آریانا انتیکوا - د ویلسوِن - د لندن چاپ ۱۳۳۷ هـ ل

۲۲۹ - طبایع الحیوان مروزی - د مینارسکی چاپ په لندن کښې ۱۹۴۲م

۲۳۰ - مجمل فصیحی- ۳ ټوکه په مشهد کښې د محمود فرخ چاپ ۱۳۳۹ هـ ل.

۲۳۱ - کتاب الهند - د البیروني - د حیدر آباد د کن چاپ ۱۹۵۸م

۲۳۲ - آثار الباقیه، د البیروني- د لیبسیك چاپ، ۱۸۷۶م.

۲۳۳ - معجم الانسباب - زامباور - د قاهرې چاپ ۱۹۵۱ م

۲۳۴ - جغرافیای خلافت شرقي - د چی، لی سترینج اردو ترجمه - د حیدر آباد دکن چاپ ۱۹۳۰ م

۲۳۵ - الاعلام - د خیر الدین زر کلی - د قاهرې چاپ ۱۹۵۹م

۲۳۶ - راحة الصدور راوندی - د تهران چاپ ۱۳۳۳ هـ ل



۲۳۷ - الفهرست- د ابن ندیم - د قاهرې چاپ، ۱۳۴۸ق

۲۳۸ - احیاء الملوك در تاریخ سیستان - د ملك شاه حسین سیستاني - د تهران چاپ ۱۳۴۴-هـ ل.

۲۳۹ - مقالات الشعرا - د میر علی شیر قانع تتوي، د کراچۍ چاپ ۱۹۵۷م

۲۴۰- تکلمۀ مقالات الشعرا - د محمد ابراهیم خلیل تتوي - د کراچۍ چاپ ۱۹۵۸ م